# کشف الباری

## عما فی

# صحیح البخاری

## کتاب العلم (دوم)

**تالیف** ← صدر وفاق المدارس مولانا سلیم الله خان مدظله العالی
شیخ الحدیث جامعه فاروقیه کراچی

**ترتیب وتحقیق** ← مولانا نور البشر صاحب استاذ جامعه فاروقیه کراچی

**ترجمه** ← مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم

**خصوصیات**

**جلد ۲**

① د احادیثو تخریج
② د تعلیقات بخاری تخریج کول
③ د اسماء الرجال مختصر تعارف
④ د گرانو لغاتو لغوی صرفی او نحوی حل
⑤ ماقبل باب سره د ربط په باره کښې پوره تحقیق
⑥ د شرحې د هرې خبرې په حاشیه کښې حواله ورکول
⑦ د ترجمة الباب مقصد په بیانولو کښې پوره تحقیق
⑧ د مختلفو مذاهبو تحقیقی بیان او بیا د مذهب حنفی ترجیح
⑨ د حدیث اطراف بیانول چه په بخاری کښې دا حدیث په کوم کوم ځائې کښې دې

**خورونکی** **فیصل کتب خانه محله جنگی پیښور**

موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

د کتاب نوم: کشف الباری عما فی صحیح البخاری

جلد: کتاب العلم (دوم)

شارح: صدر وفاق المدارس شیخ الحدیث مولانا سلیم الله خان مدظله العالی

ترتیب وتحقیق: مولانا نور البشر صاحب حارث اشملی عمرة

پښتو مترجم: مولانا شاه فیصل فاضل امداد العلوم و وفاق المدارس
ایم اے اسلامیات وعربی پیښور یونیورسټي



د ملاویدو پتې د فیصل کتب خانه پیښور څخه علاوه

- رشیدیه کتب خانه اکوړه ختک
- علمیه کتب خانه اکوړه ختک ۰۹۲۳۶۳۰۵۹۴
- مکتبه رشیدیه کوټه ۰۸۱۲۶۶۲۲۶۳
- مکتبه عثمانیه کانسی روډ کوټه ۰۳۰۱۳۷۳۷۰۳۰
- مکتبه یوسفیه کانسی روډ کوټه ۰۳۲۱۰۸۲۸۹۳۰
- راشد کتب خانه چمن ۰۳۰۰۳۸۹۶۳۵۳
- مکتبه عمریه تاج میر روډ چمن بلوچستان
- مکتبه علوم اسلامیه تاج میر روډ چمن بلوچستان ۰۳۳۳۷۹۵۸۶۹۶
- مکتبه حقانیه چمن ۰۳۳۳۷۷۵۲۲۱۹
- صداقت کتب خانه قندهار افغانستان ۰۷۸۷۷۴۲۳۲۱
- مکتبة رحمانیه قندهار افغانستان ۰۷۹۷۷۳۵۲۸۱
- مکتبه عبدالحي قندهار افغانستان ۰۷۰۰۸۲۴۳۳۴
- اسدالله کتب خانه قندهار افغانستان ۰۷۰۷۴۷۷۶۲۷
- مکتبة غفاریه قندهار افغانستان ۰۷۰۰۳۴۱۷۴۹
- مکتبة رشیدیه قندهار افغانستان ۰۷۷۲۲۱۰۷۰۹
- مکتبة حبیبیه قندهار افغانستان ۰۷۹۹۴۴۷۴۱۳
- مکتبه القدس قندهار افغانستان ۰۷۰۷۹۴۸۵۵۹
- قدرت کتب خانه کابل افغانستان ۰۷۹۹۶۱۹۶۰۳
- عبدالمجید کتب خانه جلال آباد ۰۷۰۸۱۹۷۷۴۹
- شاهین کتب خانه خوست افغانستان
- بلال کتب خانه خوست افغانستان
- اسلامي کتب خانه خوست افغانستان ۰۷۹۹۳۱۰۲۴۷

# فهرست مضامين

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ۳۴- باب: کَیْفَ یُقْبَضُ الْعِلْمُ

## ۳۹ باب: کتابة العلم

## ۴۰. باب: الْعِلْمِ وَالْعِظَةِ بِاللَّيْلِ

## ۴۱. باب: السَّمَرِ فِی الْعِلْمِ

## ۴۲. باب: حفظ العلم

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |



## ۵۰ ـ باب: الْحَيَاءِ فِي الْعِلْمِ

# عرض د مرتب

اللهم لك الحمد لا احصی ثناء علیك، انت کما اثنیت علی نفسك۔ اللهم لك الحمد کما ینبغی لجلال وجهك و عظیم سلطانك۔ اللهم ما اصبح بی من نعمة او باحد من خلقك فمنك وحدك لا شریك لك، اللهم لك الحمد ولك الشکر۔ اللهم صل و سلم و بارك علی سیدنا و حبیبنا و مولانا محمد النبی الامی و علی آله و صحبه و تابعیهم و من تبعهم اجمعین

**اما بعد** د الله رب العزت ډیر زیات کرم او د هغه ډیر احسان دې چې هغه محض په خپل فضل سره توفیق راکړو چې نن مونږ ستاسو په لاسونو کښې د بخاری شریف د شرح ''کشف الباری.. څلورم جلد چې د ''کتاب العلم.. د نصف اخر په وضاحت او تشریح باندې مشتمل دې د پیش کولو سعادت حاصلوو اهل علم حضراتو ته چې د دې جلد د انتظار کولو چې کوم تکلیف ملاو شو په هغې باندې مونږ معذرت خواه یو د دې په تاخیر کښې چه کوم عذرونه مخې ته وو دهغې اوږد ذکرکول بې فائدې دې اوپه دې کښې ددې احقرکم علمی او ناروغتیا او ده مختلف بیمارو ډیر دخل وو خو بیا هم کوشش کړې شوې دې چې په مباحثو کښې څه کمی پاتی نه شی او د تحقیق معیار د مخکینی جلدونو پشان بلکه د هغې نه هم بنه وی حضرت شیخ الحدیث صاحب دامت برکاتهم سره د بوډاوالی مختلفو بیمارو. مصروفیاتو اومختلفو ذمه دارو سره سره د دې جلد په یو یو حرف باندې نظر اچولې دې کوم امور چې قابل د اصلاح وو هغه ئې راته په نښه کړل د کوم مباحث چې نامکمل وو د هغې طرف ته ئې ځمونږ توجه کړله او د کومو چې وضاحت پکار وو دهغې د وضاحت حکم ئې اوکړو او الحمدلله په دې ټولو حکمونو باندې عمل وکړې شو الله دې حضرت مدظلهم ته عافیت تامه نصیب کړی اود حضرت دغه علمی کوشش دې هم دهغوئ په مبارک ژوند کښې پورا کړی وما ذٰلك علی الله بعزیز

مونږ د هغې علماؤ شکر گزار یو چا چې د مخکینی جلدونو مباحث اندازترتیب وتحقیق تعریف وکړو او زمونږ حوصله افزائی یې اوکړه دغه رنګ د هغه حضراتو شکریه هم ادا کوو چا چې د مضامینو په سلسله کښې مونږ سره خط و کتابت وکړو الله دې ټولو ته بهترینی بدلې ورکړی۔

..........................................

په تیرو شوو جلدونو کښې هم مونږ علماو ته درخواست کړې وو اوس هم دغه درخواست دې چې دا یو خالص علمی کار دې چې په مختلفو فنونو کښې د مهارت او صلاحیت تقاضا کوی د دې صلاحیتونو د نش والی د وجه نه ممکن ده چې د دې په ترتیب او تحقیق کښې په غلطی سره څه کوتاهیانی راغلی وی د علماؤ په ذمه لازم ده چې د هغې نشاندهی اوفرمائی ان شاالله مونږه ته به دخپلو غلطیانو په اصلاح کښې خوشحالی محسوسیږی مونږ به ئې ډیر شکر گزار یو د دې جلد پروف ریډینګ او د زر نه زر منظر عام ته د راوستو سهرا د عزیز

گرامی مولانا حبیب الله زکریا سلمه الله تعالي په سر ده که د هغوی مکمل توجه محنت او کوشش نه وو نو پته نشته چې نور به پدې کښې څومره تاخیر کیدوالله تعالي دې هغه ته بهترینې بدلې ورکړی د هغه په علم او عمل کښې دې برکت واچوی او د هغه علمی او عملی صلاحیتونو ته دې ترقی ورکړی د دې نه علاوه عزیزان گرامی مفتی سید زاهد حسین الحسینی سلمه (فاضل دارالعلوم کراچی)او مفتی عبدالغنی سلمه (فاضل جامعه فاروقیه و رفیق دارالتصنیف جامعه فاروقیه) هم شکرگذار یم چه دې دواړو حضراتو خصوصی طور باندې د پروف ریډنګ په سلسله کښې د دې احقر ډیر امداد وکړو جزاهما الله تعالی خیر الجزاء و وفقهما لما یحبه ویرضاه۔

...............................

په آخر کښې ټولو ویونکو په خدمت کښې درخواست دې چه حضرت شیخ الحدیث صاحب دامت برکاتهم له پاره دی خصوصی دعا کوی چې الله تعالي دوی ته د صحت او عافیت سره لوې عمر ورکړی۔ حضرت شیخ الحدیث حفظهم الله تعالي و رعاهم د ژوند هر یو باب او خاص طور باندې د شیخوخیت د زمانې کارنامې چې په هغې کښې د درس او جامعه فاروقیه د اهتمام نه واخله تر وفاق المدارس العربیه،او اتحاد تنظیمات مدارس دینیه د ذمه داریانو سره سره په ملک کښې هر وخت د اسلام خلاف راوچتیدونکو چغو سورو په عزیمت او عاجزئ سره مقابله هم شامله ده۔ چې دغه ټول کارونه د خوانانو له پاره د رشک قابل نمونې دې

الله تعالي دِ دې حضرت ته د ټولو ذمه داریانو په ښه طریقې سره د پوره کولو توفیق ورکړي۔۔۔۔

نیز احقرمرتب او دده معاونینو له پاره هم د خصوصی دعاگانو درخواست دې چې الله تعالي ورته دا کار آسان کړی. او د زر مکملولو توفیق ورکړی. او په خپل دربار کښې دې ورته د قبولیت شرف ورکړي

دا کار دې د احقر دپاره، د احقر د استاذانو مشانخ. مور پلار او متعلقینو له پاره د آخرت ذخیره جوړه کړي۔آمین

وکتبه

نور البشر محمد نور الحق

استاذ الحدیث وعلومه بالجامعة الفاروقیة

۱۲ ربیع الاول ۱۴۲۸ھ په مطابق د یکم اپریل ۲۰۰۷

...

## ۳۲- باب: عظة الامام النساء وتعليمهن

د مخكيني باب سره مناسبت مخكيني باب كښې د انسان د خپل كور والو ته علم ښودل ذكر وو او په دې باب كښې د امام عام زنانو ته تعليم وركول ذكر دى دغه رنګ په دواړو بابونو كښې مناسبت اوموندلې شو.[1]

**د ترجمة الباب مقصد** حضرت ګنګوهى رحمه الله فرمائى چې زنانو سره خلوت او د هغوى سره اجتماع چونكه منع ده خكه د دې باب په قائمولو سره امام بخارى رحمه الله وضاحت اوكړو چې دا ممانعت په هغه صورت كښې دې چې د فتنه يره وى چې د فتنې ويره نه وى نو نصيحت ورته كيدې شى.[2]

حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائى چې د دې باب مقصد دمخكينى دوه بابونو پشان د تعليم ضرورت اود تعليم عام والې دې.[3]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چې امام بخارى رحمه الله اول دا اوونيل چې انسان لره د خپلى بى بى او د وينځې د تعليم اهتمام كول پكار دى اوس په ترقئ سره دا خبره ذكر كوى چې امير المؤمنين يا د هغه نائب ته پكار دى چې د عام زنانو لپاره د وعظ او نصيحت او د هغوى د تعليم انتظام او اهتمام اوكړى. خلاصه دا ده چې اوله ترجمه خاص وه چې د كور والو او وينځې د تعليم متعلق وه او دا عام ده چې د عام زنانو متعلق ده د مخكې ترجمه تعلق د مالكانو او خاوندانو سره وو او د دې ترجمې تعلق د امام سره دې.[4]

[۹۸] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَيُّوبَ قَالَ سَمِعْتُ عَطَاءً قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ [5] قَالَ أَشْهَدُ عَلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- أَوْ قَالَ عَطَاءٌ أَشْهَدُ عَلَى

---

[1]) عمدة القارى (ج۲ص۱۲۲)

[2]) لامع الدرارى (ج۲ص۳۳۲،۳۳۱)

[3]) الابواب و التراجم (ص۵۳)

[4]) فتح البارى (ج۱ ص۱۹۲)

[5]) قوله: ابن عباس رضى الله عنهما: الحديث اخرجه البخارى ايضاً فى صحيحه (ج۱ ص۱۱۹) كتاب الأذان، باب وضوء الصبيان ومتى يجب عليهم الغسل والطهور؟ وحضورهم الجماعة والعيدين والجنائز. وصفوفهم، رقم (۸۶۳). و(ج۱ ص۱۳۱) كتاب العيدين، باب الخطبة بعدالعيد، رقم(۹۶۲) و(۹۶۴). وباب خروج الصبيان الى المصلى، رقم (۹۷۵)، وباب العلم الذى بالمصلى، رقم (۹۷۷) وباب موعظة الامام النساء يوم العيد، رقم(۹۷). (ج۱ ص۱۳۵) باب الصلاة قبل العيد وبعدها، رقم (۹۸۹) و(ج۱ ص۱۹۲) كتاب الزكاة، باب التحريض على الصدقة والشفاعة فيها، رقم (۱۴۳۱)، و(ج۱ ص۱۹۵) كتاب الزكاة، باب العرض فى الزكاة، رقم (۱۴۴۹) و(ج۲ ص۷۲۷) كتاب التفسير، سورة الممتحنة، باب (اذا جاءك المؤمنات يبايعنك) رقم (۴۸۹۵)، و(ج۲ ص۷۸۹) كتاب النكاح، باب: (والذين لم يبلغوا الحلم) رقم (۵۲۴۹)، و(ج۲ ص۸۷۴) كتاب اللباس، باب الخاتم للنساء، رقم (۵۸۸۰) وباب القلائد والسخاب للنساء، رقم (۵۸۸۱) و(ج۲ ص۸۷۴) كتاب اللباس، باب القرط، رقم (۵۸۸۳) و(ج۲ ص۱۰۸۹) ...[بقيه حاشيه په راروانه صفحه...

ابْنِ عَبَّاسٍ - أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صلی اللہ علیہ وسلم - خَرَجَ وَمَعَهُ بِلَالٌ، فَظَنَّ أَنَّهُ لَمْ يُسْمِعِ النِّسَاءَ فَوَعَظَهُنَّ، وَأَمَرَهُنَّ بِالصَّدَقَةِ، فَجَعَلَتِ الْمَرْأَةُ تُلْقِي الْقُرْطَ وَالْخَاتَمَ، وَبِلَالٌ يَأْخُذُ فِي طَرَفِ ثَوْبِهِ. وَقَالَ إِسْمَاعِيلُ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ عَطَاءٍ وَقَالَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَشْهَدُ عَلَى النَّبِيِّ - صلی اللہ علیہ وسلم - [۸۲۵، ۹۲۱، ۹۳۲، ۹۳۴، ۹۳۶، ۹۴۵، ۱۳۶۴، ۱۳۸۱، ۴۶۱۳، ۴۹۵۱، ۵۵۴۱، ۵۵۴۲، ۵۵۴۴، ۶۸۹۴]

## رجال الحديث

① **سليمان بن حرب**: دا ابو ايوب سليمان بن حرب بن بجيل ازدي بصري رحمه الله دي، ددوى حالات په كتاب الايمان ''باب من كره ان يعود فى الكفر كما يكره ان يلقى فى النار من الايمان،، كښې تير شوي دي (۱)

② **شعبه**: دا امير المومنين فى الحديث امام شعبه بن الحجاج عتكى بصري رحمه الله دي د ده حالات هم په كتاب الايمان ''باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده،، كښې تير شوي دي. (۲)

③ **ايوب**: دا ايوب بن ابى تميمه كيسان سختياني بصري رحمه الله دي دده حالات هم په كتاب الايمان ''باب حلاوة الايمان،، كښې تير شوي دي (۳)

④ **عطاء**: دا ابو محمد عطاء بن ابى رباح مكى قرشي رحمه الله دي د ده پلار ابو رباح نوم اسلم وو. د ده تعلق موالى سره وو (۴)

د حضرت عثمان رضي الله عنه دخلافت په دوئم كال د يمن په علاقه ''جند،، كښې پيدا شوي وو. او په مكه مكرمه كښې ئې پرورش شوې دې (۵) دې د حضرت عائشه. حضرت ام سلمه. حضرت ام هاني. حضرت ابوهريره. حضرت ابن عباس. حضرت حكيم بن حزام. حضرت رافع بن خديج. حضرت زيد بن ارقم. حضرت زيد بن خالد الجهيني. حضرت صفوان بن

---

بقيه حاشيه د تيرمخ] كتاب الاعتصام بالكتاب والسنة. باب ما ذكر النبى (ص) وحض على انفاق اهل العلم..... رقم (۷۳۲۵) واخرجه مسلم فى صحيحه. فى فاتحة كتاب صلاة العيدين. رقم(۲۰۴۴ – ۲۰۴۶). وباب ترک الصلاة قبل العيد وبعدها فى المصلى. رقم (۲۰۵۷، ۲۰۵۸) والنسائى فى سننه فى كتاب صلاة العيدين. باب الخطبة فى العيدين بعد الصلاة. رقم (۱۵۷۰) وباب موعظة الامام النساء بعد الفراغ من الخطبة. رقم (۱۵۸۷ و ۱۵۸۸) وأبوداؤد فى سننه. فى كتاب الصلاة. باب الخطبة يوم العيد. رقم (۱۱۴۲ – ۱۱۴۴) وباب ترک الأذان فى العيد. رقم (۱۱۴۶ و ۱۱۴۷) وابن ماجه فى سننه. فى كتاب اقامة الصلاة. باب ما جاء فى صلاة العيدين. رقم (۱۲۷۳)

(۱) كشف البارى(ج۲ص۱۰۵)

(۲) كشف البارى(ج۱ص۶۷۸)

(۳) كشف البارى(ج۲ ص۲۶)

(۴) تهذيب الكمال(ج۲۰ص۶۹.۷۰)

(۵) تهذيب الكمال(ج۲۰ص۷۰)

امیه.حضرت عبدالله بن زبیر.حضرت عبدالله بن عمر.حضرت جابر.حضرت معاویه.او د حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنهم نه روایت ذکرکوی
د ده نه روایت کونکو کښې امام مجاهد. ابو اسحاق سبیعي.ابو زبیر. عمروبن دینار. زهري. قتاده. عمرو بن شعیب.ایوب سختیاني.منصور بن المعتمر. او امام ابوحنیفه رحمه الله او دغه رنګ نور حضرات شامل دی[1] ابن سعد رحمه الله فرمانی "وکان ثقة فقیها عالما کثیرا الحدیث"[2] امام ابو جعفر الباقر رحمه الله فرمانې "علیکم بعطاء هو والله خیر منی"[3] نیز دا هم فرمانی "خذوا من عطاء ما استطعتم"[4]

ابن حبان رحمه الله فرماني "و کان سود،اعور،اشل،اعرج،ثم عمی فی آخر عمره، و کان من سادات التابعین،فقها،وعلما،وورعا،وفضلا"[5]

امام ابو حنیفه رحمه الله فرمانې "ما رأیت فیمن لقیت افضل من عطاء بن ابی رباح"[6]

امام عجلي رحمه الله فرمانې "تابعی ثقة"[7]

امام ابوزرعه رحمه الله فرمانې "ثقة"[8]

د عطاء بن ابی رباح رحمه الله په باره کښې مونږ دلته یو څو اقوال ذکر کړل خو اصحاب سیر و رجال د دوی ذکر په تفصیل سره لیکلی دې. د دوی په لوی شان او امامت او تفقه باندې د علماء اتفاق دې

البته امام علی بن المدیني رحمه الله فرمائیلی دی چې "کان عطاء اختلط بأخرة،ترکه ابن جریج و قیس بن سعد"[9]

خو حافظ ذهبی رحمه الله فرمایئ چه دلته د "ترک" نه اصطلاحی "ترک" مراد نه دې چې ګنی دې "متروک الحدیث" ګڼړلې شوې دې بلکه د دې مطلب دا دې چې دې دواړو حضراتو اول د ده نه ډیره استفاده حاصله کړې وه. او د ده سره نی په فقه کښې مهارت حاصل کړې وو. خو هر کله چې د ده عمر زیات شونو د ده په حواسو کښې کمزوری راغله نو دوی د ده نه

---

[1] دده د شیوخو او شاګردانو د تفصیل معلومولو له پاره وګورئ تهذیب الکمال (ج۲ ص ۷۰.....۷۵) سیراعلام النبلاء(ج۵ص ۸۰.۷۹)
[2] الطبقات لابن سعد(ج۵ص۴۶۸)
[3] تهذیب الکمال(ج۲۰ص۷۷) و سیر اعلام النبلاء(ج۵ص ۸۱)
[4] هم دغه پورتنی حوالا جات
[5] الثقات لابن حبان(ج۵ص۱۹۹.۱۹۸)
[6] تهذیب الکمال(ج۲۰ص ۸۰.۷۹)و سیر اعلام النبلاء(ج۵ص۸۳)
[7] تعلیقات تهذیب الکمال(ج۲۰ص۸۵)
[8] تعلیقات تهذیب الکمال(ج۲۰ص۸۶)نقلا عن الجرح و التعدیل(۶)رقم(۱۸۳۹)
[9] سیر اعلام النبلاء(ج۵ص۸۷.۸۶) و میزان الاعتدال(ج۳ص ۷۰)

لیکل پریخودل د دوی الفاظ دی ''لم یعن علی بقوله ''ترکه هذان'' الترك العرفی، و لکنه کبر و ضعفت حواسه، وکانا قد تکفیا منه و تلقیها و اکثر عنه، فهطلا، فهذا مراده بقوله: ترکاه'' ([1])
نیز هغه فرمائي ''لم یعن الترك الاصطلاحی، بل عنی انهما بطلا الکتابة عنه، و الا فعطاء ثبت رضی.'' ([2])
دغه رنګ امام ابو داود رحمه الله فرمائی ''ان ابن عون ترك عطاء و طاوسا من اجل فتیاهم فی الصرف..'' ([3])
یعنی'' ابن طاعون عطاء او طاوس د هغوی په عقد صرف کښی د فتوی د وجه نه پریخودل..
خو دده جرح هم مضر نه ده ځکه چی دلته د پریخودو سبب یو اجتهادی امر دې. او په دی کښی د اختلاف د وجه نه کلام شوني دې ([4]) -
دلته دا خبره دې واضح وی چی عطاء بن ابی رباح په کثرت سره مرسلاً روایت کوی او علماؤ تصریح کړې ده چی دی د هر قسم راویانو نه ارسال کوی دې وجه نه د ده مراسیل به ضعیف ګنړلې شی ([5])
د عطاء بن ابی رباح انتقال ۱۱۴هـ یا ۱۱۵هـ کښی شوني دې ([6]) رحمه الله تعالیٰ رحمة واسعة
⑤ **ابن عباس:** د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما حالات د بدء الوحی په څلورم حدیث او کتاب الایمان ''باب کفران العشیر و کفر بعد کفر.. کښی تیر شوی دی ([7])
**قوله: قال اشهد علی النبی صلی الله علیه وسلم او قال عطاء: اشهد علی ابن عباس:** حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه زه په نبی صلی الله علیه وسلم باندی ګواهی ورکوم یاعطاء وائی چه زه په ابن عباس باندی ګواهی ورکوم.
حاصل دا دې چی د اشهد باره کښی تردد دې چی دا د ابن عباس قول دې که د عطاء، په دغه سلسله کښی د شعبه د شاګردانو اختلاف دې
سلیمان بن حرب په تردد سره نقل کوی کما فی حدیث الباب. ابوداود طیالسی دغه روایت د ''شعبه عن ایوب..په طریقه نقل کړې دې او هغه یقینی طور باندې دې ته د عطاء قول وئیلې دې ([8]) او د شعبه په شاګردانو کښی محمد بن جعفر غندر د بغیر د شک نه جزما د

---

[1] ) سیر اعلام النبلاء (ج۵ص۸۷)
[2] ) میزان الاعتدال (ج۳ص۷۰)
[3] ) تعلیقات الکاشف (ج۲ص۲۲) نقلا عن سوالات الاجری (۲۵۷)
[4] ) تعلیقات الکاشف (ج۲ص۲۲)
[5] ) تهذیب الکمال (ج۲۰ص۸۳)
[6] ) تهذیب الکمال (ج۲۰ص۸۵)
[7] ) کشف الباری (ج۱ ص۲۳۵) و (ج۲ص۲۰۵)
[8] ) حدثنا ابو داود قال حدثنا شعبه عن ایوب: قال سمعت عطاء یقول اشهد علی ابن عباس انه قال خرج رسول الله صلی الله علیه وسلم.....مسند ابی داود الطیالسی (ص۳۴۶) احادیث عطاء بن ابی رباح..[بقیه حاشیه په راروانه صفحه.

د واړو د قول په طرز ذکر کړې دې[1]۔
بیا د شعبه په رفقاؤ یعنی ایوب سختیانی په شاګردانو کښې لږ اختلاف دې. اسماعیل بن علیه[2]، سفیان[3] او وهیب[4] دې درې واړه دې ته د ابن عباس قول وائیلې دې لیکن حماد بن زید د ایوب نه نقل کولو په وخت کښې تردد نقل کوی[5]. امام بخاری رحمه الله د روایت باب په آخر کښې د اسماعیل بن علیه تعلیق راوړو سره غالبا خپل رجحان ظاهر کړو چې دا د حضرت ابن عباس قول دې۔
خو مناسبه معلومیږی چې یو ته د ترجیح ورکولو په ځائې دا اوویلې شی چې دا قول د دواړو نه ثابت دې.چې د هغې دلیل د محمد بن جعفر روایت دې.بیا بعضو راویانو دې له د تردد سره نقل کړو او بعضو د ابن عباس رضی الله عنهما قول اوګرځولو او بعضو د عطاء. والله اعلم

**قوله: ان رسول الله ﷺ خرج ومعه بلال فظن انه لم یسمع النساء:** حضور ﷺ بهر تشریف راوړلو هغوی سره حضرت بلال هم وو .هغوی دا ګمان اوکړو چې حضور پاک ﷺ ښځو ته خطبه واؤ نه روله.
حضورپاک ﷺ ته دا خیال راغلو چې زنانو ته د دوی آواز اونه رسیدلو څکه نې هغوی طرف ته تشریف یوړلو او هغوی ته نې نصیحت اوکړو

**قوله: فوعظهن وامرهن بالصدقة:** حضورپاک ﷺ هغوی ته نصیحت اوفرمائیلو او هغوی ته نې د صدقې ورکولو حکم اوکړو.
ترجمة الباب ددې نه ثابتیږی چې د "وعظهن" نه "عظة الامام" او "امرهن بالصدقة" نه تعلیم په پوهه کښې راځی[6]
هغوی نصیحت اوفرمائیلو چې "انی رأیتکن اکثر النار،لانکن تکثرن اللعن وتکفرن العشیر" او د صدقه

---

بقیه حاشیه د تیرمخ] عن ابن عباس. رقم(۲۶۵۵)
تنبیه: د ابوداود طیالسی د دې روایت نه واضحه ده چې د اشهد قول د عطاء دې نه د ابن عباس خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی "و ارادبهذا التعلیق انه جزم عن ایوب بان لفظ اشهد من کلام ابن عباس فقط و کذا جزم به ابو داود الطیالسی فی مسنده عن شعبه..... فتح الباری(ج۱ص۱۹۳) ده د حافظ رحمه الله تسامح ده_
[1]) مسند احمد (ج۱ص۲۲۰)
[2]) اخرجه البخاری طریقه تعلیقا تحت حدیث الباب. و اخرجه موصولا فی صحیحه(ج۱ ص۱۹۵) فی کتاب الزکاة. باب العرض فی الزکاة. رقم(۱۴۴۹) و اخرجه احمد فی مسنده(ج۱ص۲۲۶)
[3]) اخرج حدیثه احمد فی مسنده(ج۱ص۲۲۰)
[4]) اخرج حدیثه احمد فی مسنده(ج۱ص۲۲۰)
[5]) اخرجه ابو نعیم فی المستخرج. کذا فی الفتح(ج۱ص۱۹۳)
[6]) فتح الباری(۱/۱۹۳)-

حکم نې ورکړلو.او تعلیم ئې ورکړو چې د دوی د ګناهونو کفاره به د صدقاتو په ذريعه کيږي[1] والله اعلم

**قوله: فجلعت المراة تلقي القرط والخاتم وبلال يأخذ في طرف ثوبه:** ښځو والي او ګوتمې کينبودلې او حضرت بلال هغه د خپلې کپړې په يو ګوټ باندې راجمعه کولې

**ايا ښځه د خاوند د اجازت نه بغير په خپل مال کښې تصرف کولې شي؟** په دې خبره کښې اختلاف دې چې آيا ښځه د خاوند د اجازت نه بغير په خپل مال کښې تصرف کولې شي يا نه؟

د جمهورو علماؤ مسلک دادې چې دې ته په خپل مال کښې د پورا تصرف کولو اختيار دې او امام مالک رحمه الله فرمائي.چې هغې ته صرف د ثلث مال پورې د تصرف اجازت دې.ددې نه د زيات اجازت نشته

د امام احمد رحمه الله هم يو روايت دادې.او د هغوی دويم روايت د جمهورو مطابق دې[2]

د امام مالک رحمه الله استدلال د سنن نسائی.سنن ابی داود او سنن ابن ماجه د عبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنه د مرفوع روايت نه دې "لا يجوز لامراة امرئ مالها اذا ملك زوجها عصمتها"[3] يعنې ښځې ته په خپله خپل مال کښې اختيار نشته هر کله چې خاوند د هغې د عزت مالک جوړ شي.په دويم طريق کښې دی "لاتجوز لامراة عطية الا باذن زوجها"[4]

دغه شان د هغوی استدلال په سنن ابن ماجه کښې د کعب ابن مالک رضي الله عنه د روايت نه دې چې د هغوی بی بی خيره د حضورپاک صلی الله عليه وسلم په خدمت کښې خپل کالئ راوړل او صدقه کول ئې اوغښتل.حضورپاک صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل "لايجوز للمرأة في مالها الا باذن زوجها فهل استاذنت كعبا؟"

يعنې د ښځې د پاره په خپل مال کښې د تصرف اجازت نشته خو دا چې کله خاوند هغې ته اجازت ورکړی.نو آيا تا کعب نه اجازت اخستې دې؟ هغوی اوفرمائيل "نعم"بيا حضورپاک صلی الله عليه وسلم د تصديق د پاره کعب رضي الله عنه ته پيغام اوليږلو.چې کله هغوی تصديق اوکړو نو هغوی صلی الله عليه وسلم د هغې صدقه قبوله کړه[5]

امام مالک سره په ثلث مال کښې د تصرف اختيار باره کښې څه واضحه دليل نشته،البته هغوی فرمائي چې څنګه د يو مريض په مال کښې د وارثانو حق متعلق کيږي دغه شان د ښځې په مال کښې د خاوند حق متعلق کيږي ځکه چې حضورپاک صلی الله عليه وسلم فرمائي "تنكح المرأة

---

[1] حواله بالا.

[2] المغنى لابن قدامة(٤ / ٣٠٠,٢٩٩)كتاب الحجر رقم المسالة(٣٤٧٤)-

[3] سنن ابى داود كتاب البيوع باب فى عطية المراة بغير اذن زوجها رقم(٣٥٤٦) وسنن ابن ماجه كتاب الهبات باب عطية المراة بغير اذن زوجها رقم(٢٣٨٨)-

[4] سنن ابى داود كتاب البيوع باب عطية المراة بغير اذن زوجها رقم (٣٥٤٧) وسنن النسائى كتاب الزكاة باب عطية المراة بغير اذن زوجها رقم (٢٥٤١)-

[5] سنن ابن ماجه كتاب الهبات باب عطية المراة بغير اذن زوجها رقم (٢٣٨٩)-

لاربع: لمالها، ولحسبها، وجمالها، ولدینها (۱)
د دې نه دا معلومه شوه چې د ښځې په مال کښې د خاوند حق وی. او دغه وجه ده چې ښځه مالداره وی نو خاوند د هغې د مال نه فائده اخستلو د پاره په مهر کښې اضافه کولو سره د هغې د حاصلیدو کوشش کوی (۲)
لهذا د مریض په شان ښځې ته هم په ثلث مال کښې د تصرف حق ورکولې شی. مریض چې څنګه په ثلث مال کښې وصیت کولې شی دغه شان ښځه هم په ثلث مال کښې تصرف کولې شی ددې په مقابله کښې د جمهورو دلائل دادی

① د الله تعالی ارشاد دې ((فان انستم منهم رشدا فادفعوا الیهم اموالهم)) (۳)
یعنی چې تاسو په دوی کښې عقل او هدایت اومومئ. نو هغوی ته د هغوی مال ورکړئ د دې آیت نه دا خبره واضح کیږی چې په دوی باندې پابندی نشته او بلکه دا چې هغه په تصرف کښې آزاده ده.

② حدیث باب، په کوم کښې چې حضورپاک ﷺ هغوی ته د صدقې حکم اوکړو. هغوی صدقه ورکړه او حضورپاک ﷺ قبوله کړه او هغوی د چا نه هم د خاوند د اجازت په باره کښې تپوس او نه کړو (۴)

③..د حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه مرفوع حدیث دې یا معشر النساء تصدقن (۵)
دلته هم د صدقې حکم مطلق دې د څه قسم اجازت ذکر نشته
ترڅو چې د امام مالک رحمه الله د دلائلو تعلق دې نو په هغې کښې د حضرت کعب والا حدیث ضعیف دې ځکه چې په هغې کښې یحیی الانصاری مجهول دې (۶)

باقی دواړه روایتونه د "عمرو عن ابیه عن جده" په طریق سره مروی دی او محدثینو په دې سند باندې کلام کړې دې (۷)

او که بالفرض دا سند قابل د احتجاج وی بیا هم اولاً د جمهورو د صحیح احادیثو مقابله نشی کولې
ثانیاً داسې ډیرو احادیثو په باره کښې امام بغوی فرمائی چې دا "غیررشیده" باندې محمول دی (۸)

---

(۱) صحیح البخاری (۷۶۱/۲) کتاب النکاح باب الاکفاء فی الدین رقم (۵۰۹۰)-
(۲) المغنی (۳۰۰/٤)-
(۳) النساء/۶-
(۴) المغنی (۳۰۰/٤) وعمدة القاری (۱۲٤/۲)-
(۵) صحیح البخاری (٤٤/۱) کتاب الحیض باب ترک الحائض الصوم رقم (۳۰٤)-
(۶) تقریب التهذیب (۵۹۹) رقم (۷۶۸۱) وخلاصة الخزرجی (ص ٤۳۰)-
(۷) تعلیقات الکاشف (۷۹/۲ و ۸۰)-
(۸) شرح الکرمانی (۹۲/۲)-

بعضې علماء فرمائی چې دا حکم په بناء د حسن معاشرت او د آدابو د قبیلې نه دې.یعنی دا مناسبه نه ده چې ښځه او سړې په یو خانې کښې اوسیږی او ښځه د خاوند د خوښې معلومولو نه بغیر خپل مال خرچ کړی او د خاوند نه تپوس اونه کړی[1].والله اعلم

**قوله:وقال اسماعيل عن ايوب عن عطاء وقال عن ابن عباس:اشهد على النبي ﷺ:** د اسماعیل نه مراد اسماعیل بن علیه رحمه الله دې[2] د دوی حالات کتاب الایمان"باب حب الرسول من الایمان" د لاندې تیر شوې دی[3]=

**د مذکوره تعلیق تخریج** د مذکوره تعلیق په خپله امام بخاری رحمه الله په کتاب الزکوة کښې موصولاتخریج کړې دې[4]

**د مذکوره تعلیق مقصد** دې تعلیق ذکر کولو نه امام بخاری دا وئیل غواړی چې د اسماعیل بن علیه په دې طریق کښې جزم سره د "اشهد" جملې نسبت ابن عباس رضی الله عنهما طرف ته شوې دې[5]

دا جمله د چا ده؟ددې تفصیل مونږ روستو ذکر کړې دې

**تنبیه:** علامه کرمانی رحمه الله اولاً دا خبره ذکر کړې ده.بیا ئې یو احتمال دا هم بیان فرمائیلې دې چې د "قال اسماعیل" عطف په "حدثنا شعبة" باندې وی.داسې شوه چې سلیمان بن حرب څنګه د شعبه شاګرد دې دغه شان د اسماعیل بن علیه نه هم روایت کوی.دغه شان به دا تعلیق پاتې نه شی[6]

خو دا احتمال صحیح نه دې ځکه چې اسماعیل بن علیه نه سلیمان بن حرب څه روایت نه کوی[7].والله سبحانه وتعالی اعلم.

## ۳۳-باب:الحرص على الحديث

**اولنی باب سره مناسبت:** علامه عینی رحمه الله فرمائی چې په مخکښې باب کښې څنګه چې د خاص تعلیم ذکر دې.د دغې خاص تعلیم ذکر په دې باب کښې هم دې چې د ابوهریره رضی الله عنه په سوال کولو باندې هم هغه ته په خاص خطاب سره حضورپاک ﷺ جواب ورکړو.چې دا هم تعلیم دې[8]

**مقصد د ترجمة الباب:** حضرت شیخ الهند رحمه الله فرمائی چې ددې باب نه د حرص على الحديث

---

[1]) عمدة القاری(۲/۱۲٤)-
[2]) فتح الباری(۱/۱۹۳)-
[3]) کشف الباری(۲/۱۲)
[4]) صحیح البخاری(۱/۱۹۵) کتاب الزکوة باب زکواة العرض رقم(۱٤٤۹)-
[5]) فتح الباری(۱/۱۹۳) وعمدة القاری(۲/۱۲۵)-
[6]) شرح الکرمانی(۲/۹۲)-
[7]) فتح الباری(۱/۱۹۳) وعمدة القاری(۲/۱۲۵)-
[8]) عمدة القاری(۲/۱۲۵)-

فضيلت او تحسين بيانول مقصود دى او د حديث نه حديث رسول الله ﷺ مراد دې. په مخکښې ابوابو کښې او تير شوې احاديثو کښې د مطلق علم ذکر وو. اوس د حديث تصريح او تخصيص مقصود معلوميږي[1] والله اعلم.

مطلب دادې چې امام بخاری رحمه الله د علم فضيلت. ددې د حاصلولو طريقې. ددې آداب او تعليم وتبليغ مطلق اوسه پورې ډير تراجم اينبودې دی. اوس خاص طور سره د ترجمې متعلق ترجمه منعقد کوی او دا خبردارې ورکوی چې د ټولو نه اهم فن حديث دې چې د هغې د حاصلولو د پاره طالب علم لره حريص کيدل پکار دی

**د حديث لغوی،عرفی او اصطلاحی معنی** حديث په لغت کښې "جديد" ته وئيلې شی. په عرف کښې دا لفظ د "کلام" د پاره استعماليږی[2]

د اهل شريعت په نيز حديث وئيلې شی هر هغه څيز ته چې نبی کريم ﷺ ته منسوب وي. اګرچې هغه اقوال وی يا افعال. تقاريروی يااحوال. د بيدارئ سره تعلق لری يا د خوب سره[3]

د حديث د وجه تسميه په باره کښې مونږ تفصيلا په مقدمه کښې ذکر کړې دې[4]

[۹۹] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُ قَالَ:

قِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَنْ أَسْعَدُ النَّاسِ بِشَفَاعَتِكَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «لَقَدْ ظَنَنْتُ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ أَنْ لاَ يَسْأَلُنِي عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ أَحَدٌ أَوَّلُ مِنْكَ، لِمَا رَأَيْتُ مِنْ حِرْصِكَ عَلَى الْحَدِيثِ، أَسْعَدُ النَّاسِ بِشَفَاعَتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَنْ قَالَ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ، خَالِصًا مِنْ قَلْبِهِ أَوْ نَفْسِهِ.» [۶۲۰۱]

## رجال الحديث

① **عبدالعزيز بن عبدالله:** دا عبدالعزيز بن عبدالله بن يحيی بن عمرو بن اويس بن سعد بن ابی سرح قرشی عامری اويسی مدنی رحمه الله دې. ددوی کنيت ابوالقاسم دې[5]

دوی د ابراهيم بن سعد زهری. سليمان بن هلال. عبدالرحمن بن ابی الزناد. عبدالرحمن بن ابی الموال. عبدالعزيز بن ابی حازم. عبدالعزيز بن ابی سلمه الماجشون. ليث بن سعد. مالک بن انس او محمدبن جعفربن ابی کثير رحمهم الله نه روايت کوی

دده نه روايت کوونکو کښې امام بخاری. هارون الحمال. محمد بن يحيی. ذهلی. ابوذرعه. ابوحاتم. عبدالله بن شعيب او محمدبن اسماعيل ترمذی رحمهم الله وغيره دی[6]

---

[1]) الابواب والتراجم (ص ۵۳)-
[2]) عمدة القاری (۲/ ۱۲۵)-
[3]) حوالہ بالا
[4]) کشف الباری (۱/ ۸.۹)-
[5]) تهذيب الکمال (۱۸/ ۱۶۱.۱۶۰) وسير اعلام النبلاء (۱۰/ ۳۸۹)-
[6]) تهذيب الکمال (۱۸/ ۱۶۲.۱۶۱) وسير اعلام النبلاء (۱۰/ ۳۸۹)-

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائي "صدوق"[1]
يعقوب بن شيبه سدوسي رحمه الله فرمائي "ثقة"[2]
امام دار قطني رحمه الله فرمائي "حجة"[3]
امام خليلي رحمه الله فرمائي "ثقة متفق عليه"[4]
امام ابوداود رحمه الله فرمائي "ثقة"[5]
حافظ ذهبي فرمائي "ثقة مكثر"[6]
بيا فرمائي "الامام الحجة...من نبلاء الرجال"[7]
دغه شان هغوي فرمائي "ثقة جليل"[8]
ابن حبان رحمه الله دوي په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دى[9]
تنبيه: ددوي باره كښې د امام ابوداود توثيق مونږ نقل كړې دې خو هم د امام ابوداود نه حافظ ذهبي او حافظ ابن حجر رحمهماالله ددوي تضعيف نقل كړې دې[10]
حافظ ابن حجر رحمه الله په "هدى السارى" كښې د جرح نه انكار كولو سره ليكلې دى
"وقع في سؤالات ابي عبيد الجرى عن ابي داود قال: عبد العزيز الاويسى ضعيف. فان كان على هٰذا ففيه نظر لانه ثقة في موضع آخر، و روى عن هارون الحمال عنه ولعله ضعف رواية معينة له وهم فيها، او ضعف آخر اتفق معه في اسم، وفي الجملة فهو جرح مردود"[11]
مطلب دادې چې په "سؤالات عبيد الآجري" كښې دى چې امام ابوداود رحمه الله دې ضعيف ګرځولې وو. كه چرې د امام ابوداود مراد هم دغه عبد العزيز اويسى وى نو قابل د كتلو ده. ځكه چې په بل ځائې كښې هغه په خپله په دې توثيق كړې دې. او د هارون الحمال په واسطې سره دده نه

[1]) تهذيب الكمال(۱۸/۱۶۳)-
[2]) حواله بالا
[3]) تهذيب التهذيب(۶/۳۴۶)-
[4]) حواله بالا
[5]) تهذيب الكمال(۱۸/۱۶۲) وسير اعلام النبلاء(۱۰/۳۸۹) وحاشية سبط ابن العجمى على الكاشف (۱/۶۵۶)- رقم(۳۳۹۷)-
[6]) الكاشف(۱/۶۵۶) رقم(۳۳۹۷)-
[7]) سير اعلام النبلاء ۱۰/۳۸۹)-
[8]) ميزان الاعتدال(۲/۶۳۰)-
[9]) كتاب الثقات لابن حبان(۸/۳۹۶)-
[10]) اوګورئ: ميزان الاعتدال (ج۲ ص۶۳۰) و تهذيب التهذيب (ج۶ ص۳۴۶)_
[11]) هدى السارى(۴۲۰)-

ني روايتونه هم کړې دي، ممکنه ده چې ددې تضعيف وجه څه معين روايت وي چې په هغې کښې هغه ته وهم شوې وي يا ددې نه يو بل عبدالعزيز مراد وي، چې د نوم د اشتراک د وجې اشتباه اوشوه. بهر حال دا جرح مردود ده، قابل قبول نه ده.

ده د وفات کال معلوم نه دې غالبا ۲۲۰ هجري پورې ژوندې وو[۱] رحمة الله تعالی رحمة واسعة

④سليمان دا ابومحمد سليمان ابن بلال تيمي قرشي مدني رحمه الله دې. د دوی حالات د "کتاب الايمان باب امور الايمان" د لاندې مختصراً او "کتاب العلم باب طرح الامام المسألة على اصحابه ليختبر ما عندهم من العلم" د لاندې تفصيلا تير شوې دی[۲].

⑤عمرو بن ابی عمرو دا عمرو بن ابی عمرو ميسره مولی المطلب بن عبدالله بن حنطب قرشي مخزومي مدني رحمه الله دې ابوعثمان د دوی کنيت دې[۳].

دوی د خپل مولی مطلب بن عبدالله بن حنطب، حضرت انس بن مالک رضي الله عنه. سعيد بن جبير. سعيد بن ابی سعيد المقبري، عاصم بن عمر بن قتاده، عبدالرحمن بن هرمز الاعرج او عکرمه مولی ابن عباس رحمهم الله وغيره نه روايت کوي.

ده نه روايت کوونکو کښې ابراهيم بن سويد، اسماعيل بن جعفر بن ابی کثير. سليمان بن بلال. عبدالرحمن بن ابی الزناد، عبدالعزيز بن محمد دراوردي. يزيد بن عبدالله بن الهاد او يعقوب بن عبدالرحمن اسکندراني رحمهم الله وغيره دي[۴].

امام احمد رحمه الله فرمائي "ليس به بأس"[۵]

امام ابوزرعه رحمه الله فرمائي "ثقة"[۶]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائي "لابأس به"[۷]

ابن حبان رحمه الله دوی په کتاب الثقات کښې ذکر کړی دی. او ليکلې ئې دي "ربما اخطأ، يعتبر حديثه من رواية الثقات عنه"[۸].

امام عجلي رحمه الله فرمائي "ثقة ينكر عليه حديث البهيمة"[۹]

---

[۱]) سير اعلام النبلاء (۱۰/۳۸۹)
[۲]) کشف الباري (۱/۶۵۸) و(۳/۱۱۷)-
[۳]) تهذيب الکمال (۲۲/۱۶۸)-
[۴]) تهذيب الکمال (۲۲/۱۶۹.۱۶۸)-
[۵]) تهذيب الکمال (۲۲/۱۶۹)-
[۶]) تهذيب الکمال (۲۲/۱۷۰)-
[۷]) حواله بالا
[۸]) الثقات لابن حبان (۵/۱۷۵)-
[۹]) تهذيب التهذيب (۸/۸۳)-

ساجي رحمه الله فرمائي "صدوق الا انه يهم"[1]

حافظ ابن حجر فرمائي "ثقة ربما وهم"[2]

ددې توثيقاتو په مقابله کښې ددوی باره کښې د جرح وتعديل عالمانو نه جرح هم منقوله ده.

چنانچه امام يحيى بن معين فرمائي "لايحتج بحديثه"[3]

بيا فرمائي "كان مالك يروى عن عمرو بن ابي عمرو وكان يستضعفه"[4]

دغه شان هغوى فرمائي "عمرو بن ابي عمرو الذي يروى عن عكرمة: ليس بالقوى"[5]

دغه شان د هغوى نه نقل دى "عمرو بن ابي عمرو ليس بحجة"[6]

جوزجانى رحمه الله فرمائي "مضطرب الحديث"[7]

امام نسائى رحمه الله فرمائي "عمرو بن ابي عمرو ليس بالقوى فى الحديث وان كان قد روى عنه مالك"[8]

امام ابوداود رحمه الله فرمائي "ليس هو بذاك"[9]

خو حقيقت دادې چې په عمرو بن ابى عمرو باندې دا تنقيد دهغه د عامو احاديثو د وجه نه دې بلکه هغوى د عکرمه نه يو حديث نقل کړې دې، د هغې ترديد د لاندې محدثينو په ده باندې کلام کړې دې.

چنانچه د امام يحيى بن معين نه ابن ابى مريم نقل کوى "عمرو بن ابي عمرو ثقة ينكر عليه حديث عكرمة عن ابن عباس ان النبى ﷺ قال: اقتلوا الفاعل والمفعول به"[10]

دغه شان امام عجلى رحمه الله فرمائي "ثقة ينكر عليه حديث البهيمة"[11]

امام نسائى چې څه فرمائيلي دى چې "ليس بالقوى فى الحديث" نو دا دې مطلق تضعيف نشى گنړلې. امام نسائى رحمه الله دا قسم جملې د هغه کس په باره کښې فرمائي چې "حافظ" نه وى.

---

[1] حواله بالا

[2] تقريب التهذيب(ص٤٢٥) رقم(٥٠٨٣)-

[3] الضعفاء الكبير للعقيلى(٣/٢٨٩) رقم(١٢٨٩)-

[4] حواله بالا

[5] حواله بالا

[6] الكامل لابن عدى(٥/١١٦٩)-

[7] الكامل(٥/١١٦) وميزان الاعتدال(٣/٢٨٢) رقم (٦٤١٤)-

[8] السنن الصغرى كتاب المناسك الحج باب اذا اشار المحرم الى الصيد فقتله الحلال رقم (٢٨٦٩)-

[9] تهذيب الكمال(٢٢/١٧٠)-

[10] الكامل لابن عدى(٥/١١٦)-

[11] تهذيب التهذيب(٨/٨٣)-

مطلقا ضعيف گڼړل مقصود نه دی([1])

دغه شان د امام ابوداود رحمه الله تنقید هم ددې "حدیث البهیمة" په بنا باندې دې.چنانچه هغوی چې چرته "لیس هو بذلك" اوفرمائیل نو هلته ئې دهغې نه پس د علت په طور ددې خبرې وضاحت اوکړو "روی عن عکرمة عن ابن عباس من اتی بهیمة فاقتلوه"([2])

دغه شان امام بخاری رحمه الله هم فرمائی "روی عن عکرمة فی قصة البهیمة فلا ادری سمع ام لا"([3])

دغه وجه ده چې امام ابن عدی رحمه الله په دې کښې اکثر اقوال په خپل سند سره نقل کولو نه پس اوفرمائیل:

"عمرو بن ابی عمرو له احادیث عن انس غیر ما ذکرت وروی عنه مالك وهو عندی لا باس به لان مالکا لا یروی الا عن ثقة او صدوق"([4])

یعنی "د عمرو بن ابی عمرو د حضرت انس رضی الله عنه نه د مذکوره حدیث نه علاوه نور هم روایات دی،د هغوی نه امام مالک رحمه الله هم روایت کړې دې،هغه زما په نیز "لا باس به" دی ځکه چې امام مالک د ثقه نه یا د صدوق نه روایت کوی"

بیا حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې علماء ته اصل کلام د دد د عکرمه نه روایت باندې دې.او امام بخاری رحمه الله دده د عکرمه په طریق سره یو روایت هم نه دې اخستې.بلکه په صحیح بخاری کښې دده صرف شپږ احادیث نقل دی.څلور د حضرت انس رضی الله عنه په واسطې سره. یو حدیث د "سعید بن جبیر عن ابن عباس" په طریق سره او یو د "سعید بن ابی سعید مقبری عن ابو هریره رضی الله عنه" په طریق سره. او د "عکرمه عن ابن عباس" په طریق سره امام بخاری یو حدیث هم اخستې نه دې.([5])

حافظ ذهبی ټول احوال مخکښې راوستلو سره ددوی باره کښې فیصله کړې ده چې "حدیثه صالح حسن منحط من الدرجة العلیا من الصحیح"([6]) یعنی" دده احادیث حسن دی، خو بیا هم صحیح د اوچتې درجې نه کم دی"

اگرچه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې حق دا دې چې "علیا" لفظ حذف کول پکار دی([7])

---

[1]) عن امام نسائی ینقل هکذا ای(لیس بذلک القوی" فی حق احمد بن بشیر الکوفی. وفی هذا ق الحافظ "فاما تضعیف النسائی له فمشعر بانه غیر حافظ" هدی الساری(ص۳۸۶)-

[2]) تهذیب الکمال(۱۷۰/۲۲)-

[3]) تهذیب التهذیب(۸۳/۸)-

[4]) الکامل لابن عدی(۱۱۷/۵)-

[5]) هدی الساری(ص۴۳۲)-

[6]) میزان الاعتدال(۲۸۲/۳)-

[7]) تهذیب التهذیب(۸۳/۸)-

دغه شان ابن القطان رحمه الله او فرمائيل "الرجل مستضعف واحاديثه تدل على حاله"[1] يعنی ددې سړی تضعيف شوې دې دده حديثونه دده په حال باندې دلالت کوی" نو حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی "ما هو بمستضعف ولا بضعيف نعم ولا هو فی الثقة کالزهری وذويه"[2]

يعنی نه خو دده تضعيف شوې دې او نه په واقع کښې ضعيف دې البته هغه د امام زهری او د هغوی د طبقې د راويانو په شان نه دی"

ګويا د هغه په باره کښې انصاف والا رائې داده چې دوی زيات قوی خو نه دی خو ددوی احاديث د رد قابل هم نه دی، بلکه د احتجاج اود استشهاد قابل دی، دغه رنګې د اصول سته ټولو مصنفينو ددوی روايات اخستې دی.[3] والله اعلم

د ابوجعفر منصور د خلافت په شروع کښې ددوی وفات شوې وو[4] رحمة الله تعالى رحمة واسعة

④**سعيد بن ابی سعيد المقبری:** دا ابوسعيد بن ابی سعيد کيسان مقبری مدنی رحمه الله دې، ددوی حالات د کتاب الايمان "باب الدين يسر" دلاندې تير شوې دی[5]

⑤**حضرت ابوهريره رضی الله عنه:** دحضرت ابوهريره رضی الله عنه حالات دکتاب الايمان "باب امور الايمان" د لاندې تير شوې دی[6]

**قوله: انه قال: قيل: يارسول الله:** حضرت ابوهريره رضی الله عنه فرمائی چې تپوس اوکړې شو چې يا رسول الله...

د ابوذر او کريمه په نسخو کښې "قيل" دې، او په نورو نسخو کښې "قيل" نشته، او دا صحيح ده چې دلته "قيل" پکار نه دې، غالباً چې "قلت" وو نو د يو راوی يا د کوم کاتب د تصرف نه "قيل" شو[7]

ځکه چې په خپله امام بخاری دا روايت مخکښې "کتاب الرقاق کښې ذکر کړې دې، په هغې کښې دی "انه قال: قلت: يا رسول الله..[8]

دغه شان سنن نسائی کبری کښې هم "قلت" دې[9]

---

[1] ميزان الاعتدال(٢٨٢/٣)-
[2] حواله بالا
[3] تهذيب الكمال(١٧١/٢٢) وهدی الساری(ص٤٣٢)-
[4] تهذيب الكمال(١٧١/٢٢) وتفصيله فی(التذييل على كتاب تهذيب التهذيب(ص٣٠٥_٣٠٧)-
[5] كشف البارى(٣٣٦/٢)-
[6] كشف البارى(٦٥٩)-
[7] فتح البارى(١٩٣/١)-
[8] صحيح البخارى(٩٧٢/٢) كتاب الرقاق باب صفة الجنة والنار،رقم(٦٥٧٠)-
[9] السنن الكبرى للنسائى(٤٦٢/٣) كتاب العلم باب الحرص على العلم رقم(٥٨٤٢)-

د اسماعیلي په روایت کښې دي "انه سال..."[1]

د ابونعیم په روایت کښې دي "انا اباهریرة قال: یا رسول الله..."[2]

لهذا دا خبره آخري ده چې "قیل" تصحیف دې، والله اعلم

**قوله: من اسعد الناس بشفاعتك یوم القیامة؟:** د قیامت په ورځ ستا د شفاعت د ټولو نه زیات حقدار سعادت مند به څوک وي؟

**د شفاعت باره کښې د اهل سنت والجماعة او معتزلو اختلاف:** ددې حدیث نه دا معلومه شوه چې حضورپاک ﷺ به د قیامت په ورځ د ډیرو خلقو شفاعت کوي، او دا د اهل سنة والجماعة مذهب دې، خوارج او بعضې معتزله د شفاعت نه انکار کوي[3]

خوارج او معتزله د قرآن کریم آیتونو ﴿فما تنفعهم شفاعة الشافعین﴾[4] او ﴿ما للظلمین من حمیم ولاشفیع یطاع﴾[5] نه استدلال کوي او د حدیث باب او ددې پشان د نورو د شفاعت د حدیثونو تاویل کوي چې ددې نه مراد د درجاتو اوچتوالې او زیاتوالې د ثواب دې[6]

خو اول خو ددوی د آیت نه استدلال صحیح نه دې ځکه چې په دې کښې د کفارو د شفاعت نفي ده، او اهل سنة د مذنبینو او د ګناهګارو د شفاعت قائل دي[7]

او بیا احادیث د شفاعت صریح سره سره متواتر هم دي[8] لهذا نه خو د هغې بې ځایه تاویل کیدې شي او نه د هغې نه انکار کیدې شي.

**دشفاعت قسمونه:** قاضي عیاض رحمه الله فرمائي چې د شفاعت پنځه قسمونه دي:

① .. د ټولو نه اول شفاعت "شفاعت عظمی" دې چې حضورپاک ﷺ به د خلقو د محشر د ویرې نه د بچ کولو د پاره او د حساب کتاب شروع کولو د پاره کوي.

② .. دویم شفاعت به د هغوی د څه خلقو جنت ته بغیر حساب داخلیدو د پاره وي.

③ .. دریم شفاعت به د هغه خلقو باره کښې وي چې د خپلو اعمالو په وجه به د اور قابل جوړ شوي وي، نو د شفاعت نه پس به هغوی بغیر د شفاعت نه جنت ته داخل کړې شي.

④ .. څلورم شفاعت به د هغه ګنهګارو په باره کښې وي چې جهنم ته به داخل کړې شوې وي او د سفارش نه پس به د هغه ځائې نه راویستلې شي.

---

[1] فتح الباری (۱۹۳/۱)-

[2] حواله بالا

[3] شرح العقائد النسفیة مع شرحه النبراس (۲۳۸ و ۲۳۹) وعمدة القاری (۱۲۷/۲)-

[4] المدثر ۴۸)-

[5] سورة غافر /۱۸)-

[6] عمدة القاری (۱۲۷/۲)-

[7] حواله بالا

[8] حواله بالا)-

⑤ پنځم سفارش به د جنتیانو په جنت کښې د درجو د اوچتولو د پاره وی.ددې معتزله انکار نه کوی.
په دې کښې صرف رومبې او دویم شفاعت حضورپاک ﷺ سره خاص دې.
قاضی عیاض رحمه الله د شپږم شفاعت هم استدراک کړې دې،او هغه د ابوطالب په عذاب کښې د تخفیف دې.
علامه قرطبی رحمه الله د یو اووم شفاعت هم اضافه کړې ده،چې حضورپاک ﷺ به د خپل امت د پاره سفارش کوی چې د ټولو خلقو نه دې مخکښې جنت ته داخل کړې شی.
حافظ رحمه الله فرمائی چې په کوشش سره ماته یو اتم سفارش هم میلاؤ شو،هغه دا چې د کومو خلقو نیکئ او ګناهونه برابر شوې وی،د هغوی د جنت ته د داخلیدو سفارش به کولې شی.
دغه شان به یو بل سفارش د هغه خلقو باره کښې وی چاسره چې د لااله الاالله نه سوا بله نیکی نه وی[1] والله اعلم

**قوله:** قال رسول الله ﷺ:لقد ظننت یا ابا هریرة،ان لا یسألنی عن هذا الحدیث احد اول منك؟ لما رأیت من حرصك علی الحدیث: حضورپاک ﷺ اوفرمائیل چې ځما خیال دغه وو چې ددې خیز په باره کښې به ستا نه بغیر بل څوک دا تپوس نه کوی،ځکه چې ځه ستا د حدیثو شوق ګورم.

"اول" رفع او نصب دواړه وئیلې شی،رفع د "احد" صفت یا ددې بدل ګرځولو سره.او نصب خو یا به د "ظننت" مفعول ثانی ګرځولو سره یا د "احد" نه حال ګرځولو سره وی،"احد" اګرچه نکره ده خو د نفی راتلو سره کیدلو د وجه دې لره ذوالحال جوړول صحیح دی، ځنګه چې وئیلې شی "ماکان احد مثلك" دغه شان "اول" د ظرفیت د وجه منصوب ګرځولې شی[2]۔ والله تعالی اعلم

**قوله:** اسعد الناس بشفاعتی یوم القیامة من قال: لااله الاالله،خالصا من قلبه او نفسه: ځما د سفارش به د قیامت په ورځ هغه کس زیات مستحق وی چا چې په اخلاص د زړه نه لااله الاالله وئیلې وی.

په "قلبه" او"نفسه" کښې "او" د شک د پاره دې،خو مراد او مطلب د دواړو یو دې[3].

**یو اشکال او د هغې جواب:** دلته یو اشکال دا کیږی چې "اسعد" اسم تفضیل دې،چې ددې خبرې تقاضا کوی چې مفضل او مفضل علیه په نفس فضیلت کښې شریک وی،لهذا دلته به دا معنی راوځی چې څوک د "لااله الاالله" منونکې وی هغه به مطلقا د هغوی ﷺ د شفاعت قابل

[1] شرح النووی لصحیح مسلم(١٠٤/١) کتاب الایمان باب اثبات الشفاعة واخراج الموحدین من النار وفتح الملهم(٣٦١/١) وعمدة القاری(١٢٧/٢، ١٢٨)-
[2] عمدة القاری(١٢٦/٢) وفتح الباری(١٩٣/١)
[3] فتح الباری(١٩٣/١)-

وی.او څوک چې د زړه د اخلاص نه منونکې وی هغه به زیات حقدار وی.حالانکه چې څوک نې د زړه د اخلاص نه نه وائی،صرف په ژبه سره اووائی او د هغه په زړه کښې دا خبره نه وی نو هغه به چرې هم د هغوی ﷺ د سفارش قابل نه وی.ځکه چې هغه منافق دې

ددې جواب دادې چې دلته "اسعد" د"سعید" په معنی باندې دې ځنګه چې وئیلې شی "الناقص والاشج اعدلا بنی مروان" ای عاد لا بنی مروان"ناقص" د یزید بن ولیدبن عبدالملک لقب دې،او "اشج" حضرت عمر بن عبدالعزیز ته وئیلې شی.دلته "اعدلا" د"عادلا" په معنی کښې دې، ګنی باقی بنومروان خو به ټولو ظلم کولو(١)

دویم جواب دادې چې په اصل کښې لا اله الا الله په اخلاص سره وئیلو والا د پاره مختلف درجې به وی،یو د خلوص ابتدائی درجه ده چې دکومې نه د نفاق نفی کیږی.هغه خو د خلاصې موندلو د پاره د هر چا په حق کښې شرط ده،که چرې هغه نه وی نو سړې خو بالکل مومن نه دې،ددې نه پس د خلوص مختلفې درجې دی.د بعضو خلوص د اولې درجې نه اوچت وی.او د بعضو د دویمې درجې نه اوچت وی وهکذا. اوس چې د کوم سړی خلوص په لا اله الا الله کښې اوچتې درجې والا وی هغه به د ټولو نه زیات حقدار وی.او که د چا کم وی نو د دې نه پس به د هغې نمبر راځی(٢)

په حدیث باب "من قال لا اله الا الله خالصا من قلبه" کښې د خلوص نسبت چې "قلبه" طرف ته شوې دې،نو ددې نه هم دغه مبالغه په خیال کښې راځی،
علامه زمحشری لیکلی دی چې د کوم اندام نه یو کار اوشی،نو که ددې کار نسبت دې اندام طرف ته اوشی نو دا به د مبالغې د پاره مفید وی ځنګه چې وئیلې شی "هذا مما ابصرته عینی ومما سمعته اذنی ومما عرفه قلبی"(٣)
دلته هم د خلوص اضافت "قلب" طرف ته شوې دې په دې کښې به هم مبالغه وی او مبالغه زیادت فعل ته مستلزم ده.والله اعلم
**تنبیه**:په حدیث باب کښې اګرچې صرف لا اله الا الله ذکر دې خو دا د ټولې کلمې د پاره عنوان او شعار جوړ شوې دې،لهذا من قال لا اله الا الله "سره محمد رسول الله هم لګیدلې دې،والله اعلم
**نکته**:په دې حدیث کښې من قال لا اله الا الله قید سره د مشرک نه احتراز راغلو،او "خالصا من قلبه" نه منافق یقینی طور سره بهر شو(٤)،والله سبحانه وتعالی اعلم وعلمه اتم واحکم

---

(١) عمدة القاری(١٢٧/٢)-
(٢) فتح الباری(١٩٤/١)-
(٣) الکاشف عن حقائق غوامض التنزیل وعیون الاقاویل فی وجوه التاویل(٣٢٩/١) تحت تفسیر قوله تعالی:فانه اثم قلبه) (البقرة/٢٨٣)-
(٤) حواله بالا

## ٣٤-باب: كَيْفَ يُقْبَضُ الْعِلْمُ

دا دویم باب دې چې کوم لره امام بخاري اصالةً د "کیف" نه شروع کړې دې امام بخاری ددې ترجمة الباب د لاندې چې کوم روایات او آثار ذکر کړی دی د هغې نه معلومیږی چې د علم د اوچتولو صورت به دا وی چې عالمان به اوچت کړې شی او د هغوی علم به هغوی سره سره اوچت شی ځکه چې د هغوی نائبین به نه پیدا کیږی.[1]

**د اول باب سره مناسبت:** او مخکښې باب کښې د حرص حدیث ذکر دې او مذکوره باب کښې د رفع حدیث ذکر دې، په دواړو کښې د ضدیت نسبت دې وبضدها تتبين الاشياء. نو دې باب لره د مخکښې باب نه پس په دې خبره باندې د زور راوړلو د پاره راوړلې شو چې د علم د حاصلولو اهتمام دې اوکړې شی، ځکه چې علم به اوچت کړې شی لهذا ددې د اوچتولو نه مخکښې دې دا حاصلول او ددې نه فائده اخستل پکار دی.[2]

**مقصد د ترجمة الباب:** د امام بخاری مقصد د تعلیم اوتذکیر په اهتمام باندې خبرداري ورکول دی، ګویا دا وئیل ئې مقصود دی چې خلقو له د علماؤ نه د علم حاصلولو اهتمام کول پکار دی، ځکه چې د علم اوچتیدل د قیامت د قائم کیدلو سبب دې. او قیامت به قائمیږی د الله د ناراضګئ په وخت کښې، هر کله چې ګناهونه زیات شی، لهذا د ګمراهی د سبب اختیارولو نه بچ کیدل ضروری دی.

ګویا چې امام بخاری صورة دا فرمائیلې دی چې دعلم د ضائع کیدلو صورت به څه وی، نو روایت نه ئې اوښودل چې عالمان به ختم شی، او دې سره سره به د هغوی علم هم اوچت شی، خو په حقیقت کښې امام بخاری دا فرمائیل غواړی، چې علم حاصلول پکار دی او علماء له د تعلیم او تبلیغ اهتمام کول پکار دی، ځکه چې کله د علم ختمیدل د عالمانو ختمیدل دی نو اوس خلقو له پکار دی چې د عالمانو د اوچتولو نه پس د هغوی نه علم حاصل کړی او علماء له دا پکار دی چې خپل علمونه نورو ته اورسوی.

حضرت شیخ الهند رحمه الله هم دا خبره ارشاد فرمائیلې ده، چنانچه هغوی فرمائی:

" مولف رحمه الله د علم د اوچتولو حالت ښودل غواړی، نو په حدیث کښې صفا موجود دی "لا يقبض انتزاعا ولكن يقبض بقبض العلماء" چې د هغې نه په ښکاره معلومه شوه، چې د عالم نه د علم د تلو منشاء تبلیغ او اشاعت نه کول دی، که سلسله د تعلیم او اشاعت شروع وی نو دا حالت به څنګه راشی؟ کما مرفی باب رفع العلم_ بالجمله د مولف غرض بلکه د حدیث منشا د اشاعت علم تاکید او تعمیم دې، د عمربن عبدالعزیز د ارشاد نه ددې ترجمې غرض صفا ښکاره کیږی. او د مخکښې ترجمې تشریح هم اوشوه. د اول باب پورا والې په دویم باب کښې د مؤلف عادت دې او د ذکر شوې ارشاد نه دا هم ښکاره شوه چې د علم خورولو د پاره د

---

[1] الكنز المتواری (٣٣٣/٢)-
[2] عمدة القاری(١٢٨/٢)-

عالمانو په ذمه علانيه علمي مجلسونه قائمول ضروري دي، په دې كښې د متعلقينو د پاره آسانتيا ده او د هغوى د پاره ډير ترغيب او تحريص دې، ددې مقابله كښې چې د يو مجلس خاصوالې اوشى او بل څه قسم قيد اولګولې شى نو په دې صورت كښې صحيح طريقې سره استفاده او افاده نشى كيدلې، او دا د علم هلاكت دې فالحذر الحذر [١]

وَكَتَبَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ إِلَى أَبِي بَكْرِ بْنِ حَزْمٍ انْظُرْ مَا كَانَ مِنْ حَدِيثِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَاكْتُبْهُ، فَإِنِّي خِفْتُ دُرُوسَ الْعِلْمِ وَذَهَابَ الْعُلَمَاءِ، وَلاَ تَقْبَلْ إِلاَّ حَدِيثَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم -، وَلْتُفْشُوا الْعِلْمَ، وَلْتَجْلِسُوا حَتَّى يُعَلَّمَ مَنْ لاَ يَعْلَمُ، فَإِنَّ الْعِلْمَ لاَ يَهْلِكُ حَتَّى يَكُونَ سِرًّا.

**حضرت عمر بن عبدالعزيز:** دوى امام العادل الحافظ العلامة المجتهد الزاهد امير المومنين عمر بن عبدالعزيز بن مروان بن الحكم بن ابى العاص بن امية بن عبد الشمس بن عبد مناف بن قصى بن كلاب رحمه الله دې [٢]

دوى د عبدالله بن جعفر بن ابى طالب، سائب بن يزيد، سهل بن سعد رضي الله عنهم نه روايت كوى، حضرت انس رضي الله عنه د دوى شاته مونځ اوكړو او وئې فرمائيل: ما رايت احدا اشبه صلاة برسول الله صلى الله عليه وسلم من هذا الفتى [٣]

يعنى په مونځ كښې ددې ځوان نه زيات د حضور صلى الله عليه وسلم مشابهت اختيارولو والا ما څوك ليدلې نه دى.

ددې نه علاوه د سعيد بن المسيب، ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف، ابوبكر بن عبدالرحمن، عامر بن سعد، يوسف بن عبدالله بن سلام رحمهم الله نه روايت كوى.

دده نه ابوسلمه (وهو شيخه ايضا) ابوبكر بن حزم، رجا بن حيوة، امام زهرى، ايوب سختيانى، حميد الطويل او يحيى بن سعد الانصارى رحمهم الله وغيره ډير حضرات روايت نقل كوى [٤]

حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله ٦١ يا ٦٣ هجرى كښې پيدا شو [٥] ددوى د مور بى بى نوم بعضې حضراتو ام عاصم حفصه بنت عاصم بن عمر بن الخطاب ښودلې دې، او بعضې حضراتو ليلى بنت عاصم بن عمر بن الخطاب [٦]

په ماشوم والى كښې يو خل اصطبل ته لاړو، هلته يو اس ورته لته ورکړه، چې د هغې نه ئې په تندى باندې زخم راغلو، د هغه وخت نه د "اشج" لقب پې كيښودې شو، چنانچه هغوى ته

---

[١] الابواب والتراجم (ص ٥٣، ٥٤)-
[٢] تهذيب الكمال (٢١/ ٤٣٢، ٤٣٣) وسير اعلام النبلاء (٥/ ١١٤)-
[٣] تهذيب الكمال (٢١/ ٤٣٤)- وسير اعلام النبلاء (٥/ ١١٤)-
[٤] تهذيب الكمال (٢١/ ٤٣٤-٤٣٦) وسير اعلام النبلاء (٥/ ١١٤، ١١٥)
[٥] تهذيب الكمال (٢١/ ٤٣٦)-
[٦] تهذيب الكمال (٢١/ ٤٣٣)-

اشج بنی امية هم ونيلي شي[1]
نقل دی چي حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل "ان من ولدی رجلا بوجهه شتر[2] يملأ الارض عدلا"[3] خما په اولاد کښې به يو کس داسې وی چې د هغه په مخ به زخم وی هغه به زمکه د انصاف نه ډکه کړی دي اوس لا وړوکې وو چې قرآن ئې ياد کړو. يو خل په ماشوم والی کښې په جړا شو، مور ترې نه تپوس اوکړو نو ونې ونيل چې ماته مرګ رایاد شوې وو، خکه مې اوژړل[4]
د د پلار ته چې کله د مصر ولايت ميلاؤ شو نو دې لا بالغ نه وو، دوی چې کله د هغه خائې نه د خپل کور والاسره روان شو، نو دوی اوفرمائيل چې تاسو ما مدينې ته اوليږئ خه به هلته د علماؤ فقهاؤ په خدمت کښې اوسيږم. د هغوی آداب به زده کوم، چنانچه هغوی هلته کښې اوليږلې شو. هلته مدينه منوره کښې ئې علم حاصلولو. او د ماشوم والی نه په دوی کښې علمی استعداد او د پوهنوالې نښې پيدا شوې[5]
داود بن ابی هند فرمائی يو ورځ چې کله عمر بن عبدالعزيز د مسجد نبوی په يو دروازه باندې داخل شو نو يو سړی اوئيل چې اوګوره فاسق (عبدالعزيز بن مروان) خپل خوې مونږ ته راوليږلو، چې فرائض او سنن زده کړی، او هغه دا ګنړی چې د هغه نه پس به دې خليفه جوړيږی. او د عمر بن الخطاب په سيرت باندې به چليږی. داود بن ابی هند فرمائی چې په الله قسم چې دا ټولې خبرې د مرګ نه مخکښې مونږ اوليدلې[6]
د پلار د وفات نه پس عبدالملک بن مروان حضرت عمر بن عبدالعزيز راوغوښتلو او د خپل اولاد پشان ئې اوساتلو، او بيا د خپلې لور فاطمه بنت عبدالملک سره ورله ئې نکاح اوکړه، چې د هغې په باره کښې يو شاعر ونيلي دی:

بنت الخليفة، والخليفة جدها :: اخت الخلائف، والخليفة زوجها[7]

حافظ ابن کثير رحمه الله نقل کوی چې خوک زنانه ددې صفتونو مالکه وی او څوک نه وی[8]
د وليد بن عبدالملک په زمانه کښې ۸۶ نه ۹۳ هجری پورې د مدينې منورې ګورنر وو، په دې دوران کښې د هغه خائې د علماؤ او فقهاء: سليمان بن يسار، قاسم، سالم، خارجه رحمهم الله وغيره په رائې او مشورې سره کار کولو[9]

---

[1] تهذيب الكمال(۲۱/۴۳۷)وسيراعلام النبلاء(۵/۱۱۶،۱۱۵)-
[2] شتر(س) شترا(شليدل) القاموس الوحيد(ص۸٤١)-
[3] سيراعلام النبلاء(۵/۱۱۶)-
[4] تهذيب الكمال(۲۱/۴۳۷) وسير اعلام النبلاء(۱۱۶)-
[5] سيراعلام النبلاء(۵/۱۱۷)-
[6] تهذيب الكمال(۲۱/۴۳۸) وسير اعلام النبلاء۵/۱۱۶)-
[7] البداية والنهاية(۶/۳۳۲) وسيراعلام النبلاء(۵/۱۱۱۷)-
[8] البداية والنهاية (۶/۳۳۲)-
[9] سير اعلام النبلاء(۵/۱۱۷، ۱۱۸) و تهذيب الكمال(۲۱/۴۳۹)_

د وليد بن عبدالملک نه پس سليمان بن عبدالملک خليفه جوړ شو.نو حضرت عمر بن عبدالعزيز هغوى خپل خصوصى مقرب او وزير جوړ کړو،چنانچه هم د هغوي د مشورې مطابق د حجاج بن يوسف مقرر شوي کارکنان ئې معزول کړل.د مونځ وختونه زوستو کړې شوي وو هغې لره ئې په خپل وخت باندې د کولو پابندي اوکړې شوه.(١)

چې کله سليمان په مرض الموت کښې مبتلا شو او آخر وخت ته اورسيدلو نو دا غم ورته راغلو چې څوک خليفه جوړکړې شی،دهغه يو ځوئې د قسطنطنيه په مهم کښې تلې وو، دويم ځوئې ئې وړوکې وو، په دغه وخت کښې الله تعالى د عالم اسلام لوئې محسن عالم ربانى رجاءبن حيوة رحمه الله په ذريعه سره کار واخستلو.هغوى ډير هوښيارتيا سره د حضرت عمر بن العزيز نوم پيش کړو او هغه خليفه مقرر شو.(٢)

دغه شان يو ځل بيا خلافت راشده قائم شو.

د خليفه جوړيدلو نه پس هغوى د خاندان ټول مال په بيت المال کښې جمع کړو(٣)او بيا ئې هغه د ملک تدبير اوکړو چې په حقيقت کښې ازمرى او چيلۍ د يو ګودر نه اوبه څکل شروع کړل.(٤)

په حديث او علم کښې د هغوى مرتبه څه وه؟ ددې اندازه د عالمانو ددې قول نه کيږى

ابن سعد رحمه الله فرمائى "وكان ثقة مامونا له فقه وعلم وورع،وروى حديثا كثيرا وكان امام عدل رحمه الله(٥)

امام مجاهد رحمه الله فرمائى "اتيناه نعلمه فما برحنا حتى تعلمنا منه"(٦)

ايوب رحمه الله فرمائى "لا نعلم احدا ممن ادركنا كان آخذ عن نبى ﷺ يعنى عمربن عبدالعزيز"(٧)

يعنى مونږ چې څومره عالمان ليدلى دى په هغې کښې د حضرت عمر بن العزيز نه زيات مو څوک طالب حديث ليدلى نه دې.

عمروبن ميمون رحمه الله فرمائى "ماكانت العلماء عند عمربن عبدالعزيز الا تلامذة"(٨)

ميمون بن مهران رحمه الله فرمائى "اتينا عمربن عبدالعزيز ونحن نرى انه يحتاج الينا فما كنا معه الا تلامذة"(٩)

حافظ ذهبى رحمه الله ددوى په ژوند باندې يو جامعه تبصره کړې ده.هغوى فرمائى:

قد كان هذا الرجل حسن الخلق والخُلق.كامل العقل حسن السمت،جيد السياسة،حريصا على العدل بكل

---

(١) سيراعلام النبلاء(١٢٥/٥)-
(٢) سيراعلام النبلاء(١٢٣/٥، ١٢٦)-
(٣) سيراعلام النبلاء(١٢٩/٥)-
(٤) البداية والنهاية(٣٤٢/٦)-
(٥) تهذيب الكمال(٤٣٦/٢١)-
(٦) تهذيب الكمال(٤٤٠/٢١)-
(٧) تهذيب الكمال(١٧٥/٦) رقم الترجمة(٢٠٧٩)-
(٨) تهذيب الكمال(٤٤٠/٢١) وسيراعلام النبلاء(١٢٠/٥)-
(٩) سيراعلام النبلاء(١٢٠/٥)-

ممکن، وافر العلم فقیه النفس، ظاهر الذکاء والفهم، اواها منیبا، قانتا لله، حنیفا، زاهدا مع الخلافة، ناطقا بالحق مع قلة المعین وکثرة الامراء الظلمة الذین ملوه، وکرهوا محاقته لهم ونقصه اعطیاتهم واخذه کثیرا مما فی ایدیهم مما اخذوه بغیرحق فما زالوا به حتی سقوه السم فحصلت له الشهادة والسعادة وعد عند اهل العلم من الخلفاء الراشدین والعلماء العاملین" [1]

یعني" دا سړی د صورت او سیرت په لحاظ سره ښه، په عقل کښې پورا، په آدابو کښې بهتر، د سیاست په اعتبار سره جید، د هر ممکن عدل او انصاف حریص، په علم کښې اکثره حصه لرونکې، فقیه النفس، په سوچ او عقل کښې ممتاز، جړیدونکې او الله ته رجوع کولو والا، د الله تابعدار، د هر قسم بې دینۍ نه بیزاره، د خلافت باوجود د دنیا نه بې شوقه وو، باوجود د مددګارانو د کمی او د ظالمانو د زیاتی نه، رښتیا ویونکې وو، دا ظالمان بادشاهان د هغه نه تنګ شوې وو، دوی سره به ئې تعاون نه کولو، هغوی ددوی په وظیفو کښې کمی اوکړو، او څه چې ئې په زور د خلقونه اخستلې وو هغه ئې ترې واپس واغښتل، خکه خلق دده نه تنګ راغلل تر دې چې هغوی ته ئې زهر ورکړل. دغه شان هغوی ته شهادت او سعادت حاصل شو، د اهل علمو په نیز دده شمیر په خلفائې راشدین او باعمل عالمانو کښې اوشو."

د علماؤ یو جماعت چې په هغې کښې امام احمد بن حنبل رحمه الله هم دې وائي چې حضرت عمر بن عبدالعزیز هغه مجددینِ د دین نه وو [2] چې د هغوی باره کښې حضور ﷺ اوفرمائیل چې "ان الله یبعث لهذه الامة علی راس کل مائة سنة من یجدد لها دینها" [3] یعنی الله تعالی به په دې امت کښې د هر سل کالو نه پس یو داسې سړې رالیږی چې هغه به د هغه دین تازه کوی"

ددوی د خلافت وخت تقریبا دوه نیم کاله وو [4]

ددوی وفات په د "سل" په مرض سره اوشو، او دا هم وئیلې شوې دی چې حاسدینو د دوی غلام ته زر دیناره ورکړل او ددې په ذریعه سره ئې هغه ته زهر ورکړل، چې د هغې نه دوی بیمار شول، او هر کله چې ورته اوئیلې شوو چې دوی ته خو زهر ورکړې شوې دی، نو وئې فرمائیل چې په کومه ورځ زهر راکړې شوې وو ما ته هغه ورځ پته لیګیدلې وه، دې نه پس چې هغوی ترې تپوس اوکړو چې تا داسې ولې اوکړل؟ نو هغه صفا صفا اووئیل چې ما ته زر دیناره میلاؤ شوې دی، وئې فرمائیل چې هغه دینار راوړه، د هغه نه ئې دینار واخستل او بیت المال کښې جمع کړل، او ورته ئې اوفرمائیل چې ته یو داسې خائې ته لاړ شه چې هلته او نه نیولې شې. [5]

د حضرت عمربن عبدالعزیز په تجدیدی کارنامو کښې یو لویا کارنامه د حدیث د حفاظت

---

[1] سیر اعلام النبلا(۵/۱۲۰)-
[2] البدایة والنهایة(۶/۳۴۷)-
[3] سنن ابی داود فاتحة کتاب الملاحم، باب ما یذکر فی قرن المائة رقم(۴۶۹۱)-
[4] تهذیب الکمال(۲۱/۴۴۱)-
[5] البدایة والنهایة(۶/۴۳۹)-

انتظام او اهتمام ده،چنانچه د حدیث د جمع کولو او د حدیث د لیکلو باقاعده او منظم اهتمام ددوی په حکم او مشرتیٔ کښې اوشو.[1]

۱۰۱ یا ۱۰۲ هجری کښې د خلیفه راشد حضرت عمربن عبدالعزیز رحمه الله انتقال اوشو.[2]

رحمه الله تعالی ورضی عنه واجزل مثوبه واکرمه فی دار الکرامة والرضوان.

**ابوبکر بن حزم**:دا ابوبکر بن محمد بن عمرو بن حزم انصاری خزرجی نجاری مدنی رحمه الله دې،ابوبکر ددوی نوم دې،بعضې حضراتو ددوی کنیت ابومحمد ذکر کړې دې.[3]

دوی د خپل پلار نه علاوه د عباد بن تمیم، سلمان الاغر،عبدالله بن قیس بن مخرمه، عمرو بن سلیم زرقی، ابوحبه بدری رضی الله عنه او د خپلې خاله عمره رحمها الله نه روایت کړې دې.

دده نه روایت کوونکو کښې د ده د دوه خامنو عبدالله او محمد نه علاوه امام اوزاعی، یحیی بن سعید الانصاری او اسامه بن زید لیثی رحمهم الله وغیره دی.[4]

امام یحیی بن سعید رحمه الله او عبدالرحمن بن یوسف بن خراش وغیره فرمائی "ثقة".[5]

ابن حبان دوی په خپل کتاب الثقات کښې ذکر کړې دی.[6]

امام نووی فرمائی "وهوانصاری مدنی من تابعی التابعین وثقات المسلمین وائمتهم".[7]

واقدی رحمه الله فرمائی "وکان ثقة کثیر الحدیث".[8]

ابوبکر بن حزم رحمه الله سلیمان بن عبدالملک او حضرت عمر بن عبدالعزیز په زمانه کښې د مدینه منوره امیر هم پاتې شو،او قاضی هم،دغه شان هغوی د موسم حج امیر هم پاتې شوې دې،[9] د ده د وفات په کال کښې ډیر اقوال دی،[10]حافظ ذهبی رحمه الله ۱۲۰ هجری ته ترجیح ورکړې ده.[11]

**تنبیه**: مونږ بره ذکر کړې دی چې دده نوم ابوبکر دې او کنیت ئې ابومحمد دې،حافظ ابن حجر رحمه الله دده کنیت ابوعبدالملک نقل کړې دې[12]چې سبقت قلمی ده.ابوعبدالملک دده د

---

[1] کشف الباری(۲۸/۱)-
[2] تهذیب الکمال(۴۴۶/۲۱) و تاریخ الاسلام للذهبی(۱۸۷/۷، ۲۰۶)-
[3] تهذیب الکمال(۱۳۷/۳۳)-
[4] تهذیب الکمال(۱۳۷/۳۳، ۱۳۸)-
[5] تهذیب الکمال(۱۳۹/۳۳)-
[6] کتاب الثقات لابن حبان(۵۶۱/۵)-
[7] تهذیب الاسماء واللغات(۱۹۶/۲)-
[8] تهذیب الکمال(۱۴۲/۳۳)-
[9] تهذیب الکمال(۱۳۷/۳۳)-
[10] تهذیب الکمال(۱۴۲/۳۳،۱۴۳)-
[11] الکاشف(۴۱۲/۲)رقم(۶۵۳۷)-
[12] فتح الباری(۱۹۴/۱)-

پلار کنیت دې نه چې د ابوبکر[1] رحمه الله تعالی رحمة واسعة

**قوله: انظر ما کان من حدیث رسول الله ﷺ فاکتبه فاني خفت دروس العلم وذهاب العلماء:** اوګوره چې د حضورپاک ﷺ نه چې کوم حدیثونه تاته میلاؤ شوي دي هغه اولیکه ځکه چې ماته ویره ده چې د دین علم به ختم شي او عالمان به لاړ شي.

**دحضرت عمر ﷺ دمذکوره اثر تخریج:** امام بخاري د حضرت عمر بن عبدالعزیز دا اثر دلته معلق اخستلې دې او مخکښې ئې ددې سند ذکر کړې دې، دغه شان ئې دا موصول کړو.

دا اثر امام محمد رحمه الله په موطا کښې ذکر کړې دې: اخبرنا مالك اخبرنا یحیی بن سعید ان عمر بن عبدالعزیز کتب الی ابي بکر بن عمرو بن حزم ان: انظر ما کان من حدیث رسول الله ﷺ او سنته او حدیث عمر او نحو هذا فاکتبه لي فاني خفت دروس العلم وذهاب العلماء[2]

یعنې حضرت عمربن عبدالعزیز حضرت ابوبکر بن عمرو بن حزم ته اولیکل چې د حضور ﷺ احادیث، د هغوی سنت یا د حضرت عمر ﷺ سنتونه تلاش کړه، او هغه ماته راولیږه. ځکه چې ماته د علم د ختمیدلو او د علماء د اوچتولو ویره ده.

دغه شان امام دارمی رحمه الله په خپل سنن کښې دا موصولا نقل کړې دې، د هغې الفاظ دا دي

کتب عمر بن عبدالعزیز الی ابي بکر بن محمد بن عمرو بن حزم ان: اکتب الي بما ثبت عندك من الحدیث عن رسول الله ﷺ وبحدیث عمر، فاني قد خشیت درس العلم وذهابه[3]

دغه شان د دارمی په روایت کښې دا الفاظ دي.

کتب عمر بن عبدالعزیز الی اهل المدینة ان: انظروا حدیث رسول الله ﷺ فاکتبوه فاني خفت دروس العلم وذهاب اهله[4]

رامهرمزی رحمه الله هم په خپل سند سره نقل کړې دې:

کتب عمر بن عبدالعزیز الی اهل المدینة: انظروا ما کان من حدیث رسول الله ﷺ فاکتبوه فاني خفت دروس العلم وذهاب العلماء[5]

علامه هروی رحمه الله په ذم الکلام کښې د عبدالله بن دینار رحمه الله نه نقل کړې دی:

لم یکن الصحابة ولا التابعون یکتبون الحدیث انما کانو یؤدونها لفظا ویاخذونها حفظا الا کتاب الصدقات والشئ الیسیر الذی یقف علیه الباحث بعد الاستقصاء حتی خیف علیه الدروس واسرع فی العلماء الموت فامر

---

[1] تقریب التهذیب(۴۹۹) رقم(۶۱۸۲) ترجمة محمد بن حزم الانصاری نبه علی هذه المسامحة الشیخ محمد عوامة فی تعلیقاته علی الکاشف(۴۱۲/۲) رقم(۶۵۳۷)-

[2] الموطا للامام محمد(ص۳۹۱) ابواب السیر باب اکتتاب العلم رقم(۹۳۴)-

[3] سنن الدارمی(۱۳۷/۱) المقدمة باب من رخص فی کتابة العلم رقم(۴۸۷)-

[4] حواله بالا رقم(۴۷۷)-

[5] المحدث الفاضل بین الراوی والواعی(ص۳۷۳، ۳۷۴)-

المؤمنين عمر بن عبدالعزيز ابابكر الحزمي فيما كتب اليه ان: انظر ما كان من سنة او حديث عمر فاكتبه [۱]
يعني صحابه کرامو او تابعينو به حديثونه نه ليکل بلکه هغه به ئې په لفظونو کښې بيانول او په حافظه کښې به ئې محفوظ کول.البته کتاب الصدقات او نور څه لږ معمولي احاديث.چې د هغې علم د بحث او تلاش کولو نه پس کتونکې ته کيږي.تر دې چه د علم د ختميدلو ويره پيدا شوه او عالمان په تيزئي سره رخصت کيدل شروع شول.نو امير المومنين عمر بن عبدالعزيز ابوبکربن حزم ته په يو فرمان کښې حکم اوکړو.چې سنت يا د حضرت عمر رضي الله عنه احاديث چې ميلاؤ شي نو اوليکه:
امام ابونعيم رحمه الله په تاريخ اصبهان کښې دا الفاظ نقل کړې دی:

كتب عمر بن عبدالعزيز الى الافاق: انظروا حديث رسول الله ﷺ فاجمعوه واحفظوه فانى خفت دروس العلم وذهاب العلماء [۲]

**د تدوين ابتداء او د يوې شبهې ازاله:** حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله ليکلې دی چې ددې نه د تدوين حديث ابتداء معلوميږی [۳] يعنې د عمر بن عبدالعزيز د دور نه تدوين حديث شروع شو په مقدمه کښې تفصيل ذکر شوې دې چې د کتابت حديث کار د حضورپاک ﷺ په زمانه کښې شروع شوې وو،صحابه کرامو ددې باره کښې مستقلې تحتۍ تيارې کړې وې.البته په دې سلسله کښې سرکاری اهتمام حضرت عمربن عبدالعزيز اوکړلو [۴]
بعضې خلقو دلته دا اوګڼله چې امام بخاری دې اثر راوړلو سره دې خبرې ته اشاره کړې ده چې ابوبکر بن حزم د ټولو نه رومبې مدون د حديث دې [۵]
خو امام بخاری رحمه الله ته دا نسبت کول صحيح نه دی،هغوی خو اول د تدوين مسئلې ته توجه هم نه ده کړې.
چې تحقيقي طور سره اوکتلې شي نو مونږ په مقدمه کښې بيان کړې دی چې د ټولونه رومبې ابن شهاب زهری رحمه الله مدون دې. [۶]
عبدالعزيز بن محمد دراوردی رحمه الله فرمائی "اول من دون العلم وكتبه ابن شهاب" [۷]
دغه شان امام زهری رحمه الله فرمائی "امرنا عمر بن عبدالعزيز بجمع السنن، فكتبناها دفترا دفترا فبعث الى كل ارض له عليها سلطان دفترا [۸] حافظ سيوطی رحمه الله فرمائی:

---

[۱]) مقدمة تنوير الحوالک علی موطا مالک(ص۵) الفائدة الثانية)-
[۲]) تعليق التعليق(۸۹/۲)-
[۳]) فتح الباری(۱۹۵/۱)-
[۴]) کشف الباری(۲۶/۱، ۲۷)-
[۵]) مقدمة الساری(۷/۱)-
[۶]) جامع بيان العلم وفضله(۹۱/۱)-
[۷]) جامع بيان العلم وفضله(۸۸/۱)-
[۸]) جامع بيان العلم وفضله(۹۱/۱، ۹۲)-

اول جامع الحدیث والاثر :: ابن شهاب آمرله عمر[1]

صاحب نیل الامانی رحمه الله فرمائی "لعل ابن شهاب اول من جمع علی الاطلاق وتبعه هؤلاء[2]"
البته په دې خائې کښې د حافظ ابن حجر رحمه الله د کلام نه معلومیږی چې اول مدون ابوبکر بن حزم دې[3]
هم دا خبره علامه قسطلانی په مقدمه ارشاد الساری کښې هم لیکلې ده[4]
خو دې دواړو حضراتو مخکښې "باب کتاب العلم" کښې اعتراف او وضاحت کړې دې چې : ټولو نه وړمبې د حدیثو جمع کونکې او ترتیب ورکونکې هم زهری دې
چنانچه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی:

"اول من دون الحدیث شهاب الزهری علی راس المائة بامر عمر ابن عبدالعزیز ثم کثر التدوین ثم التصنیف، وحصل بذلك خیرا کثیرا، فلله الحمد"[5]

یعنی "د اولې صدئی په آخره کښې د ټولو نه مخکښې حدیث د عمر بن عبدالعزیز په حکم سره مدون کولو والا ابن شهاب زهری دې، بیا تدوین او تصنیف ډیر شو. او ددې نه الحمدلله ډیر خیر خور شو"
بالکل هم داسې عبارت قسطلانی هم نقل کړې دې[6]

علامه حازمی په خپله د امام زهری رحمه الله نه نقل کړې دی "لم یدون هذا العلم احد قبلی تدوینی"[7]
تر څو چې د ابوبکر بن حزم تعلق دې نو په دې کې څه شک نشته چې حضرت عمر بن عبدالعزیز دوی ته د تدوین حدیث حکم کړې وو، بلکه صرف ده ته نا، په هغه دور کښې اهل مدینه او اهل آفاق ته ئې هم لیکلې وو چې د حضورپاک ﷺ احادیث له ترتیب ورکړئی، څنګه چې دانصوص روستو مونږ د حضرت عمر بن عبدالعزیز په اثر کښې د تخریج په ضمن کښې ذکر کړې دی. ددې حکم په نتیجه کښې ابن شهاب هم حدیثونه جمع کړل او او ابوبکر هم، البته د ابن شهاب احادیث حضرت عمر بن عبدالعزیز ته راورسیدلو، او د ابن حزم حدیثونه راونه رسیدل، چنانچه امام ابن عبدالبر رحمه الله لیکلې دی "فتوفی عمر وقد کتب ابن حزم قبل ان یبعث بها الیه"[8]

[1]) الفیه الحدیث للسیوطی(ص۷)-
[2]) مقدمة اوجز المسالک(۱/۱۶)-
[3]) الفاظه "یستفاد منه ابتداء تدوین الحدیث النبوی" فتح الباری(۱/۱۹٤)-
[4]) مقدمة ارشاد الساری للقسطلانی(ص۷)-
[5]) فتح الباری(۱/۲۰۸)کتاب العلم.باب کتاب العلم)-
[6]) ارشاد الساری(۱/۲۰۷)کتاب العلم باب کتاب العلم)-
[7]) الاعتبار فی الناسخ والمنسوخ من الآثار(ص٤٥)-
[8]) التمهید لابن عبدالبر(۱/۸۱)-

ددې تړول تقرير نه دا خبره ښه واضحه شوه چې ابن شهاب رحمه الله على الاطلاق ړومبې مدون دې، او په دغه دور کښې تدوين کولو والو کښې ابوبکر بن حزم هم دې. والله اعلم بالصواب

**قوله:** ولا تقبل الا حديث النبي ﷺ ولتفشوا العلم ولتجلسوا حتى يعلم من لا يعلم فان العلم لا يهلك حتى يكون سرا: سوا د حضورپاک ﷺ د حديث نه بل څه مه قبلوئی. او علم خور کړئی او تعليم د پاره کينئ، دا چې څوک نه پوهيږی هغه ته دې اوښودلې شې ځکه چې د هغه وخت پورې به علم ضائع کيږی نا تر څو چې هغه پټ نه کړې شی.

ديو روايت مطابق "لا تقبل" تاء مثناه مفتوحه سره د نهی واحد حاضر معروف صيغه ده. دغه شان "لتفشوا" "افشاء" نه امر حاضر معروف صيغه ده. چې په هغې باندې "لام" داخل دې، او "لتجلسوا" هم د "جلوس" نه د امر حاضر معروف صيغه ده، په دې باندې هم لام راغلې دې.

دا درې واړه افعال "لا يقبل" "ليفشوا" او "ليجلسوا" ونيلې شوې دی[1]

دا عبارت د حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله د اثر جزء دې يا د امام بخاری خپل کلام دې؟

د ابن بطال د کلام نه معلوميږی چې دا حصه هم د عمر بن عبدالعزيز کلام دې. ځکه چې هغوی فرمائی:

في امر عمر بن عبدالعزيز بكتاب حديث النبي ﷺ خاصة وان لا يقبل على اتباع السنن وضبطها[2]

يعنی خاص طور سره د حضرت عمر بن عبدالعزيز د حضورپاک ﷺ د احاديثو د ليکلو حکم ورکولو، او ددې نه علاوه د نه قبلولو حکم کښې د سنتو اتباع او او ضبط کولو طرف ته زورنه ده.

خو صحيح داده چې دا د امام بخاری خپل قول دې ددې دليل دا دې چې په خپله امام بخاری ددې نه مخکښې چې کوم سند ذکر کړې دې په هغې کښې ښکاره دی چې د عمربن عبدالعزيز قول صرف د "ذهاب العلماء" پورې دې.

ددې نه علاوه روستو مونږ دې اثر لره مختلفو حوالو سره نقل کړې دې، په هغې کښې چا هم دې کلام لره ذکر کړې نه دې.

بيا حافظ ابن حجر رحمه الله د مستخرج ابي نعيم په حوالې سره وضاحت کړې دې، چې دا د عمربن عبدالعزيز کلام نه دې، د هغوی کلام "ذهاب العلماء" باندې ختم شو[3]

**د امام بخاری د ذکر شوې قول مقصد:** امام بخاری فرمائی چې صرف د حضورپاک ﷺ احاديث دې واخستلې شی. باقی د صحابه کرامو وغيره آثار دې وانخستلې شی،

دامطلب خو يا خو په دې خبره باندې مبنی دې چې د امام بخاری په نظر کښې د عمربن

[1] فتح الباری (۱۹۵/۱) وارشاد الساری (۱۹۶/۱)-
[2] شرح صحيح البخاری (۱۹۵/۱)-
[3] فتح الباری (۱۹۵/۱)-

عبدالعزیز مختصر اثر دې چې په هغې کښې ذکر دی: انظروا ما کان من حدیث رسول اللهﷺ فاکتبوه فانی خفت دروس العلم وذهاب العلماء" چې په هغې کښې صرف ددوی د احادیثو ذکر دې، ددې وجه امام بخاری "لا یقبل الا حدیث النبیﷺ" اوفرمائیلو. گنی د عمر بن عبدالعزیز دې اثر له بعضې حضراتو نور هم تفصیل سره ذکر کړې دې، چې د هغې په بعضې طرق کښې د حضرت عمرؓ روایاتو د جمع کولو حکم هم ورکړې دې، او بعضو کښې د عمره بنت عبدالرحمن (چې د ابوبکر بن حزم ترور وه او د حضرت عائشهؓ خادمه) د روایاتو د جمع کولو حکم هم موجود دې. که چرې امام بخاری تفصیلی روایات مخکښې اینښودی وو نو بیا به ئې "ولا یقبل الا حدیث النبیﷺ" نه فرمائیل.

دا د امام بخاریؒ مقصد دې چې د استدلال او احتجاج په ځائې کښې دې صرف مرفوع احادیث واخستلې شی، تر څو چې د نورو آثار صحابه او تابعینو تعلق دې نو هغه به د استشهاد او د استیناس په ځائې کښې اخستلې کیږی، نه چې د استدلال او احتجاج په طور سره، دا توجیه ډیره ښه ده ځکه چې امام بخاری خپله په سوونو د صحابه کرامو﷢ او تابعینو ﷭ آثار نقل کړې دی، والله اعلم

**قوله: فان العلم لا یهلك حتی یکون سرا:** علم چې کله راز جوړ کړې شی او د خاندانی تحتو باندې اولیکلې شی، او ددې عاموالې نه کیږی نو ضائع شی.

دغه شان علماء له پکار دی چې علمی او گرانې مسئلې دې پټې نه کړی، بلکه عام طور سره دې خورې کړی، ځکه په داسې ځائې کښې دې کینی کوم ځائې ته چې خلق راځی، لکه مسجدونه او مدرسې وغیره.(۱)

حَدَّثَنَا الْعَلَاءُ بْنُ عَبْدِ الْجَبَّارِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُسْلِمٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ بِذَلِكَ، يَعْنِي حَدِيثَ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ إِلَى قَوْلِهِ ذَهَابَ الْعُلَمَاءِ.

## رجال الحدیث

**العلاء بن عبدالجبار:** دا ابو الحسن العلاء بن عبدالجبار عطار بصریؒ دې، ولاءً انصاری گڼلې شی. په مکه مکرمه کښې هم پاتې شوې وو.(۲)

دوی د جریر بن حازم، حماد بن سلمه، حماد بن زید، عبدالله بن جعفر مخزومی، عبدالعزیز بن مسلم او ابوعوانه ﷭ نه روایت کوی.

دده نه امام بخاری، ابراهیم بن یعقوب جوزجانی، ابوخیثمه زهیر بن حرب، عبدالله بن الزبیر الحمیدی، دده خوئې عبدالجبار بن العلاء او ابن سعد ﷭ روایت کوی.(۳)

---

۱) ارشاد الساری (۱۹۶/۱) والکنز المتواری فی معادن لامع الدراری وصحیح البخاری (۳۳۴/۲)۔

۲) تهذیب الکمال (۵۱۷/۲۲)۔

۳) تهذیب الکمال (۵۱۷/۲۲، ۵۱۸) وتهذیب التهذیب (۱۸۵/۸، ۱۸۶)۔

امام بخاری رحمه الله ددوی نه صرف دوه احادیث اخستي دی[1] او په صحیح بخاری کښې صرف په دې ځائې کښې دده په واسطې سره ئې موقوف اثر مروی دې بل ځائې کښې دده تذکره نشته[2]

امام عجلی رحمه الله فرمائی "ثقة"[3]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی "صالح الحدیث"[4]

امام نسائی رحمه الله فرمائی "لیس به باس"[5]

ابن سعد رحمه الله فرمائی "وکان کثیر الحدیث"[6]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي "ثقة"[7]

امام یحیی بن معین فرمائی "لیس به باس"[8]

ابن حبان دوی په خپل کتاب الثقات کښې ذکر کړې دی[9]

په ۲۱۲ هجری کښې ددوی وفات اوشو[10] رحمه الله تعالی رحمة واسعة

(۴) **عبدالعزیز بن مسلم**: دا ابو زید عبدالعزیزبن مسلم قسملی[11] مروزی رحمه الله دې[12]

دوی د حصین بن عبدالرحمن، امام اعمش، سهیل بن ابی صالح، عبدالله بن دینار، یحیی بن سعید انصاری او ابوهارون عبدی رحمهم الله وغیره نه روایت حدیث کوی.

ددوی نه روایت کوونکو کښې حرمی بن حفص، شیبان بن فروخ، عبدالرحمن بن مهدی، عبدالصمد بن عبدالوارث، العلاء بن عبدالجبار، یونس بن محمد المؤدب او ابوعامر عقدی رحمهم الله وغیره حضرات دی.[13]

---

[1]) وفی الزهرة "روی عنه البخاری حدیثین تهذیب التهذیب(۱۸۶/۸)-

[2]) تهذیب الکمال(۱۸۵/۸) وعمدة القاری(۱۳۰/۲)-

[3]) تهذیب الکمال(۵۱۹/۲۲)-

[4]) تهذیب الکمال)-

[5]) تهذیب الکمال)-

[6]) الطبقات الکبری لابن سعد(۵۰۱/۵)-

[7]) تقریب التهذیب(ص۴۳۵) رقم(۵۲۴۶)-

[8]) تعلیقات تهذیب الکمال(۵۱۹/۲۲)-

[9]) الثقات لابن حبان(۵۰۳/۸)-

[10]) خلاصة الخزرجی_ص۳۰۰)-

[11]) ضبطه بعض العلماء بفتح القاف وسکون السین وفتح المیم بعدها لام وقال بعض العلماء بکسر القاف. انظر تعلیقات الکاشف(۳۱۷/۱) ترجمة حرمی بن حفص القسملی رقم(۹۷۹)-

[12]) تهذیب الکمال(۲۰۲/۱۸)-

[13]) تهذیب الکمال(تهذیب الکمال(۲۰۲/۱۸، ۲۰۳)-

امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی "ثقة"[1]
امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی "صالح الحدیث ثقة"[2]
امام عجلی رحمه الله فرمائی "بصری ثقة"[3]
امام نسائی رحمه الله فرمائی "لیس به باس"[4]
ابن نمیر رحمه الله فرمائی "ثقة"[5]
ابن خراش فرمائی "صدوق"[6]
حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی "ثقة عابد یعد من الابدال"[7]
ابوعامر عقدی رحمه الله فرمائی "وکان من العابدین"[8]
یحیی بن اسحاق رحمه الله فرمائی "وکان من الابدال"[9]
ابن حبان دوی په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دی[10]
ددې تولو توثیقات نه باوجود امام عقیلی رحمه الله ددوی باره کښې لیکی "فی حدیثه بعض الوهم"[11]
خو حافظ ذهبی رحمه الله دې جرح لره رد کړې ده، او فرمائی "هذه الکلمة صادقة الوقوع علی مثل مالك وشعبة"[12]
امام عقیلی د "وهم" ثابتولو د پاره ددوی یو حدیث هم نقل کړې دې، چې په هغې کښې نورو حضراتو دده مخالفت کړې دې[13]، خو حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی "ثم ساق العقیلی له حدیثا واحدا محفوظا قد خالفه فیه من هو دونه فی الحفظ"[14]

---

[1]) تهذیب الکمال(۱۸/ ۲۰۴) وتاریخ الدارمی(ص۱۸۵) رقم(۶۶۶)و(۶۶۷)-
[2]) تهذیب الکمال(۱۸/ ۲۰۴)-
[3]) تعلیقات تهذیب الکمال(۱۸/ ۲۰۴) وتهذیب التهذیب(۶/۳۵۷)-
[4]) تهذیب التهذیب(۶/۳۵۷)-
[5]) حواله بالا
[6]) حواله بالا
[7]) الکاشف(۱/۶۵۸) رقم(۳۴۱۰)-
[8]) تهذیب الکمال(۱۸/ ۲۰۴)-
[9]) تهذیب الکمال)-
[10]) الثقات لابن حبان(۷/۱۱۶)-
[11]) الضعفاء للعقیلی(۳/۱۷) رقم(۹۷۳)-
[12]) میزان الاعتدال(۲/۶۳۵) رقم(۵۱۳۰)-
[13]) الضعفاء للعقیلی(۳/۱۸)-
[14]) میزان الاعتدال(۲/۶۳۵) رقم(۵۱۳۰)-

یعنی بیا عقیلی ددوی یو محفوظ حدیث نقل کړې دې،چې په هغې کښې دده نه کمې حافظې والاکس دده مخالفت کړې دې
لهذا دوی په اتفاق سره ثقه دی،او کله نا کله چې وهم کیږی نو ددې د وجه ددوی په ثقاهت او ضبط کښې څه اثر نه غورزیږی.

۱۲۷ هجری کښې ددوی انتقال اوشو[۱]،رحمه الله تعالیٰ رحمة واسعة

۳**عبدالله بن دینار**:دا مشهور محدث ابوعبدالرحمن عبدالله بن دینار قرشی عدوی مدنی رحمه الله دې.ددوی حالات د کتاب الایمان باب امور الایمان د لاندې مختصرا[۲]او کتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا او اخبرنا وانبانا د لاندې تفصیلا تیر شوې دی[۳]

[۱۰۰] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي أُوَيْسٍ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم يَقُولُ «إِنَّ اللَّهَ لاَ يَقْبِضُ الْعِلْمَ انْتِزَاعًا، يَنْتَزِعُهُ مِنَ الْعِبَادِ، وَلَكِنْ يَقْبِضُ الْعِلْمَ بِقَبْضِ الْعُلَمَاءِ، حَتَّى إِذَا لَمْ يُبْقِ عَالِمًا، اتَّخَذَ النَّاسُ رُءُوسًا جُهَّالاً فَسُئِلُوا، فَأَفْتَوْا بِغَيْرِ عِلْمٍ، فَضَلُّوا وَأَضَلُّوا».

## رجال الحديث

۱**اسماعیل بن ابی اویس**:دا ابوعبدالله اسماعیل بن ابی اویس عبدالله بن اویس بن مالک بن ابی عامر اصبحی مدنی رحمه الله دې،ددوی حالات د کتاب الایمان باب تفاضل اهل الایمان فی الاعمال دلاندې تیر شوې دی[۴]

۲ **مالک**:د امام مالک رحمه الله حالات هم کتاب الایمان باب من الدین الفرار من الفتن د لاندې تیر شوې دی[۵]

۳**هشام بن عروه**:دا هشام بن عروة بن الزبیر بن العوام رحمه الله دې،ددوی حالات د بدء الوحی د دویم حدیث لاندې مختصرا[۶]او کتاب الایمان باب احب الدین الی الله ادومه د لاندې تفصیلا راغلې دی[۷]

۴**عروة**:د حضرت عروه بن الزبیر بن العوام رحمه الله حالات هم د بدء الوحی د دویم حدیث لاندې

---

[۱]) تهذیب الکمال(۱۸/۲۰۴)-
[۲]) کشف الباری(۱/۶۵۸)-
[۳]) کشف الباری(۳/۱۰۶)-
[۴]) کشف الباری(۲/۱۱۳)-
[۵]) کشف الباری(۲/۸۰)-
[۶]) کشف الباری(۱/۲۹۱)-
[۷]) کشف الباری(۲/۴۳۲)-

مختصرا[۱] او كتاب الايمان،باب احب الدين الى الله ادومه،د لاندې تفصيلا راغلې دى[۲]

⑤ **عبدالله بن عمر بن العاص** رضي الله عنه: د حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه حالات د كتاب الايمان،باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده،دلاندې تير شوې دى[۳]

**فائده**: حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چې دا حديث د هشام بن عروه په طريق سره ډير مشهور دې تر دې چې د اويا نه زيات كسانو دده نه دا حديث واوريدلو[۴]

او دې حديث كښې د عروه نه روايت كولو كښې د هشام موافقت ابوالاسود مدنى كړې دې،چې د هغوى د روايت تخريج په صحيحينو كښې شوې دې[۵]،دغه شان امام زهرى هم د عروه نه روايت كولو سره د هشام موافقت كړې دې،او ددوى د دې روايت امام نسائى تخريج كړې دې[۶]،دغه شان يحيى بن ابى كثير هم د هشام موافقت كولو سره دې حديث لره د عروه نه نقل كړې دې،ددوى دا روايت په صحيح ابى عوانه كښې دې[۷]

بيا دا روايت چې څنګه عبدالله بن عمرو نه عروه نقل كوى.دغه شان عمر بن الحكم بن ثوبان هم نقل كوى،ددوى دا روايت په صحيح مسلم كښې دې[۸]

**قوله**: سمعت رسول الله ﷺ يقول: ان الله لا يقبض العلم انتزاعا ينتزعه من العباد ولكن يقبض العلم بقبض العلماء: ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل.هغوى فرمائيل چې الله تعالى به علم داسې د خلقو د سينو نه وانخلى بلكه د علماء په اوچتولو سره علم به اوچت كړى.

حضورپاك ﷺ دا خبرې د حجة الوداع په موقع كښې فرمائيلې وې.چنانچه امام احمد او امام طبرانى رحمهماالله روايت نقل كړې دې:

عن ابى امامة الباهلى قال: لما كان فى حجة الوداع قام رسول الله ﷺ وهو يومئذ مردف الفضل بن عباس على جمل آدم،فقال: يا ايها الناس خذوا من العلم قبل ان يقبض العلم وقبل ان يرفع العلم...قال: فاتينا اعرابيا..قال: ثم قلنا له :سل النبى ﷺ قال :فقال له: يا نبى الله ﷺ كيف يرفع العلم منا وبين اظهرنا المصاحف وقد تعلمنا ما فيها وعلمناها نساءنا وذرارينا وخدمنا؟ فرفع النبى ﷺ راسه وقد علت وجهه

---

[۱]) كشف البارى(۲۹۱/۱)-
[۲]) كشف البارى(۴۳۲/۲)-
[۳]) كشف البارى(۶۷۹/۱)-
[۴]) فتح البارى(۱۹۵/۱)-
[۵]) صحيح البخارى(۱۰۸۶/۲) كتاب الاعتصام باب ما يذكر من ذم الراى وتكلف القياس رقم(۷۳۰۷) وصحيح المسلم كتاب العلم باب رفع العلم وقبضه وظهور الجهل والفتن فى آخر الزمان رقم(۶۷۹۹)-
[۶]) سنن النسائى الكبرى(۴۵۶/۳) كتاب العلم باب كيف يرفع العلم؟ رقم(۵۹۰۸)-
[۷]) فتح البارى(۱۹۵/۱) وعمدة القارى(۱۳۰/۲)-
[۸]) صحيح المسلم كتاب العلم باب رفع العلم وقبضه وظهور الجهل والفتن فى آخر الزمان رقم(۶۷۹۸)-

حمرة من الغضب قال: فقال: اى ثكلتك امك، هذه اليهود والنصارى بين اظهرناهم المصاحف لم يصبحوا يتعلقوا بحرف مما جاءتهم به انبياؤهم الا وان ذهاب العلم ان يذهب حملته، ثلاث مرار (اللفظ لاحمد)[1]
يعنى حضرت ابو امامه رضی الله عنه فرمائی چې د حجة الوداع په موقع کښې حضورپاک ﷺ په خپل غنم رنګي اوښ باندې سور وو، او خطبه ئې ورکړه. دهغوی شاته په دغه ورځ فضل بن عباس ناست وو، حضورپاک ﷺ اوفرمائيل اې خلقو! علم د اوچتولو نه مخکښې دا حاصل کړئی.
مونږ يو اعرابى طرف ته راغلو، مونږ هغه ته اونې چې د حضور ﷺ نه معلوم کړه، هغه عرض اوکړو چې اې د الله نبى! علم به څنګه اوچت کړې شى مونږ سره خو د قرآن نسخې دى، په قرآن کښې چې څه دى هغه مونږ زده کړې دى، خپلو زنانه، ماشومانو او خادمانو ته هم ورزده کړې دى؟ حضورپاک ﷺ خپل سر مبارک اوچت اوکړو. دهغوی په مخ مبارک باندې د غصې سور والې ښکاره كيدلو، هغوی اوفرمائيل اې ته د مور نه روک شې! دا يهود او عيسايان دى. دوى سره كتاب هم دې، د هغوی پيغمبرانو چې كوم تعليمات راوړى وو. دا يهود او عيسايان په يو حرف باندې هم عمل كولو والانه دى، واورئى! د علم د اوچتول د علم د حاملينو اوچتول دى، دا هغوی ﷺ درې ځل اوفرمائيل
**د علم د اوچتولو به څه صورت وى؟:** بيا د رفع علم صورت چې كوم په حديث باب كښې بيان كړې شوې دې. هغه ښكاره دې چې علماء به اوچت كړې شى. او ددوى ختميدلو سره سره به علم هم اوچتولې شى.
او دبعضې رواياتو نه معلوميږى چې علم او قران به د خلقو د سينو نه وران كړې شى. روستو "باب رفع العلم وظهور الجهل" د لاندې هم مونږ داسې روايات په تفصيل سره ذكر كړې دى ددې دواړو قسمو احاديث په مينځ كښې تعارض لرې كولو د پاره يا خو د ترجيح طريقه دې اختياره شى او دا دې اووئيلې شى چې د صحيحينو روايت راجح دې. او د نورو كتابونو روايات مرجوح. يا دې داسې اووئيلې شى چې دواړه صورتونه به وى. اول به علماء اوچت كړې شى او دوى سره سرده به علم هم اوچت شى. او بيا په آخره كښې به يو دم د خلقو د سينو نه علم ختم كړې شى. والله اعلم بالصواب

**قوله:** حتى اذا لم يبق عالما اتخذ الناس رؤوسا جهالا، فافتوا بغير علم فضلوا واضلوا: تر دې چې كله الله تعالى يو عالم باقى پاتې نه كړى نو خلق به جاهلانو لره سرداران جوړ كړى او هغوى به بغير د علم نه فتوې وركوى. په خپله هم ګمراه وى او نور به هم ګمراه كوى.
"لم يبق عالما" د ابقاء نه دې. د اصيلى نه سوا باقى نورو نسخو كښې "لم يبق عالم" د مجرد نه راغلې دې.
دغه شان دلته "رؤوسا" (د راس جمع) مروى دې، او د ابوذر په نسخه كښې "رؤسا" (د رئيس

[1]) المسند لاحمد(٥/٢٦٦) مسند ابى امامة الباهلى رضی الله عنه وانظر مجمع الزوائد (١/١٩٩، ٢٠٠) خاتمه كتاب العلم باب ذهاب العلم)-

جمع، منقوله ده[1]

قَالَ الْفِرَبْرِی حَدَّثَنَا عَبَّاسٌ قَالَ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ هِشَامٍ نَحْوَهُ.[٢٨٧٧]

فربری فرمائی چې مونږ ته عباس رحمه الله حدیث واورولو هغه فرمائی چې مونږ ته قتیبه بیان کړې دې،هغه فرمائی مونږ ته جریر حدیث واورولو،هغه د هشام نه دا شان روایت کوی.
دا د علامه فربری راوی د صحیح بخاری اضافه ده او دا ښودل مقصود دی چې داحدیث ماته د امام بخاری نه علاوه د عباس نه هم میلاؤ شوې دې،هغه د قتیبه بن سعد نه روایت کوی، هغه د جریر نه او جریر د هشام نه روایت کوی.

## رجال الحديث

①فربری:دا راوی د صحیح بخاری محمد بن یوسف بن مطر الفربری رحمه الله دې،د دوی حالات په مقدمة الکتاب کښې تیر شوې دی،

②عباس:د عباس نه مراد څوک دې؟
په عمدة القاری کښې د "عباس" په ترجمه کښې بیاض دې،ناشرینو د حافظ بن حجر رحمه الله یوعبارت نقل کړې دې چې کوم هغوی په تقریب التهذیب کښې لیکلې دې[2]
ددې عبارت په اعتبار سره دا عباس بن الفضل بن زکریا هروی بصری دې،د ثقه او مشهور راویانو نه دې،د دولسمې یا د دولسمې نه پس طبقې سره ددوی تعلق دې،صاحب "الکمال فی اسماء الرجال" ته وهم شوې دې چې هغوی دا اولیکل چې ابن ماجه دده نه روایت اخستلې دې،ځکه چې د هغوی پیدائش د ابن ماجه د وفات نه پس شوې دې[3]د ابن ماجه انتقال په ۲۷۳ هجری کښې اوشو[4]او دعباس بن الفضل پیدائش دې نه پس اوشو او وفات ئې په ۳۷۲ هجری کښې شوې دې[5]

خو د غور قابله خبره داده چې آیا هم دغه عباس دلته مراد دې؟
په ظاهره دلته د فربری شیخ عباس بن الفضل نه دې ځکه چې فربری دده نه په عمر کښې زیات دې او د فربری پیدائش په ۲۳۱ هجری کښې اوشو او وفات ئې په ۳۲۰ هجری کښې[6]، او عباس بن ماجه بن الفضل ۲۷۳ هجری نه بعد پیدا شوې وو او د دوی انتقال ۳۷۲ هجری کښې اوشو،ګویا چې عباس د فربری نه څلویښت کاله بلکه ددې نه هم زیات کشر وو.اګر چې روایة الاکابر عن الاصاغر ناممکن نه دې خو دلته ددې څه وضاحت یا قرینه

---

[1]) فتح البارى(١/١٩٥)-
[2]) عمدة القارى(٢/١٣٢)-
[3]) تقريب التهذيب(ص ٢٩٤) رقم(٣١٨٤)-
[4]) تقريب التهذيب(ص ٥١٤)رقم(٦٤٠٩)-
[5]) تقريب(ص ٢٩٤) رقم(٣١٨٤)-
[6]) الانساب للسمعانى(٤/٣٥٩) الفربرى)-

موجود نه دہ.

د ويمه خبره داده چې دلته د عباس اوستاذ قتيبه مراد دې، د قتيبه وفات ۲۴۰ هجرى كښې شوې وو[۱] او د عباس پيدائش د ۲۷۳ نه روستو دې، لهذا دلته د عباس نه عباس بن الفضل بن زكريا مراد نه دې.

راجح دا معلوميږى چې دلته د عباس نه عباس بن عباس بن عبد العظيم عنبرى مراد دې، چې د اصولې سته د اصحابو استاذ دې[۲] امام بخارى ددوى روايت تعليقا نقل كړې دې[۳] دې د قتيبه د شاګردانو نه دې[۴] او ددوى د وفات تاريخ د راجح قول مطابق ۲۴۲ هجرى دہ[۵] والله اعلم بالصواب

④**قتيبه:** دا امام قتيبه بن سعيد رحمه الله دې، ددوى حالات د كتاب الايمان باب افشاء السلام من الاسلام د لاندې تير شوې دى[۶]

④**جرير:** دا جرير بن عبد الحميد ضبى رحمه الله دې، ددوى حالات د كتاب العلم باب من جعل لاهل العلم اياما معلومة د لاندې تير شوې دى

⑤**هشام:** د هشام بن عروه بن الزبير رحمه الله حالات د بدء الوحى د دويم حديث او كتاب الايمان باب احب الدين الى الله ادومه د لاندې تير شوې دى[۷]

د امام قتيبه دا روايت امام مسلم رحمه الله په خپل صحيح كښې تخريج كړې دې[۸]

## ۳۵.. باب: هَلْ يُجْعَلُ لِلنِّسَاءِ يَوْمٌ عَلَى حِدَةٍ فِي الْعِلْمِ

د كريمه او اصيلى په نسخو كښې د يجعل صيغه مجهول دہ، او يوم مرفوع نائب فاعل دې، او په باقې نسخو كښې يجعل د معروف صيغه دہ او ددې فاعل الامام دې او يوما منصوب دې[۹]

**قوله: "على حدة" اى على انفراد:** حدة د حاء كسرې سره او د دال مفتوحه مخففه سره دې، په اصل كښې وحد دې او څنګه چې د وعد نه عدة جوړ شو دغه شان د وحد نه

---

[۱] تقريب التهذيب(ص ٤٥٤) رقم(٥٥٢٢)-

[۲] الكاشف(٥٣٥/١) رقم(٢٦٠١)-

[۳] انظر صحيح البخارى(٩٤٩/٢) فاتحة كتاب الرقاق باب ما جاء فى الرقاق وان لا عيش الا عيش الاخرة رقم(٦٤١٢)-

[۴] تهذيب الكمال(٥٢٧/٢٣) ترجمه قتيبة بن سعيد رقم(٤٨٥٢)-

[۵] تهذيب الكمال(٢٢٥/١٤) ترجمة عباس بن عبدالعظيم العنبرى، رقم(٣١٢٨)-

[۶] كشف البارى(١٨٩/٢)-

[۷] كشف البارى(٢٩١/١) و(٤٣٢/٢)-

[۸] صحيح مسلم، كتاب العلم باب رفع العلم وقبضه، رقم(٦٧٩٦)-

[۹] عمدة القارى(١٣٢/٢) وفتح البارى(١٩٦/١)-

حدة' جوړ شو( ^١ )
**مخكښې باب سره مناسبت:** تیر شوي باب کښې د علم د اخستلو بیان وو او د هغې فائده دا وه چې دې سره خلقو ته د علم د حاصلولو ترغیب ورکړې شوې وو.ددې باب په فوائدو کښې دا هم ده چې په دې کښې د علم د حفظ کولو ترغیب دې څکه چې کله ښځو حضورپاکﷺ ته شکایت اوکړو،چې سړی هر وخت تاسو نه ګیر چاپیره ناست وی،هغوی ته هر وخت د فائدې اخستلو موقع میلاویږی،خمونږ د پاره هم یو ورځ خاص کړئی،نو هغوی وعده اوفرمائیله او هغه مخصوص وخت کښې هغویﷺ تشریف راوړو او هغوی ته ئې نصیحت اوکړو( ^٢ )
**مقصد د ترجمة الباب:** حضرت شیخ الهندؒ فرمائی چې امام بخاریؒ مقصد د ذکر شوی ترجمې نه دادې چې کوم سړی د عام علمی مجلسونو کښې د شریکیدلو نه معذور وی لکه ښځې. نو دهغوی د تعلیم او تبلیغ دې هم خیال اوساتلې شی. دهغوی د حالت مطابق په خاص وختونو کښې علمی خبرې هغوی ته اورسولې شی.د تعلیم عاموالې چونکه ضروری کار دې، عام او خاص،تعلیم یافته او بې تعلیمه، ښځه او سړو ټولو ته حصه رسول پکار دی( ^٣ )والله اعلم

**د 'هل' سره 'ترجمه' منعقد کولو وجه:** دلته سوال دا پیدا کیږی چې د روایت نه د ښځو مخصوص مجلس جائز دې نو امام بخاری د 'هل' په ذریعې سره ولې باب منعقد کړو؟چې په تردد باندې دال دې؟
ددې جواب دادې چې په اصل کښې دا یو جزئی واقعه ده کیدې شی چې دا اوئیلې شی چې دا واقعه خو د یو وخت خبره ده،ددې نه څه عمومی قاعده اخستلې نه شی.څکه امام بخاری په 'هل' سره باب قائم اوفرمائیلو( ^٤ )
یا به داسې اوونیلې شی چې امام بخاری لفظ د هل ذکر کولو سره تفصیل ته اشاره کړې ده که چرې واقعی د ښځو د پاره د مستقل ورځ مقرر کولو ضرورت وی او مقرر کولو سره د څه فتنې ویره نه وی نو بیا څه بده خبره نه ده.او که ضرورت نه وی یا د څه فتنې خطره وی نو بیا خان ساتل پکار دی.حضورپاکﷺ د ښځو په درخواست سره بطور ضرورت یو ورځ مقرر کړې وه نو دا څه د همیشګیر کار نه وو.او بیا خو د هغوی په حق کښې د څه خطرې لرې لرې پورې ویره نه وه. والله سبحانه وتعالى اعلم

[١٠١] ١٠٢] حَدَّثَنَا آدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ الأَصْبَهَانِي قَالَ سَمِعْتُ أَبَا صَالِحٍ ذَكْوَانَ يُحَدِّثُ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الخُدْرِي. قَالَتِ النِّسَاءُ لِلنَّبِي - صلى الله عليه وسلم - غَلَبَنَا عَلَيْكَ الرِّجَالُ، فَاجْعَلْ لَنَا يَوْمًا مِنْ نَفْسِكَ. فَوَعَدَهُنَّ يَوْمًا لَقِيَهُنَّ فِيهِ، فَوَعَظَهُنَّ

---

^١) حواله بالا
^٢) عمدة القارى(١٣٢/٢)-
^٣) الابواب والتراجم(ص ٥٤)-
^٤) الكنز المتوارى(٣٣٥/٢)-

وَأَمَرَهُنَّ، فَكَانَ فِيمَا قَالَ لَهُنَّ «مَا مِنْكُنَّ امْرَأَةٌ تُقَدِّمُ ثَلَاثَةً مِنْ وَلَدِهَا إِلَّا كَانَ لَهَا حِجَابًا مِنَ النَّارِ». فَقَالَتِ امْرَأَةٌ وَاثْنَيْنِ فَقَالَ «وَاثْنَيْنِ».

## رجال الحديث

① **ادم**: دا ابوالحسن آدم بن ابى اياس عبدالرحمن العسقلانى رحمه الله دې ددوى حالات د "كتاب الايمان" باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده" د لاندې تير شوې دى[1]

② **شعبه**: دا امير المومنين فى الحديث امام شعبه بن الحجاج عتكى بصرى رحمه الله دې، ددوى حالات هم د ذكر شوې كتاب او باب لاندې راغلې دى[2]

③ **ابن الاصبهانى**: دا عبدالرحمن بن عبدالله بن الاصبهانى كوفى جهنى رحمه الله دې ددوى اقامت په كوفه كښې وو او اصبهان ته ئې د تجارت په غرض تل راتلل وو[3]

بعضې حضراتو وئيلې دى چې دې په اصل كښې د اصبهان وو چې ابوموسى اشعرى دا كله فتح كړو هغه وخت دا خلق د هغه خائې نه وتلي وو[4]

دوى د حضرت انس بن مالك رضى الله عنه نه علاوه ذكوان ابوصالح السمان، زيد بن وهب جهنى، سعيد بن جبير، ابوحازم سلمان الاشجعى، عامر شعبى، عبدالله بن معقل، عكرمه مولى ابن عباس او ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف رحمهم الله وغيره نه روايت كوى.

دده نه روايت كوونكو كښې اسماعيل بن ابى خالد، زكريا بن ابى زائده، سفيان ثورى، سفيان بن عيينه، شعبه بن الحجاج، ابوعوانه او ابوحمزه سكرى رحمهم الله وغيره دى[5]

امام يحيى بن معين، ابوزرعه، او نسائى رحمهم الله فرمائى "ثقة"[6]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى "لاباس به صالح الحديث"[7]

امام عجلى رحمه الله فرمائى "ثقة"[8]

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى "ثبت"[9]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى "ثقة"[10]

---

[1] كشف البارى (۶۷۸/۱)-

[2] حواله بالا

[3] تهذيب الكمال (۲۳۲/۱۷)-

[4] عمدة القارى (۱۳۳/۲)-

[5] تهذيب الكمال (۲۳۲،۲٤۳/۱۷)-

[6] تهذيب الكمال (۲٤۳/۱۷)-

[7] تهذيب الكمال)-

[8] تهذيب الكمال (۲۱۷/۶)-

[9] الكاشف (۱/ ۲۳٤) رقم (۳۲٤۶)-

[10] تقريب التهذيب (ص۳٤۵) رقم (۳۹۲۶)-

ابن حبان رحمه الله دوى په خپل كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې[1]

اصحاب اصول سته دده نه روايتونه اخستې دى[2] رحمه الله تعالى رحمة واسعة

④ **ابوصالح ذكوان**: دا ابوصالح ذكوان السمان رحمه الله دې ددوى حالات كتاب الايمان باب امور الايمان د لاندې تير شوې دى[3]

⑤ **حضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه**: دحضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه حالات د كتاب الايمان باب من الدين الفرار من الفتن د لاندې تير شوې دى[4]

**قوله**: قالت النساء للنبي صلى الله عليه وسلم: غلبنا عليك الرجال فاجعل لنا يوما من نفسك، فوعدهن يوما لقيهن فيه فوعظهن اوامرهن: ښځو حضورپاك صلى الله عليه وسلم ته عرض اوكړو، چې سړى تاسو ته راتلو كښې په مونږ باندې غالب دى، تاسو د خپل طرف نه زمونږ د پاره يو ورځ مقرر كړئى، حضور صلى الله عليه وسلم هغوى سره د يو ورځ ميلاؤيدلو اراده اوفرمائيله، په هغه ورځ هغوى دوى ته نصيحت اوكړو او د شريعت حكم ئې ورته اوكړو.

مطلب دا دې چې سړى خو هر وخت تاسو سره اوسيږى او مونږ تاسو ته نشو در رسيدلې، لهذا د خپل طرف نه زمونږ د پاره يو مستقل ورځ مقرر كړئى.

**قوله**: فكان فيما قال لهن: ما منكن امراة تقدم ثلاثة من ولدها الا كان لها حجابا من النار: هغوى چې دوى سره كومې خبرې اوكړې په هغې كښې دا خبره وه چې په تاسو كښې څوك ښځه درې بچى مخكښې اوليږى نو هغه به ددې د پاره د دوزخ د پاره ديوال جوړ شى.

"كان لها حجابا من النار" كښې د "كان" اسم "التقديم" دې، يعنى "الا كان التقديم لها حجابا من النار" مخكښې "جنائز" كښې دا روايت راروان دى، په هغې كښې د "كن" لفظ دې، چې د هغې ضمير به انفس طرف ته راجع كيږى، او كتاب الاعتصام كښې "كانوا" دې، ضمير جمع "اولاد" طرف ته به راجع وى[5]

**قوله**: فقالت امراة: واثنين؟ فقال: واثنين: يو ښځې تپوس اوكړو او چې د چا دوه بچى مخكښې اوليږلې شى نو هغې ته به هم دافضيلت حاصل وى؟ هغوى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چې او، په دوو باندې به هم دا فضيلت حاصل وى.

---

[1] الثقات لابن حبان(٦٧/٧)-
[2] تهذيب الكمال(٢٤٣/١٧)-
[3] كشف البارى(٦٥٨/١)-
[4] كشف البارى(٨٢/٢)-
[5] فتح البارى(١٩٦/١) وعمدة القارى(١٣٤/٢)

**دلته د امراة نه څوک مراد ده؟**: بعضې رواياتو نه پته لګی چې دا ام سليم ده.بعضې روايتونو نه دا معلوميږی چې دا ام مبشر انصاريه وه.او بعضې رواياتو کښې سانله نوم ام ايمن ده بعضې کښې د عائشه نوم راغلې دې او بعضې رواياتو کښې د ام هانی نوم راغلې دې[1]

**واثنين** کښې واو عطف د پاره دې.او دا عطف تلقينی دې.ګويا چې هغه ښځې حضورپاک ﷺ ته تلقين اوکړو چې يا رسول الله: ثلاثة سره "اثنين" هم اوفرمايئ.نو حضورپاک ﷺ اوفرمائيل "واثنين"[2]

د جامع ترمذی په بعضې رواياتو کښې د يو هم ذکر راغلې دې[3]

ګويا چې حضورپاک ﷺ يو ځل د دريو ذکر اوکړو او بيا ئې د دوو.بيا د يو.په دې کښې څه تعارض نشته.ځکه چې مفهوم د عدد په حديث کښې معتبر نه دې.يو عدد ذکر کولو سره د دويم عدد نفی نه رازی[4]

بله خبره دا ده چې حضورپاک ﷺ ته ورځ په ورځ نور علم حاصليدو.د الله تعالی په هغوی باندې مسلسل احسان زياتيدلو.لهذه ډيره ممکنه ده چې مخکښې خو دا زيرې د دريو بچو په وفات کيدلو باندې صبر کول د اور نه د بچ کيدو سبب دې.او دا ماشومان به د اور نه پرده جوړ شی.بيا الله تعالی نور احسان هم اوکړو.يو عدد ئې کم کړو.او دوه ئې کافی اوګرځول.او بيا ئې نور احسان اوکړو او يو ئې کافی اوګرځولو

خلاصه دا شوه چې نبی کريم ﷺ اول درې اوفرمائيل.د ښځې په وينه سره په هغوی ﷺ باندې وحی راغله.نو هغوی ته د دوو متعلق علم اوشو.او بيا څه وخت ورته د يو علم اوشو.نو کوم کوم وخت چې د وحی په ذريعه به څه معلوميدل نو هغوی ﷺ به هغه بيان فرمائيلو[5]

لهذا په دې کښې څه تعارض نشته.

دا هم کيدلې شی چې دا اختلاف د مختلفو ښځو په اعتبار سره وی.اصل کښې حجاب من النار د پاره د صبر يو مخصوص درجه شرط دې.ددې يو خاص مقدار پکار دې.نو اوس څه ښځې داسې دی چې د هغوی ته په يو بچی باندې هغه مقدار حاصل شی.داسې غم وی چې د

---

[1] فتح الباری(۳/۱۲۱، ۱۲۲) کتاب الجنائز باب فضل من مات له ولد فاحتسب)-

[2] عمدة القاری(۲/۱۳٤) وشرح الکرمانی(۲/۹۹)-

[3] عن عبدالله بن مسعود قال:قال رسول الله ﷺ من قدم ثلاثة لم يبلغوا الحنث کانوا له حصناحصينا من النار قال:ابوذر:قدمت اثنين؟قال:ابی بن کعب سيدالقراء:قدمت واحدا؟قال:واحدا.ولکن انما ذاک عندالصدمة الاولی"

عن ابن عباس انه سمع رسول الله ﷺ يقول:من کان له فرطان من امتی ادخله الله بهما الجنة فقالت له عائشة: فمن کان له فرط من امتک؟ ومن کان له فرط يا موفقة.قالت:فمن لمن يکن فرط من امتک؟ قال: فانا فرط امتی لن يصابوا بمثلی"جامع الترمذی کتاب الجنائز باب ما جاء فی ثواب من قدم ولدا. رقم (۱۰۶۱) و۱۰۶۲)-

[4] فتح الباری(۳/۱۲۲)کتاب الجنائز باب فضل من مات له ولد فاحتسب)-

[5] حواله بالا

هغې څه انتها نشته،او بعضې ښځو ته په دوو باندې صبر کول دې مقدار ته اورسوی.او بعضې د پاره په دريو باندې صبر کولو سره ،والعلم عندالله سبحانه وتعالی.

**فائده**.ښکاره دې وی چې وفات شوې ماشومانو سره د مونث يا مذکر قيد لګول ملحوظ نه دې، بلکه دا فضيلت هر ماشوم باندې حاصليږی،که مذکر وی يا مونث[1]

بيا حديث باب کې اګرچې ښځو ته خطاب کولو سره دافضيلت بيان کړې شوې دې.خو دا صرف دوی سره خاص نه دې.بلکه سړو ته هم دافضيلت به حاصل وی.ځکه چې کتاب الجنائز کښې دحضرت انس رضی الله عنه روايت راروان دې"مامن الناس يتوفى له ثلاث لم يبلغو الحنث الا ادخله الله الجنة بفضل رحمته اياهم"[2]يعنی چې د کوم مسلمان درې بچی وفات شی نو الله تعالی په دې بچو باندې رحم کولو سره هغه جنت ته داخل کړی.

**د حجاب جوړلو دپاره يو شرط عدم بلوغت دې**:ددې نه پس زده کړنی چې د دوزخ د اور نه حجاب جوړيدلو د پاره دوه شرطونه ضروری دی.

يو شرط مخکښې روايت کښې ذکر دې"لم يبلغوا الحنث" د حنث زمانې ته رسيدلې نه وی.د حنث نه مراد بلوغت دې،په اصل کښې د حنث معنی "ګناه" ده.او د بلوغ نه مخکښې ګناه نه کيږی،نوګويا چې دبلوغ زمانه د ګناه شوه، ځکه ګناه ونيلو سره د بلوغ مراد اخستلې شی[3]

بعضې حضرات وائی چې د"بلوغ حنث" نه مراد دا دې چې داسې زمانې ته اورسی چې په کښې د قسم دماتولو او حانث کيدلو باندې نيول وی،او ښکاره ده چې دا د بلوغت نه پس وی[4]

خو ملا علی قاری رحمه الله فرمائی چې دلته د حنث معنی هم د "ګناه" ده،او مطلب دادې چې چا يو ګناه اونه کړه او هغه وفات شی،او د هغه په وفات باندې مور پلار صبر اوکړی.نو هغوی ته اجر او ثواب ميلاويږی.د ملا علی قاری دا رائې ده چې دا قيد احترازی نه دې بلکه اکملی دې، چونکه د ماشوم مرګ ډير د صبر تقاضه کوی.او د هغوی د شفاعت هم زيات اميد دې. ځکه دا قيد لګولې شوې دې.ګنی د غټو په وفات باندې هم دا فضيلت به حاصليږی. چنانچه چې څنګه په ماشومانو بچو باندې صبر کول جنت ته د رسولو او د اور نه پرده ده.دغه شان په غټو بچو باندې صبر کول به هم پرده وی[5]

خو ظاهره ده چې دا قيد اکملی نه دې بلکه احترازی دې.ځکه چې حاجب خو به هغه کس کيږی چې په ځان باندې مطمئن وی،او بالغ ته خو به خپل فکر وی هغه به د نورو د پاره څه

---

[1] شرح الکرمانی(٢/٩٩)-

[2] صحيح البخاری(١/١٦٧)کتاب الجنائز باب من مات له ولد فاحتسب رقم(١٢٤٨)-

[3] قال ابن الاثير "الحنث الذنب والاثم المعنی:انهم لم يبلغو حتی تکتب عليهم الذنوب التی يعملونها جامع الاصول(٩/٥٨٩)- کتاب الفضائل فضل المرض والنوائب والموت الفصل الثانی فی موت الاولاد.رقم الحديث(٧٣٥٩)-

[4] فتح الباری(٣/١٢٠)کتاب الجنائز باب فضل من مات له ولدا فاحتسب)_

[5] مرقاة المفاتيح شرح الکرمانی المصابيح (٤/٩٢) کتاب الجنائز باب البکا علی الميت آخر الفصل الاول)

حاجب جوړ شی؟

**تنبیه:** ابن قرقول د علامه داودی رحمه الله نه نقل کړې دی چې دا لفظ "خبث" بفتح الخاء المعجمة والباء الموحدة" هم ونیلې شوې دې، ددې مطلب هغوی "لم یبلغوا ان یعملوا المعاصی" بنودلې دې، ابن قرقول فرمائی چې دا ضبط داودی نه علاوه بل چا ذکر کړې نه دې، بهرحال محفوظ "حنث" بالحاء المهملة والنون" دې، نه چې "خبث" (١) والله اعلم

**د حجاب د جوړیدلو دویم شرط:** د حجاب د جوړیدلو د پاره دویم شرط چې دلته ذکر دې هغه احتساب دې، دا شرط په نورو احادیثو کښې راغلې دې چې هغه به احتساب کوی، یعنی په قضا باندې به راضی وی، او په خپل صبر باندې د ثواب امید ساتی، بغیر د احتساب نه اجر او ثواب نه میلاویږی.

چنانچه حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دې "سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول: من مات له ثلاثة من الولد فاحتسبهم دخل الجنة" (٢)

یعنی "د چا چې درې بچی وفات شی او هغه د ثواب امید ساتی نو هغه به جنت ته داخلیږی"

دغه شان د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې "ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال لنسوة من الانصار: لا یموت لاحداکن ثلاثة من الولد فتحتسبه الا دخلت الجنة" (٣)

یعنی "حضور صلی الله علیه وسلم د انصارو ښځو ته اوفرمائیل چې په تاسو کښې که د یوې درې بچی وفات شی او دا په هغوی باندې د ثواب امید ساتی، نو جنت به داخلیږی"

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې د احتساب شرط ځکه هم ضروری دی ځکه چې د شریعت دا عام قاعده ده چې بغیر د نیت نه ثواب نه میلاویږی، لهذا په حدیث کښې د راغلې فضیلت حاصلولو د پاره د "احتساب" شرط دې چنانچه هغه احادیث چې په هغې کښې دا شرط نشته هغه به هم په مقید احادیثو سره ګنړلې شی (٤) والله اعلم

[١٠٢] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الأَصْبَهَانِيِّ عَنْ ذَكْوَانَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- بِهَذَا. وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الأَصْبَهَانِيِّ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا حَازِمٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ «ثَلاَثَةً لَمْ يَبْلُغُوا الْحِنْثَ». [١١٩٢، ٦٨٨٠ وانظر: ١١٩٣]

---

(١) فتح الباری(١٢٠/٣) کتاب الجنائز باب فضل من مات له ولد فاحتسب)-

(٢) رواه احمدورجاله ثقات قاله الهیثمی فی مجمع الزوائد(ش٧/٣)کتاب الجنائز باب فیمن مات له ابنان)-

(٣) صحیح المسلم.کتاب البر والصلة باب فضل من یموت له ولدا فیحتسبه رقم(٩٨/٦٦)-

(٤) وقد عرف من القواعد الشرعیة ان الثواب لا یترتب الا علی النیة فلا بدمن قید الاحتساب والاحادیث المطلقة محمولة علی العقیدة "فتح الباری(١١٩/٣)کتاب الجنائز باب فضل من مات له ولد فاحتسب)-

## رجال الحدیث

①**محمدبن بشار** دا مشهور محدث محمدبن بشار بندار رحمه الله دې.د دوی حالات په "کتاب العلم" کښې د "باب ماکان النبی ﷺ یتخولهم بالموعظة والعلم کیلا ینفروا" د لاندې تیر شوې دی.[1]

②**غندر** دا مشهور محدث ابوعبدالله محمدبن جعفر هذلی رحمه الله دې.چې د غندر په لقب سره مشهور دې.ددوی حالات هم د "کتاب الایمان باب ظلم دون الظلم" د لاندې تیر شوې دی.[2]

③**شعبه** د امام شعبة بن الحجاج حالات د "کتاب الایمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده" دلاندې تیر شوې دی.[3]

④**عبدالرحمن بن الاصبهانی** ددوی حالات تیر شوې حدیث لاندې تیر شوې دی

⑤**ذکوان** د ابوصالح ذکوان السمان حالات د "کتاب الایمان باب امور الایمان" د لاندې تیر شوې دی.[4]

⑥**حضرت ابوسعید خدری** رضی الله عنه د حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه حالات د "کتاب الایمان باب من الدین الفرار من الفتن" دلاندې تیر شوې دی.[5]

⑦**ابوحازم** دا سلمان الاشجعی الکوفی مولی عزة الاشجعیة رحمه الله دې.[6]

دوی د حضرت ابوهریره.عبدالله بن عمر.حضرت عبدالله بن الزبیر.حضرت سعید بن العاص. حضرت حسن او حضرت حسین رضی الله عنهم نه روایت کوی

ددوی نه روایت کوونکو کښې ابومالک سعدبن طارق اشجعی.سلیمان الاعمش.سیار ابوالحکم.طلحه بن مصرف.عبدالرحمن بن الاصبهانی.عدی بن ثابت الانصاری.منصور بن المعتمر او یزید بن کیسان رحمهم الله وغیره دی.[7]

امام احمد.امام یحیی بن معین او امام داود رحمه الله فرمائی "ثقة".[8]

امام ابن سعد رحمه الله فرمائی "وکان ثقة وله احادیث صالحة".[9]

امام عجلی رحمه الله فرمائی "ثقة".[10]

---

[1]) کشف الباری(۳/ ۲۲۱)-
[2]) کشف الباری(۲/ ۲۵۰)-
[3]) کشف الباری(۱/ ۶۷۸)-
[4]) کشف الباری(۱/ ۶۵۸)-
[5]) کشف الباری(۲/ ۸۲)-
[6]) تهذیب الکمال(۱۱/ ۲۵۹)-
[7]) تهذیب الکمال(۱۱/ ۲۵۹. ۲۶۰)-
[8]) تهذیب الکمال(۱۱/ ۲۶۰)-
[9]) الطبقات لابن سعد(۶/ ۲۹۴)-
[10]) تهذیب التهذیب(۴/ ۱۴۰)-

ابن عبدالبر رحمه الله فرمائي: "اجمعوا على انه ثقة"[1]
ابن حبان دوى په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دى[2]
د ابوحازم انتقال د حضرت عمربن عبدالعزيز په دور خلافت كښې اوشو[3]
**فائده** د ابوسلمه يو بل راوى سلمة بن دينار الاعرج دې.په دې دواړو راويانو كښې اشتباه كيږى.ځكه چې په كنيتونو كښې يوشان والې دې.دواړه تابعى دى.دواړه د صحابه كرامو نه روايت كوى.او دواړه ثقه هم دى
البته په دواړو كښې فرق دادې چې دابوحازم سلمان الاشجعى انتقال د اولې صدنى په آخره كښې يعنى د حضرت عمر بن عبدالعزيز په دور خلافت كښې اوشو.او ابوحازم سلمة بن دينار انتقال په ۱۳۵ هجرى كښې اوشو.
دويم فرق دادې چې دابوحازم سلمان الاشجعى روايتونه په صحيحينو كښې صرف د ابوهريره رضي الله عنه نه دى.او آبوحازم سلمة بن دينار سوا د سهل بن سعد نه د بل صحابى نه روايت اخستې نه دې[4] والله اعلم
⑥**حضرت ابوهريره** رضي الله عنه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه حالات د "كتاب الايمان باب امور الايمان" د لاندې تير شوې دى[5]
**د مذكوره دواړو طرقو د ذكر كولو مقصد** امام بخارى رحمه الله ذكر شوې حديث په دوو طرقو سره راوړلو نه دوه اهمو فائدو طرف ته اشاره كړې ده.يو دا چې د باب په اولنى حديث كښې "ابن الاصبهانى" مبهم وو.امام بخارى رحمه الله دلفظ شيخ د حفاظت په غرض دغه شان برقرار ساتلې وو.
په دې دويمې طريقې كښې د "ابن الاصبهانى" د نوم وضاحت راغلو چې هغه "عبدالرحمن" دې
دويمه فائده د حضرت ابوهريره رضي الله عنه والا روايت كښې "لم يبلغوا الحنث" قيد دې.چې په ړومبى حديث كښې نشته[6]
**تنبيه** علامه كرمانى رحمه الله فرمائي "وهذا تعليق من البخارى عن عبدالرحمن" يعنى امام بخارى په آخره كښې "وعن عبدالرحمن بن الاصبهانى قال: سمعت ابا حازم عن ابى هريرة" په سند سره چې كوم روايت نقل كړې دې هغه تعليق دې[7]
د علامه كرمانى رحمه الله دا روايت ټهيک نه دې بلكه دا موصول روايت دې او د "وعن عبدالرحمن"

---

[1] حواله بالا
[2] حواله بالا
[3] سيراعلام النبلاء(۸/۵)-
[4] عمدة القارى(۱۳۵/۲)-
[5] كشف البارى(۶۵۹/۱)-
[6] عمدة القارى(۱۳۵/۲)وفتح البارى(۱۹۶/۱)-
[7] شرح الكرمانى(۹۸/۲)-

عطف ددې نه مخکښې روایت کښې چې کوم راغلې دې په هغې کښې په "عبدالرحمن" باندې دې.یعنی امام شعبه دې لره د عبدالرحمن بن الاصبهانی په واسطې سره په دوو طرقو سره نقل کوی.یو طریق "شعبة عن عبدالرحمن بن الاصبهانی عن ذکوان عن ابی سعید الخدری" دې.او دویم طریق "شعبة عن عبدالرحمن بن الاصبهانی قال: سمعت اباحازم عن ابی هریرة" دې.[1]
په مسلم شریف کښې دا روایت د "محمدبن بشار عن غندر"په طریق سره موصولا روایت شوې دې.[2]
بیا امام بخاری دا حدیثونه په دوه طرقو سره نقل کوی.په یو کښې د ده او د شعبه په مینځ کښې یو واسطه ده.یعنی آدم بن ایاس،او په دویمې واسطه کښې دوه واسطې دی.یو محمد بن بشار بندار او بل محمدبن جعفر غندر رومبې طریق چونکه عالی ده.خکه ئې دا اول راوړه.والله اعلم.

## ۳۶- باب: مَنْ سَمِعَ شَيْئًا فَرَاجَعَ حَتّٰى يَعْرِفَهُ

**وړاندې باب سره مناسبت:** په مخکښې باب کښې د ښځو د وعظ او د هغوی د تعلیم ذکر وو. چونکه د هغوی په پوهه کښې کموالې وی خکه د مراجعت عالم ضرورت راتلې شو.په دې باب کښې دعدم فهم د وجه مراجعت ذکردې.نودغه شان په دواړو بابونو کښې مناسبت ښکاره شو.[3]
**مقصد د ترجمة الباب:** حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله فرمائی چې خما په نیز ددې باب غرض هغه دې چې کوم ابن المنیر د "باب من اعاد الحدیث ثلاثا" په طور بیان کړې دې.چې که چرې د طالب علم په پوه کښې د استاذ سبق رانشی او طالب علم د دوباره وئیلو درخواست اوکړی نو دا څه د بې ادبئ او کم عقلتوب خبره نه ده.د امام بخاری غرض ددې خلقو تردید دې چې د احادیث دوباره وئیل نه خوښوی.او دا بلادت او کم پوهی ګنړی.[4]
حضرت شیخ الهند رحمه الله فرمائی چې ددې باب نه د پوهې په غرض چې کوم مراجعت دې د هغې فضیلت بیانول منظور دی.یا دا مطلب دې چې په مراجعت کښې د عالم د بې ادبئ او د شاګرد سپکاوې نه وی.خکه نه عالم لره خفګان پکار دې او نه شاګرد لره حیا کول مناسب دی.[5]والله اعلم.

---

[1]) عمدة القاری(۲/۱۳۵) وفتح الباری(۱/۱۹۶)-
[2]) حدثنا محمد بن المثنی وابن بشار قال:حدثنا محمد بن جعفر وحدثنا عبیدالله بن معاذ.حدثناابی قال:حدثنا شعبة عن عبدالرحمن بن الاصبهانی فی هذا الاسناد بمثل معناه.وزادا جمیعا عن شعبة عن عبدالرحمن بن الاصبهانی قال:سمعت اباحازم یحدث عن ابی هریره قال:ثلاثة لم یبلغو الحنث"صحیح المسلم کتاب البر والصلة باب فضل من یموت له ولد فیحتسبه رقم(۶۷۰۰)-
[3]) عمدة القاری(۲/۱۳۶)-
[4]) الکنز المتواری(۲/۳۳۶)-
[5]) الابواب والتراجم(ص ۵٤)

خو د ترجمة الباب واضح مقصد چې كوم په عقل كښې راځي هغه دادې كه چې طالب علم د استاذ په يو خبره پوهه نه شي يا خو پوه شو خو څه اشكال ورته راغلو.نو د دغه خبرې زده كولو او د خپل اشكال د لرې كولو په غرض مراجعت كولې شي.او بلكه مراجعت پكار هم دې.چې سړې په دې اشكال كې انخښتې پاتې نه شي.اوګوره نبى كريم ﷺ چې كله ارشاد اوفرمائيلو "من حوسب عذب" نوحضرت عائشه رضي الله عنها فورا تپوس اوكړو"اوليس يقول الله تعالى (فسوف يحاسب حسابا يسيرا) مطلب دادې چې يا رسول الله! چې تاسو خو "على الاطلاق" من حوسب عذب" فرمائې،چې د هغې نه معلوميږى چې حساب يسير والا به مفلحين او فائزين وى حضورپاك ﷺ د دې جواب دا وركړې وو،چې په آيت كښې د حساب نه مراد بل دې او خما په كلام كښې بل،په آيت كښې د حساب نه مراد "پيشى" ده.اعمال نامه به كولاو كړى او پانړې به واړولې شى.او هغه به پريښودلې شى.او ما چې كوم"حوسب عذب" وئيلې دې نو دلته د "حساب" نه مراد "مناقشه" ده،يعنى د هرې هرې خبرې متعلق به سوال كيږى.چې دا ولې اوشو؟او داسې ولې اوشو؟والله اعلم

[۱۰۳] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ قَالَ أَخْبَرَنَا نَافِعُ بْنُ عُمَرَ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ أَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم- كَانَتْ لاَ تَسْمَعُ شَيْئًا لاَ تَعْرِفُهُ إِلاَّ رَاجَعَتْ فِيهِ حَتَّى تَعْرِفَهُ، وَأَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم- قَالَ «مَنْ حُوسِبَ عُذِّبَ». قَالَتْ عَائِشَةُ فَقُلْتُ أَوَلَيْسَ يَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى (فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا) قَالَتْ فَقَالَ « إِنَّمَا ذَلِكِ الْعَرْضُ، وَلَكِنْ مَنْ نُوقِشَ الْحِسَابَ يَهْلِكْ». [۴۶۵۵، ۶۱۷۱، ۶۱۷۲]

## رجال الحديث

①**سعيد بن ابى مريم**:دا سعيد بن الحكم بن محمد بن سالم جمحى مصرى رحمه الله دې.دده كنيت ابومحمد دې او د سعيدبن ابى مريم په نوم سره مشهور دې.[1]

دوى د عبدالله بن عمر عمرى.اسماعيل بن ابراهيم بن عقبه.سليمان بن بلال. ابراهيم بن سويد. امام مالک. ليث بن سعد.عبدالعزيز بن محمد دراوردى.عبدالعزيز بن ابى حازم. ابوغسان محمدبن مطرف. مغيره بن عبدالرحمن حزامى او سفيان بن عيينه رحمهم الله وغيره نه روايت كوى

دده نه روايت كوونكو كښې امام بخارى.ابراهيم بن يعقوب جوزجانى.ابوحاتم. ابوعبيد القاسم بن السلام. عثمان بن سعيدالدارمى. اسحاق بن منصورالكوسج. محمدبن يحيى ذهلى او يحيى بن معين رحمهم الله وغيره حضرات دى.[2]

[1] تهذيب الكمال(۱۰/۳۹۱)-

[2] تهذيب الكمال(۱۰/۳۹۲-۳۹۴) وتهذيب التهذيب(۴/۱۷/۱۸)-

امام نسائی رحمه الله فرمائی "سعيد بن عفير صالح وسعيد بن الحكم لا بأس به وهو احب الى من ابن عفير"[1]
امام ابوداود رحمه الله فرمائی "ابن ابی مريم عندی حجة"[2]
امام عجلی رحمه الله فرمائی "ثقة"[3] امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی "ثقة"[4]
ابن معین رحمه الله فرمائی "ثقة من الثقات"[5]
د اصول سته مصنفینو د دوی روایات قبول کړې دی[6]
۲۲۴ هجری کښې د دوی انتقال اوشو[7] رحمه الله تعالى رحمة واسعة
**④ نافع بن عمر**: دا نافع بن عمر بن عبدالله جمحی قرشی مکی رحمه الله دې[8]
دوی د عبدالله ابی ملیکه. امیه بن صفوان جمحی، بشربن عاصم ثقفی. عبدالملک بن ابی محذوره. عمر بن دینار، سعیدبن حسان او سعیدبن ابی هند رحمهم الله وغیره نه روایت د حدیث کوی دده نه روایت کوونکو کښې عبدالله بن المبارک، یحیی القطان. ابواسامه حماد بن اسامه. عبدالرحمن بن مهدی. امام وکیع، یزید بن هارون. عبدالله بن مسلمه القعنبی. سعید بن ابی مریم، محمدبن یوسف فریابی او ابوسلمه تبوذکی رحمهم الله وغیره حضرات دی[9]
عبدالرحمن بن مهدی رحمه الله فرمائی "كان من اثبت الناس"[10]
امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی "ثبت ثبت صحيح الحديث"[11]
دغه شان هغوی فرمائی "نافع بن عمر احب الى من عبدالجبار بن الورد وهو اصح حديثا وهو فى الثقات ثقة"[12] امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی "ثقة"[13]
امام نسائی رحمه الله فرمائی "ثقة"[14]

---

[1] تهذيب التهذيب(۱۸/۳)-
[2] تهذيب الكمال(۱۰/۳۹٤)-
[3] حواله بالا
[4] حواله بالا
[5] تهذيب التهذيب(٤/۱۸)-
[6] تهذيب الكمال(۱۰/۳۹۵)-
[7] حواله بالا
[8] تهذيب الكمال(۲۹/۲۸۷)-
[9] تهذيب الكمال(۲۹/۲۸۷، ۲۸۸) وسير اعلام النبلاء (۷/٤۳۳)-
[10] تهذيب الكمال(۲۹/۲۸۹)-
[11] حواله بالا
[12] حواله بالا
[13] حواله بالا
[14] حواله بالا

ابن ابی حاتم رحمه الله فرمائی سئل ابی عنه فقال: ثقة وسالت ابی عنه: يحتج بحديثه؟ قال نعم. (١)

حافظ ذهبی رحمه الله د ده تذکره کولو سره فرمائی الامام الحافظ الثبت (٢)

ابن حبان دوی په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دی. (٣)

البته ابن سعد رحمه الله فرمائی كان ثقة قليل الحديث فيه شيء. (٤)

خو حافظ ذهبی رحمه الله دا رد کولو سره فرمائی هذا نوع من العنت والرجل فكما قال الامام احمد، وكما قال ابن مهدی فيه: كان من اثبت الناس وقال ابن معين والنسائى وابوحاتم: ثقة. (٥)

یعنی داسې ثقه سړی په باره کښې فيه شيء ونیل سره تضعیف کول یو قسم سختې دې. دا چې د هغه ټولو ائمه توثيق کړې دې

دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله د ابن سعد کلام رد کولوسره ليکی احتج به الائمة وقد قدمنا ان تضعيف ابن سعد فيه نظرا، لاعتماده على الواقدی. (٦)

یعنی دې ټولو ائمه احتجاج کړې دې. مونږ ونیلې دی چې د ابن سعد به دې تضعيف کښې نظر دې ځکه چې هغه په واقدی باندې اعتماد کړې دې

لهذا د ابن سعد د کلام هيڅ اعتبار نشته. نافع بن عمر ثقه. ثبت او حجت دې

د نافع ابن عمر رحمه الله انتقال ١٢٩ هجری کښې اوشو. (٧)

③ **ابن ابی ملیکه**: دا عبدالله بن عبيدالله بن ابی ملیکه تیمی قرشی رحمه الله دې ددوی حالات د كتاب الايمان باب خوف المؤمن من ان يحبط عمله وهولا يشعر د لاندې تير شوې دی. (٨)

④ **عائشه** رضی الله عنها: د حضرت عائشه رضی الله عنها حالات د بدء الوحی ددویم حديث لاندې تير شوې دی. (٩)

**قوله**: ان عائشة زوج النبی صلی الله علیه وسلم كانت لاتسمع شيئا لا تعرفه الا راجعت فيه حتى

**تعرفه**: حضرت عائشه رضی الله عنها حضورپاک صلی الله علیه وسلم بی بی چې به کله یو داسې خبره واوریدله چې د څه په باره کښې به هغوی ته علم نه وو نو د هغې په باره کښې به نې تپوس کولو. چې هغه نبې طريقې سره زده کړی.

---

(١) حواله بالا والجرح والتعديل لابن ابن حاتم(٨/ ٥٢٠)رقم(١٥٣٩٥-٢٠٨٨)-
(٢) سير اعلام النبلاء(٧/ ٤٣٣)-
(٣) الثقات لابن حبان(٧/ ٥٣٣)-
(٤) الطبقات لابن سعد(٥/ ٤٩٤)-
(٥) ميزان الاعتدال(٤/ ٢٤١) رقم(٨٩٩٤)-
(٦) هدی الساری(ص٤٤٧)_
(٧) الكاشف(٢/ ٣١٥) رقم(٥٧٨٥)
(٨) كشف البارى(٢/ ٥٤٨)-
(٩) كشف البارى(١/ ٢٩١)-

**قوله**: وان النبی ﷺ قال: من حوسب عذب، قالت عائشة: فقلت: اولیس یقول الله (فسوف یحاسب حسابا یسیرا)؟ قالت: فقال: انما ذلك العرض، ولكن من نوقش الحساب یهلك.: حضور پاک ﷺ اوفرمائیل چې چاسره حساب اوکړې شی نو هغه ته عذاب ورکولې شی. حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چې ما عرض اوکړو چې الله تعالی دا نه وائی؟ چې دې خلقو سره به اسان حساب کیږی؟ حضرت عائشه فرمائی چې هغوی ﷺ اوفرمائیل چې هغه خو صرف پیشی وی. البته چاسره چې مناقشه اوکړې شی هغه به هلاک شی

مطلب دادې چې یو ورځ دا قصه اوشوه چې حضور پاک ﷺ من حوسب عذب اوفرمائیل. یعنی د چاسره چې حساب اوکړې شی هغه ته به عذاب وی

حضرت عائشه رضی الله عنها ته اشکال راغلو چې یو طرف ته خو تاسو فرمائی چې چاسره هم حساب اوشی هغه ته به عذاب ورکیږی. بل طرف ته الله د هغې خوش نصیبو تذکره کړې ده چاته چې په ښی لاس باندې عمل نامه ورکړې کیږی. هغه به کامیاب خلق وی. د هغوی باره کښې راغلې دی چې هغوی سره به هم محاسبه کیږی اګرچې هغه به آسانه وی.

(فاما من اوتی کتابه بیمینه، فسوف یحاسب حسابا یسیرا، وینقلب الی اهله مسرورا) (١) ګویا چې په دوی باندې به څه عذاب نه وی.

حضور پاک ﷺ ددې اشکال دا جواب ورکړو چې په آیت کښې د حساب نه مراد عرض او مخامخ کیدل دی، او ځما په کلام کښې د حساب نه مراد مناقشه (بحث) دې. چې داسې د ولې اوکړل؟ او داسې ولې اوشول؟ داسې د ولې اونکړل؟ وغیره. والله اعلم بالصواب

## ۳۷ _ باب: لیبلغ العلم الشاهد الغائب

**دماقبل باب سره مناسبت**: ماقبل باب کښې د دې ذکر وو چې کله دعالم نه څه خبره واوری نو متکلم یا سامع مراجعت کولې شی. ددې په نتیجه کښې به عالم، سامع او متعلم پوهوی او دا تبلیغ دې. ګویا چه مراجعت کونکې غائب وو. په دې وجه اوریدې یې نشو او اوس په مراجعت سره اوری او زده کړه کوی. په دې باب کښې هم دحاضر سړی غائب ته رسول اوپوهول دی. په دې طریقې سره دواړو ابوابو کښې مناسبت شو (٢)

**د ترجمة الباب مقصد**: حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله فرمائي چونکه حدیث شریف کښې راځي بلغوا عني ولو آية (٣)

حضرت شیخ الهند رحمه الله فرمائي چه په دې کښې د علم تبلیغ صریح تاکید او تعمیم دې، ځوك چه دعلم مجلس کښې حاضر وی هغه ته پکار دی چه ځومره احکام واوری هغه دې غائبینو

---

١) الانشقاق ٧-٩)-

٢) عمدة القاری (ج ٢ ص ١٣٨) _

٣) صحیح البخاری (ج ١ ص ٤٩١) کتاب احادیث الانبیاء، باب ما ذکر عن بنی اسرائیل رقم (٣٤٦١) _

نه اورسوی.په اهل علمو باندې تبليغ كول بالاستقلال لازم دي.چه په دې كښې دسائل سوال يا د حاجت مند ضرورت نشته او كم يا زيات چې څومره علم وي هم دهغې دتبليغ ذمه دار دې (۱)

د امام بخاری رحمه الله غرض ددې باب نه دا هم كيدې شي چه كه ديو مسئلې دبيانولو ضرورت راپيښ شي او حاضر خلقوته معلوم نه وي نو دسوال انتظار دې نه كوی.بلكه مسئله دې بيان كړي. اوګورئ حضرت ابوشريح خزاعی رضی الله عنه ته چه معلوم شوه چه عمروبن سعيد په مكې مكرمې باندې حمله كول غواړي.هغه دحضرت ابوشريح نه څه سوال نه وو كړې.خكه چه هغه ته حديث معلوم وو.پس هركله چه هغه ته حديث معلوم وو نو هغوی دسوال انتظار اونه كړل اولاړو او هغې ته يې حديث واورولو والله اعلم

امام بخاری رحمه الله چه كومه ترجمه دلته قائمه كړې ده هغه حديث پاك دې.ددې حواله هغوی تعليقا قاله ابن عباس عن النبی صلی الله عليه وسلم سره وركړې ده

پخپله امام بخاری رحمه الله دا حديث په كتاب الحج كښې موصولا ذكر كړې دې (۲)

خو ددې روايت په يو طريق كښې هم دالعلم لفظ موجودنه دې.حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چونكه مقصود او مراد هم د دې (علم) تبليغ دې.په دې وجه دا قيد يې زيات كړو (۳)

[۱۰۴] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي سَعِيدٌ عَنْ أَبِي شُرَيْحٍ أَنَّهُ قَالَ لِعَمْرِو بْنِ سَعِيدٍ وَهُوَ يَبْعَثُ الْبُعُوثَ إِلَى مَكَّةَ ائْذَنْ لِي أَيُّهَا الأَمِيرُ أُحَدِّثْكَ قَوْلاً قَامَ بِهِ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - الْغَدَ مِنْ يَوْمِ الْفَتْحِ، سَمِعَتْهُ أُذُنَاىَ وَوَعَاهُ قَلْبِي، وَأَبْصَرَتْهُ عَيْنَاىَ، حِينَ تَكَلَّمَ بِهِ، حَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ «إِنَّ مَكَّةَ حَرَّمَهَا اللَّهُ، وَلَمْ يُحَرِّمْهَا النَّاسُ، فَلاَ يَحِلُّ لاِمْرِئٍ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ أَنْ يَسْفِكَ بِهَا دَمًا، وَلاَ يَعْضِدَ بِهَا شَجَرَةً، فَإِنْ أَحَدٌ تَرَخَّصَ لِقِتَالِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فِيهَا فَقُولُوا إِنَّ اللَّهَ قَدْ أَذِنَ لِرَسُولِهِ، وَلَمْ يَأْذَنْ لَكُمْ. وَإِنَّمَا أَذِنَ لِي فِيهَا سَاعَةً مِنْ نَهَارٍ، ثُمَّ عَادَتْ حُرْمَتُهَا الْيَوْمَ كَحُرْمَتِهَا بِالأَمْسِ، وَلْيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ». فَقِيلَ لأَبِي شُرَيْحٍ مَا قَالَ عَمْرٌو قَالَ أَنَا أَعْلَمُ مِنْكَ يَا أَبَا شُرَيْحٍ، لاَ يُعِيذُ عَاصِيًا، وَلاَ فَارًّا بِدَمٍ، وَلاَ فَارًّا بِخَرْبَةٍ. [۱۷۳۵ ، ۴۰۴۴]

## رجال الحديث

① عبدالله بن يوسف (۴) دا مشهور امام ومحدث ابومحمد عبدالله بن يونس كلاعی

---

(۱) الابواب والتراجم (ص ٥٤ و ٥٥)_

(۲) اوګورئ صحيح البخاری (ج ۱ص ٢٣٤) كتاب الحج.باب الخطبة ايام منی.رقم (۱۷۳۹)

(۳) فتح البادی (ج ۱ص ۱۹۸).

(۴) ددوی مختصر حالات په كتاب بدء الوحی كښې د دويم حديث په ذيل كښې ذكر شوی دی. اوګورئ كشف الباری (ج ۱ ص ۲۸۹)

دمشقی رحمه الله دی (۱)

دوی دسعید بن عبدالعزیز، سعید بن بشیر، امام مالک، امام لیث بن سعد، صدقة بن خالد او دبکر بن مضر رحمهم الله نه روایت کوی

ددوی نه روایت کونکو کښې امام بخاری، امام یحی بن معین، امام محمد بن یحی ذهلی، ابو اسحاق جوزجانی، ربیع بن سلیمان رحمهم الله مرادی وغیره ډیرلونی محدثین دی (۲)

امام عجلی رحمه الله فرمائي ثقة (۳)

امام بخاری رحمه الله فرمائي كان من اثبت الشاميين (۴)

ابومسهر رحمه الله فرمائي عبدالله بن يوسف الثقة المقنع (۵)

امام یحی بن معین رحمه الله فرمائي مابقى على اديم الارض احد اوثق فى الموطا من عبدالله بن يوسف التنيسي (۶) یعنې په مخ دزمکې دموطا په روایت کښې دعبدالله بن یوسف تنیسي رحمه الله نه زیات مضبوط څوك نه دي پاتې شوي

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائي هواتقن من مروان الطاطرى، وهوثقة (۷)

ابن یونس رحمه الله فرمائي وكان ثقة حسن الحديث (۸)

امام خلیلی رحمه الله فرمائي ثقة متفق عليه (۹)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي ثقة متقن من اثبت الناس فى الموطا (۱۰)

ابن حبان رحمه الله دهغوی ذکر په کتاب الثقات کښې کړې دې (۱۱)

ددې ټولو توثیقاتو په مقابله کښې ابن عدی رحمه الله دهغوی تذکره دضعفاء دپاره لیکلې شوې مخصوص کتاب «الکامل» کښې کړې ده (۱۲) ددې وجه داده چه یحي بن بکیر رحمه الله دهغوی په

---

(۱) تهذیب الکمال (ج۱۶ ص۳۳۳)_

(۲) دشیوخواو تلامذو تفصیل د پاره اوګورئ تهذیب الکمال (ج۱۶ص۳۳۳ و ۳۳۴). وسیر اعلام النبلاء (ج۱۰ ص۳۵۷و ۳۵۸)_

(۳) تهذیب الکمال (ج۱۶ص۳۳۵)_

(۴) حواله بالا)_

(۵) حواله بالا) _

(۶) حواله بالا)_

(۷) حواله بالا)_

(۸) تهذیب التهذیب (ج۶ص۸۷)_

(۹) حوالا بالا)_

(۱۰) تقریب التهذیب (ص۳۳۰)، رقم (۳۷۲۱)_

(۱۱) الثقات لابن حبان (ج۸ ص۳۴۹)_

(۱۲) الکامل لابن عدی (ج۴ص۲۰۵)_

باره کښي وائي متى سمع من مالك؟ومن رأه عند مالك؟ [۱]
لیکن پخپله ابن عدی چه کله دا واقعه نقل کړه نو ورسره یې دمحمد بن عبدالله بن عبدالحکم دا واقعه هم ذکر کړه چه هغوی دابومسهرسره ملاقات اوکړو نو هغوی اووئیل چه عبدالله بن یوسف ماسره موطا په ۱۶۶ هجری کښي دامام مالك نه واوریده .محمدبن عبدالله بن عبدالحکم وائي چه ما داخبره ابن بکیرته ذکرکړه.دې نه پس هغوی څه اونه وئیل [۲]
حافظ ذهبی رحمه الله فرمائي اسله ابن عدی بذكره في الكامل [۳]
نیزهغوی وائی ابن یوسف اثبت فی الموطا من ابن بکیر واوثق بکثیر،وناهیك ان یحی بن معین قال:مابقی علی ادیم الارض اوثق من ابن یوسف فی الموطا [۴]
یعني ابن یوسف په موطا کښي دابن بکیرپه مقابله کښي اثبت او ډیرزیات ثقه دې.داخبره کافی ده چه ابن معین وائي چه د زمکښي په مخ باندې دابن یوسف نه زیات ثقه کس دموطاپه باره کښي باقی نه دې پاتې شوې
پخپله ابن عدی رحمه الله فرمائي وعبدالله بن یوسف،هوصدوق لا باس به،والبخاری مع شدة استقصائه اعتمد علیه فی مالك وغیره،ومنه سمع الموطا،وله احادیث صالحة،وهوخیر فاضل [۵]یعني عبدالله بن یوسف صدوق لاباس به دې امام بخاری باوجود دشدید استقصاءنه دامام مالك په روایتونو کښي هغوی باندې اعتماد کوی.هم د هغوی نه دوی دموطا سماع اوکړه.دهغوی ډیر احادیث دی،هغوی صاحب خیر او فاضل دی
دعبدالله بن یوسف تنیسی انتقال ۲۱۸ هجری کښي اوشو [۶]
② **اللیث**: دامشهورامام لیث بن سعدبن عبدالرحمن فهمی مصری رحمه الله دې.دهغوې حالات د بدء الوحی د دریم حدیث دلاندې تیرشوی. [۷]
③ **سعید** دا ابوسعد سعیدبن ابی سعید مقبری مدنی رحمه الله دې.ددوی حالات کتاب الایمان، باب الدین یسر دلاندې تیرشوی [۸]
④ **ابوشریح** رضی الله عنه:دا حضرت ابوشریح خزاعی عدوی کعبی رضی الله عنه دی [۹]

---

[۱] حوالا بالا. او اوګورئ میزان الاعتدال(ج۲ص۵۲۸).رقم (۳۷۱۲)_
[۲] الکامل (ج ٤ص۲۰۵)_
[۳] میزان الاعتدال(ج۲ص۵۲۸).رقم (٤۷۱۲)_
[٤] حوالا بالا)_
[۵] الکامل(ج ٤ص۲۰۵)_
[٦] الکاشف(ج۱ص ۶۱۰).رقم (۳۰۶۹)
[۷] کشف الباری (۱ص ۳۲٤)_
[۸] کشف الباری (ج۲ص۳۳۶)_
[۹] تهذیب الکمال(ج۳۳ ص ٤۰۰)_

دوی په نوم کښې ډیر اختلاف دی. خویلد بن عمرو. عبدالرحمن بن عمرو. عمرو بن خویلد وغیره یوڅو نومونه راغلی دی. لیکن مشهور خویلد بن عمرو دې [۱]۔
دوی دفتح مکه نه وړاندې مسلمان شوی وو. دفتح مکه په موقع باندې دبنی کعب دریوجهنډو کښې یوه جهنډه ددوی په لاس کښې وه [۲] دوی دنبی ﷺ نه علاوه دحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ نه هم روایت کوی ددوی نه روایت کونکوکښې ابوسعید مقبری. سعید بن ابي سعید مقبری سفیان بن ابي العوجاءاونافع بن جبیر بن مطعم ﷺ دی [۳] امام واقدی رحمه الله فرمائي کان ابوشریح الخزاعی من عقلاء اهل المدینة. [۴] دحضرت ابو شریح نه تقریبا شل روایات نقل دی چه په هغې کښې دوه روایتونه متفق علیه دی اویوحدیث کښې امام بخاری متفرد دي [۵] دحضرت ابوشریح ﷺ انتقال په مدینه منوره کښې په ۶۸ هجری کښې اوشو [۶] رضی الله تعالیٰ عنه وارضاه

**قوله:** انه قال لعمرو بن سعید _ وهو یبعث البعوث الی مکة: _ حضرت ابوشریح ﷺ عمرو بن سعید ته اوفرمائیل په هغه وخت کې کله چه هغه مکې مکرمې ته فوج لیږلو

**دحضرت ابوشریح دنصیحت تاریخی پس منظر:** دحضرت معاویه ﷺ وفات په ۱۵ رجب ۶۰ هجرۍ کښې اوشو. هغوی دخپل ژوند په آخر کښې یزید بن معاویه خپل ولی عهد جوړ کړو او ټولو خلقو نه دهغې دپاره بیعت واخستلو.
حضرت معاویه ﷺ د انتقال په وخت ضحاك بن قیس اومسلم بن عقبه خپل وصی جوړ کړل. هغه وخت یزید د ښکار دپاره تلې وو. هغوی ته یې اووئیل چه کله یزید راشی نوهغه ته زما سلام اووائې او داهم ورته اووائې چه د اهل حجاز او داهل شام خیال ساته. دابن عمر نه څه ویره نشته. البته دحسین او دعبدالله بن الزبیر دبیعت اهتمام اوکړه.
کله چه یزید راغلونوهغه ته داپیغام اورسولې شو. یزید دمدینې منورې امیر ولید بن عتبه بن ابی سفیان ته خط اولیکلو. هغه حضرت حسین اوحضرت عبدالله بن زبیر ﷺ راوغوښتل حضرت عبدالله بن زبیر ﷺ فورا داخبره اخوا دیخوا کړله. اوحضرت حسین ﷺ خپل خادمانو یوجماعت سره هلته اورسیدو. هغوی نې باهر کینول او وې فرمائیل که دخطرې څه خبره واورئ نودننه راشئ اوبخپله نې دننه تشریف یوړلو

---

[۱] اوګورئ تهذیب الکمال (ج ۳۳ ص ۴۰۰) والاستیعاب بهامش الاصابة (ج ۱ ص ۴۴۱ و ۴۴۲) حرف الخاء و(ج ۴ ص ۱۰۱ و ۱۰۲) الکنی. والاصابة (ج ۴ ص ۱۰۱ و ۱۰۲)
[۲] اوګورئ طبقات ابن سعد (ج ۴ ص ۲۹۵) ومراجع مذکوره بالا) _
[۳] دشیوخو اودتلامذو تفصیل دپاره اوګورئ تهذیب الکمال (ج ۳۳ ص ۴۰۱) _
[۴] الاستیعاب بهامش الاصابة (ج ۴ ص ۱۰۲) _
[۵] اوګورئ عمدة القاری (ج ۲ ص ۱۳۹). خلاصة الخزرجی (ص ۴۵۲) کښې دی له عشرون حدیثا. اتفقا علی حدیثین وانفرد (خ م) بحدیث. دې کښې د «م» رمز بظاهر صحیح نه دې. اوګورئ تحفة الاشراف (ج ۹ ص ۲۲۳ و ۲۲۶) _
[۶] اوګورئ الکاشف (ج ۲ ص ۴۳۴) رقم (۶۶۷۴) _

حضرت حسين رضي الله عنه ته وليد د يزيد پيغام واورولو ،حضرت حسين رضي الله عنه اوفرمائيل زما په رنګ كس نه بيعت او داسې په تنهائۍ كښې مانه په مجمع عام كښې بيعت واخله. وليد امن پسند سړې وو ،هغې اووئيل ډيره ښه هلته مروان هم ناست وو .هغه اووئيل دوى نه سمدستى هم بيعت واخله .كه بيعت نه كوى نوداقتل كړه .اوس كه دوى دې خاني نه لاړل نوستا او د هغوى په مينځ كښې به ډيرلونې جنګ اوشى .حضرت حسين رضي الله عنه دهغه خاني نه راپاسيدو او

وې فرمائيل: ابن الزرقاء انت تقتلنى ام هو؟كذبت والله ولومت.دې نه پس هغوى واپس خپل كورته راغلل

دهغوى دتلونه پس مروان وليدته اووئيل چه تازماخبره اونه منله .اوس به تول ژوند ته دهغوى مخ نيوې نشې كولې .وليد اووئيل چه:

ويح غيرك يامروان، والله ما احب ان لى ما طلعت عليه الشمس وغربت عنه من مال الدنيا وملكها، وانى قتلت حسينا ان قال:لا ابايع، والله انى لاظن ان امرءا يحاسب بدم الحسين لخفيف الميزان عند الله يوم القيامة.

يعني اې مروان افسوس دې په خدائې قسم كه ماسره ددنيا اموالوكښې هرڅه وى چه په هغه باندې نمر راخيژى او غورزيږي، ماته داخوښ نه دې چه ددې په مقابله كښې دحسين دبيعت نه دانكار په وجه حسين قتل كړم، په خدائې قسم زه دا پوهيږم چه دكوم كس نه دحسين قتلولو حساب واخستلې شو هغه به دالله په نزد قيامت كښې ډير سپك وزن والاوى.

مروان هم په ظاهره دوليد تائيد اوكړو.

حضرت ابن الزبير رضي الله عنه دحالاتو نه خبريدو ،هغوى پسې وليد خپل كسان برابرليږل .ليكن هغوى موقع موندلوسره په پټه مكې مكرمې ته لاړل.

بل طرف ته حضرت حسين رضي الله عنه هم خپلو احبابوسره مشوره اوكړه اومكې مكرمې ته لاړل.

وليدحضرت ابن عمر رضي الله عنه ته پيغام اوليږلو .هغوى جواب وركړو چه كله ټول خلق بيعت اوكړى نو زه به هم اوكړم،ارباب اقتدارته دهغوى دطرف نه څه خاص خطره هم نه وه ديوروايت مطابق هغوى بيعت كړې وو.

يزيدته چه كله ددې ټولو خبرو علم اوشو .نوهغه پوهه شوچه دوليدنه څه كوتاهى شوې ده ،پس هغه يې معزول كړو اودمكې ګورنر عمروبن سعيد يې دمدينې ګورنر جوړ كړو

عمروبن سعيد رمضان ٦٠هجرى كښې مدينې طيبې ته اورسيدو او دذوالقعده ٦٠هجرى نه نې دامارت امور سنبهال كړل.

بل طرف ته دااوشوچه حضرت حسين رضي الله عنه ته دكوفې خلقو خط اوليكلو اوخپل طرف ته يې راوبللو حضرت ابن عباس رضي الله عنه اونورو ملګرو دوى منع هم كړو .ليكن چونكه مقدرغالب وو، كوفې ته يې تشريف يوړلو .اوبيا هلته په ١٠ محرم ٦١ هجرى كښې دهغوى دشهادت واقعه فاجعه پيښه شوه.

بل طرف ته حضرت عبدالله بن الزبير رضي الله عنه ددې واقعې په بنياد خلقوته دشام والوظلم اوستم ښودلوسره براګيښته كړل.ډيروخلقو دهغوى په لاس بيعت اوكړو

عمروبن سعيد دحضرت عبدالله بن الزبير دمقابلې اومحاصرې دپاره يولښكر تيار كړو، كله

چه مروان ته ددې اطلاع اوشوه نوهغه راغلواو وې وئيل ګوره مكې باندې دحملې دپاره لښكر مه ليږه. عمربن سعيدپه دې خبره پوهه شو.اوهغه منع شو.خو عمروبن الزبير چه د عبدالله بن الزبير دپلار دطرف نه ورور وو.هغه دعبدالله بن الزبير رضي الله عنهما دشمن وو.اوهغه دعمرو بن سعيد شرطيانو سردار وو.هغه اوونيل والله لنغزونه فى جوف الكعبة على رغم انف من رغم.يعني څوك چه څومره هم سوزى.مونږه خوضرورباالضرور كه دكعبې شريفې دننه هم دجنګ نوبت راشي نو جنګيګوبه

حضرت ابوشريح خزاعى رضي الله عنه ته چه كله ددې لښكر دمقصد علم اوشونوهغوى تشريف راوړلو. دهغوى نه اجازت يې اوغوښتلو اودنبى كريم ﷺ هغه حديث يې واورولو كوم چه مخكښې راروان دې.عمروبن سعيدته يزيدتاكيدى حكم اوليږلو.لهذا دالښكر مكې مكرمې ته روان شو

هلته مكې والوهم تيارى اوكړلو.حضرت عبدالله بن الزبير رضي الله عنهما دعبدالله بن صفوان په ماتحتئ كښې فوج دمقابلې دپاره اوليږلو.ددواړولښكرونو مقابله اوشوه دعمروبن الزبير فوج ته شكست اوشو.دهغه خوې قتل شو اوپخپله ګرفتارشو.دګرفتارئ نه پس نې دكوړوسزا وركړه.او هم په هغې كښې مړشو

هم په دغه كال ۶۱ هجرى كښې يزيد عمروبن سعيد معزول كړو اودوباره يې وليد بن عتبه ګورنر مقرر كړو.هغه دحضرت عبدالله بن الزبير قابوكولو ډير كوشش اوكړو.خو كامياب نه شو. بل طرف ته ابن الزبير رضي الله عنهما يوتدبير اوكړو اويزيدته يې خط اوليكلو چه داوليد يو احمق كس دې. چه يو ښه خبرې اوريدو ته نه تيارږى.ده په ځا نې كه يونرم اخلاقو والا كس وې نومشكلات لرې كيدې شو.لهذايزيد وليد بن عتبه معزول كړو او سفيان بن محمدبن ابى سفيان يې ګورنر جوړ كړو. دايوناتجربه كار ځوان وو.هغه دمدينې منورې نه يزيدته د اشرافو يو وفد اوليږلو.يزيد دهغې وفدډيراكرام اوكړو.ليكن داوفدچه كله واپس راغلو نو خلقوته يې اوونيل چه يزيد خو ډير شرابى كبابى سړې دې.مونږ نه كوى.نو خلقودهغه بيعت مات كړو.دې سره نور خلق هم متأثر شول اوهغوى هم دشام خلقوسره تعلق ختم كړو.عثمان بن محمديې لرې كړو او عبدالله بن حنظله په لاس يې بيعت اوكړو.داواقعه د ۶۲ هجرى ده

يزيدته چه كله داهل مدينه د بيعت ختمول معلوم شونوډير غصه شواوډيرد غصې اظهاريې اوكړو. هغه دخپل خواصو سره مشوره اوكړه.حضرت معاويه رضي الله عنه هم مخكښې داوصيت كړې وو چه داهل مدينه په باره كښې كه ضرورت راپيښ شى نومسلم بن عقبه المرى استعمال كړه لهذا دافيصله اوشوه چه مسلم بن عقبه په ماتحتئ كښې مدينې منورې ته لښكر اوليږلې شى. داكس بوډا او بيمار وو.يزيدهدايت اوكړوچه كه دامړشى نوددې په ځائې دې حصين بن نمير امير جوړكړې شى اودا يې اوونيل چه مدينې والو ته ددرې ورځې مهلت وركړئ.كه هغوى اومنل نوفبها ونعمت ګنى مدينه طيبه نعوذبالله مباح ده

دالښكر مدينې ته اورسيدو.مدينې والوته ددرې ورځې مهلت وركړې شو.هغوى اونه منله. بيا په طرفينو كښې جنګ اوشو.اهل مدينه ډير نرتوب سره مقابله اوكړه.ليكن دا اوشو چه بنو حارثه شاميانو ته په مدينه كښې دداخليدوموقع وركړه.كله چه دښار دمينځ نه دتكبير

آواز اوچت شونواهل مدینه ډیر بدحواسه شول.اوهغوی مسکینان مجبورشول.بیاخوشام والو ډیرخونریزی اوکړه.تقریبا اوو سوه مهاجرین اوانصارشهیدان شول اوتقریبا لس زره غلامان شول. داهم ونیلې شي چه شامیانودزنا اود فجوربازارهم گرم کړوتردې چه یوزرباکره ښځې حامله شولې والله اعلم بالصواب.

دې نه پس هغه په دې شرط دمدینې والونه بیعت واخستوچه هغوی به دیزید غلامان وی.که آزاد وی. اوکه خرڅوی.اوبیامکې ته روان شو.داواقعه د ۶۳ هجری ده

تراوسه هغه په لاره کښې ووچه مقام «مشلل»یا «ثنیة هرشی»ته اورسیدو اومړشو.دمرگ په وخت هغه حسین بن نمیر سکونی راوبللو او ورته یې اوونیل که دامعامله زما په اختیار کښې وې نوما به کله هم ته خپل جانشین نه جوړولې.خوچونکه دیزیدحکم دې.خکه تاخپل جانشین جوړوم.دې نه پس یې ورته څه وصیتونه اوکړل اومړشو

دهغه دمرگ نه پس حصین بن نمیرپه ۶۴ هجری دمحرم دمیاشت په آخر کښې مکې ته اورسیدو. د حضرت عبدالله بن الزبیراودهغوی دملگرو محاصره یې اوکړه.مقابله شروع شوه. حتی چه د ربیع الاول شروع کیدوسره په بیت الله باندې دمنجنیق په ذریعه کانړی اوورولې شو اودې سره هغوی په بیت الله شریف باندې اور هم او وروله.اودې سره دکعبې غلاف اوسوزیدو.تردې چه په ربیع الاول کښې دیزید مرگ هم واقع شو.په ربیع الثانی کښې داخبر دشامیانو نه وړاندې حضرت عبدالله بن الزبیرته اورسیدو.هغوی شامیانوته اوونیل چه تاسوولې جنگ کوئ ستاسوطاغیه خو مړشو ابتداءً هغوی داخبره اونه منله.خوبیا یې یقین اوشو.دغه شان دالښکر واپس شو.

اوس حضرت عبدالله بن الزبیر ﷺته دخپل دعوت چلولوموقع ملاوشو اوډیروخلقودهغوی سره بیعت اوکړلو.لیکن دلته په شام کښې اول دمعاویه بن یزیدبن معاویه بیعت اوشو. خومیاشتو کښې دهغه انتقال اوشو.دې نه پس مروان بن الحکم خلیفه شو.دمروان نه پس عبدالملك خلیفه شو.داډیراعتمادوالاکس وو.هغه ورو ورو د دارالاسلام ټولې علاقې قبضه کړې اوپه ۷۳ هجری کښې یې دخپل سپه سالار حجاج بن یوسف ثقفی په ذریعه حضرت عبدالله بن الزبیر ﷺ قتل کړو (۱)

داټوله واقعه ددې دپاره ذکر کړې شوه چه داټوله دیوبل سره مربوط ده.گنی مقصودخو ابتدائی قصه وه.چه پکښې دعمروبن سعید په مکې باندې دلښکرلیږلو قصه وه

**قوله: ائذن لی ایها الامیر احدثك قولا قام به النبی ﷺ الغد من یوم الفتح،سمعته اذنای ووعاه قلبی وابصرته عینای حین تکلم به:** اې امیر تاسوماته دیوې خبرې اورولواجازت راکړئ.چه په هغې باندې نبی ﷺ دفتح مکې په بله ورځ په ولاړه

---

۱) دټولو تفصیلاتودپاره اوگورئ:الکامل لابن الاثیر(ج۳ص۲۵۹ و ۳۵۰ ومابعدها). والاصابة (ج۳ ص۴۹۳ و ۴۹۴) القسم الثالث.ترجمة مسلم بن عقبة.رقم(۸٤١٤).ووفیات الاعیان لابن خلکان(ج۶ص۲۷۶) ترجمة یزیدبن القعقاع القاری)_

خطبه ورکړې وه، زمونږ دواړو غوږونو هغه خبره واوریده، زړه مو هغه خبره محفوظه کړه، اوکله چه نبي ﷺ هغه خبره ارشاداوفرمائیله نوزما سترګو هغوی ته کتل

حضرت ابوشریح رضی الله عنه عمروبن سعید دمتاثره کولودپاره دتلطف لاره اختیاره کړه او وې فرمائیل ائذن لي ایها الامیر.....

احدثك دجواب امرپه وجه مجزوم دې.

دقام به النبی ﷺ مطلب دې قام به خطیبا.

د سمعته اذناي ووعاه قلبي وابصرته عیناي وئیلواوپه دې سره حدیث اورولو مقصد داباور کول دې چه ماته څه قسم ذهول نه دې شوې اونه په اوریدوکښې مانه څه غلط فهمي شوې ده

**قوله: حمد الله، واثنی علیه، ثم قال:** نبی کریم ﷺ دالله تعالی حمدوثنابیان اوفرمائیله اوبیایې اوفرمائیل، ان مکة حرمها الله ولم یحرمها الناس .

بې شکه الله مکه حرام ګرځولې ده، خلقو حرام نه ده ګرځولې.

مخکښې دحضرت عبدالله بن زید رضی الله عنه حدیث راروان دې[۱] هم دغه شان دحضرت انس رضی الله عنه حدیث هم راروان دې، اوپه هغې کښې تصریح دې ان ابراهیم حرم مکة اوپه هغه روایت کښې ان مکة حرمها الله ولم یحرمها الناس راغلې دې، په ظاهره باندې په دواړو روایتونو کښې تعارض دې په دواړو روایتونو کښې دتطبیق صورت دادې چه اصل تحریم دالله تعالی په حکم سره اوشو.

حضرت ابراهیم علیه السلام په خپل اجتهادنه، نود ان ابراهیم حرم مکة مطلب داشو ان ابراهیم حرم مکة بامرالله تعالی لاباجتهاده.

یا دا مطلب دې چه حضرت ابراهیم علیه السلام دطوفان نوح نه پس چه کله دمکې تحریم پټ شوې وو نو بیا یې دمکې د تحریم اعلان اوکړو.

یادې داسې اووانیلې شی چه ان الله قضی یوم خلق السماوات والارض ان ابراهیم سیحرم مکة.

یا دامطلب دې ان ابراهیم اول من اظهر تحریمها بین الناس وکانت قبل ذلك عندالله حراما.[۲]

**قوله: فلایحل لامرئ یومن بالله والیوم الآخران یسفك بها دما:** پس یوسړی دپاره هم چه په الله اوپه ورځ داخرت باندې ایمان ساتی حلال نه دې چه هلته وینه اوبهیوی.

دلته دایمان قید اولګولې شو. دې نه په دې مسئله باندې استدلال کړې شوې دې چه کفار دفروع مخاطب نه دی

**کفار دفروع مخاطب دی او که نه؟** دامسئله مختلف فیها ده، د احنافوپه دې کښې یوڅو

---

[۱]) صحیح البخاری(ج۱ص۲۸۶).کتاب البیوع. باب برکة صاع النبی ﷺ ومدهم. رقم (۲۱۲۹). و (ج۱ص۴۷۷) کتاب احادیث الانبیاء.باب(بدون ترجمة.بعدباب:یزفون النسلان فی المشی).رقم(۳۳۶۷)_

[۲]) اوګورئ: فتح الباری(ج٤ص٤۳)کتاب جزاء الصید.باب لایعضد شجرالحرم)_

اقوال دى. ابن نجيم رحمه الله په شرح المنار كښي ليكلي دي چه كفار دايمان مخاطب خودى.هم دغه شان دحد شرب نه علاوه دباقي عقوباتوهم مخاطب دى.هم دغه شان دمعاملا توهم مخاطب دى

**البته دعباداتومخاطب دى كه نه؟** علماء سمرقند وائي چه كفار دعباداتونه اعتقادا مخاطب دى اونه د اداء مخاطب دى

علماء بخارا وائي چه هغوى اعتقاداخومخاطب دى.البته اداء مخاطب نه دى

اوفقهاء عراق وائي چه هغوى دعباداتو اعتقاداهم مخاطب دى او اداء هم.لهذا په آخرت كښي به د دواړو سوال كيږي.دمشائخ بخارا په نزدصرف په ترك ايمان باندې خوبه مواخذه وى.باقي دعباداتو په ترك باندې به څه مواخذه نه وى.نه په ترك اعتقادباندې اونه په ترك اداء باندې.(١)

البته حضرت كشميري رحمه الله فرمائي چه كفارولره چه مونږ په معاملاتو كښي مكلف ګرخودې مطلب كه داوى چه په آخرت كښي به په دې باندې ثواب اوعقاب مرتب كيږي نودې په صحيح والي كښي څه شك نشته.اوكه دامطلب وى چه په دنيوى احكاموكښي به دصحت او فساد حكم لګى، يعني څنګه چه ديومسلمان دمعاملاتوپه باره كښي مونږدصحت وفساد حكم لګوو هم دغه رنګ دكفاروپه معاملاتوباندې به هم په دنيا كښي دصحت وفسادحكم لګى نودې كښي دا عموم صحيح نه دې.ولې چه په هدايه كښي دې چه كه يوكافر بغير دګواهانونه يادبل كافر د معتده سره نكاح اوكړي اوداسې كول دهغوى په مذهب كښي جائز وو، بيادادواړه مسلمانان شى نو دا مام ابو حنيفه رحمه الله په نزدهغوى به هم په دغه نكاح برقرار ساتلې شى.ددې وجه صاحب هدايه دا بيانوى چه دلته بطور شرع حرمت ثابتول ممكن نه دى.ولې چه كفار دحقوق شرع مخاطب نه وى. اونه بطور حق زوج عدت واجب كيدې شى. ولې چه زوج ددې معتقدنه دې.

هم دغه شان ابن الهمام رحمه الله تصريح كړې ده چه كه يومسلمان حربى ته مردار،خنزير يا منګكورې خرڅوى اوددې په مقابله كښي مال ګټى نودا دامام ابوحنيفه اوامام محمد رحمهماالله په نزد حلال دې.كه كفار دمعاملا تودصحت وفسادپه بنيادباندې مكلف وي نواول صورت كښي به نكاح نه صحيح كيدې اوپه دويم صورت كښي به مال نه حلاليدې.ددې نورنظائر هم شته چه په تتبع او تلاش سره ملاويدې شى.لهذاڅنګه چه دعقوباتونه دحدشرب استثناءاوشوه هم دغه شان په معاملا توكښي دې هم داسې قيداولګولې شى.چه دهغې نه په كتب فقه كښي صراحة واردشوې فروعو استثناءكيدې شى (٢) والله اعلم.

**دشوافع په نزد درې اقوال دى:** ديوقول مطابق كفارد منهياتومخاطب دى.دماموراتونه دى.

---

(١) اوګورئ ردالمحتار(ج٣ص ٢٤٤)كتاب الجهاد.مطلب فى ان الكفارمخاطبون. اواوګورئ كشف الاسرار شرح المنار(ج١ص٩٥و٩٦).وكشف الاسرار على اصول البزدوى(ج٤ص٢٤٢و ٢٤٤)بيان مايجب على الكافر و مالم يجب)_

(٢) اوګورئ فتح الملهم(ج١ص ٥٤١ و ٥٤٢)كتاب الايمان.باب الدعاءالى الشهادتين وشرائع الايمان)_

دویم قول دادې چه دیوځیزهم مخاطب نه دی
دریم قول چه د محققینودې اواکثرحضرات هم ددې قائل دی چه د مامورات او د منهیاتو د ټولو مخاطب دی (۱)
امام نووی رحمه الله آخری دواړو اقوالو کښې تطبیق ورکړې دې چه کفارپه دنیاکښې مخاطب نه دی ځکه چه ددوی نه په حالت د کفر کښې د مونځ روژې وغیره مطالبه نشی کیدې اوکه هغوی مسلمانان شي نوپه هغوی باندې قضاواجب نه ده اوپه آخرت کښې مخاطب دی.یعنې په ترک باندې به په آخرت کښې مطالبه کیږي (۲)
دامام احمد رحمه الله نه هم دوه روایتونه منقول دی.یوداچه هغوی مخاطب دی.دویم داچه هغوی مخاطب نه دی (۳)
**ایا حدیث الباب دکفارو په مخاطب بالفروع نه کیدوباندې دلیل کیدې شی؟** لیکن حدیث الباب د کفارو غیرمخاطب کیدوباندې دلیل نه دې.ولې چه دلته دایمان قید ممکن دې ځکه یې لګولې وی چه هم اهل ایمان احکام دشریعت منی.یاداسې دې اووئیلې شی چه داقید د برانګیخته کولودپاره دې اوداښودلودپاره دې چه ایمان ددې خبرې تقاضاکوی چه ددې دحلال کیدو دې اعتقاد د اونکړې شی.
**فائده: یومن بالله والیوم الآخر** کښې صرف دمبدا او دمعاد تذکره اوکړه.دایمان بالله نه یې مبدا طرف ته اشاره اوفرمائیله او دایمان بالیوم الآخر نه یې معادطرف ته.ددې په ضمن کښې باقی ټول ایمانیات پخپله داخل شول
**قوله: ان یسفك بها دما**: چه هلته د وینه اوبهیولې شی.
**یسفك** دباب ضرب نه دې.دا معروف هم وئیلې شوې دې اومجهول هم (۴)
**په حرم مکه کښې دقتال حکم**: مکې مکرمې باندې حمله کول،هلته اوسیدونکوسره جنګ او قتال کول جائزدې او که نه؟
علامه ماوردی شافعی رحمه الله فرمائی چه دمکې مکرمې دخصوصیاتونه داخبره ده چه په اهل مکه باندې دې حمله اونکړې شی.هغوی سره دې قتال اونکړې شی.که اهل مکه بغاوت اوکړی او بغیر دقتال نه هغوی په لاره راوستل ممکن وی نوقتال صحیح نه دې.
اوکه بغیر دقتال نه هغوی دبغاوت نه نه منع کیږي نوجمهورعلماء وائي چه هغوی سره دې قتال اوکړې شی.ولې چه اهل بغی سره قتال دحقوق الله نه دې.چه تلف کول یې صحیح نه دې.
نورعلماء فرمائي چه په دې صورت کښې هم دهغوی سره قتال صحیح نه دې.البته هغوی

---

(۱) اوګورئ شرح النووی علی صحیح المسلم(ج۱ص۳۷)کتاب الایمان،باب الدعاء الی الشهادتین وشرائع الاسلام)
(۲) حواله بالا)_
(۳) واختلف اهل العلم فی خطابه بفروع الاسلام فی حال کفره مع اجماعهم علی انه لا یلزمه قضاءها بعد اسلامه. حکی عن احمد فی هذا روایتان المغنی لابن قدامة(ج۱ص۲۳۹)_
(۴) فتح الباری (ج۱ص۱۹۸)

باندې دې داسې تنګي اوكړې شي چه هغوى اطاعت طرف ته واپس شي اود بغاوت نه منع شي.[۱] امام نووى رحمه الله فرمائي چه دامام شافعي رحمه الله قول دجمهورو مطابق دې[۲]
دامام شافعي رحمه الله يوقول دتحريم القتال في مكة هم دې.چه هغه قفال رحمه الله اختيار كړې دې اوبعض علماء شافعيه اومالكيه هم دغه اختيار كړې دې.پس دابن المنير.ابن دقيق العيد.امام طبري او ابن العربي رحمهم الله هم دغه رائې ده.[۳] په احنافو كښې علامه سندهي رحمه الله هم دغه اختيار كړې دې.[۴] دامام بخاري رحمه الله په نزد هم دغه مختار دې[۵]
جمهورعلما،چه دقتال دجوازقائل دى.هغوى دحضرت ابوشريح رضي الله عنه په دې حديث كښې تاويل كوى او وائي چه هلته دقتال دحراميدونه مراد د قتال مخصوص كيفيت دې.مثلاً منجنيق وغيره نصب كولوسره دې قتال اونكړې شى.چه دهغې نقصان عام وى.اودقتال دحرمت قائلين وائي چه حديث مطلق دې.په دې كښې څه قسم تخصيص نشته.اوبيا چه نبى صلى الله عليه وسلم ته دكوم قتال اجازت ملاو شوې ووهغه دمطلق قتال اجازت وو دمخصوص قتال اجازت نه وو.لهذامذكوره تاويل نشي چليدې.ددې نه علاوه دحديث سياق دلالت كوى چه حرمت دقتال ددغه زمكې دحرمت داظهار د پاره دې چه په هغې كښې مطلقاسفك دماء حرام ده.اوداظاهره ده چه سفك دماء عام ده.دې لره د عمومي ضرر رسونكو والا آلاتوسره مخصوص كول څه معنى نه لري.[۶]

**په حرم مكه كښې دقتل اوقصاص حكم** دلته يو مسئله داده چه كه يوكس جنايت اوكړى نوآيا په حرم كښې د هغې نه قصاص اخستې شى؟
دې سلسله كښې دا تفصيل دې چه كه يو كس څه جنايت اوكړى اوحرم كښې پناه واخلى نوكه ددې جنايت مادون النفس وى نوبالاتفاق ددې قصاص به حرم كښې اخستې شى
اوكه جنايت دقتل وى نو كتلې به شى چه هغه داجنايت په كوم ځائې كښې كړې دې؟
كه جنايت دقتل په حرم كښې كړې وى نوددې په باره كښې هم اتفاق دې چه دهغه نه هم په حرم كښې قصاص اخستې شى
اوكه دقتل دجنايت ارتكاب يې دحرم نه باهر كړې وى اوبيا په حرم كښې يې پناه واخستله نو د هغه په باره كښې اختلاف دې
شوافع اومالكيه دهغه په باره كښې هم داستيفاء قصاص قائل دى

[۱] اوګورئ فتح الباري (ج٤ص٤٨)كتاب جزاء الصيد.باب لايحل القتال بمكة.واعلاء السنن (ج١٢ ص٥٣٢و٥٣٣).كتاب السير.باب لايجوزقتل من لجا الى الحرم مسلما كان اوذميا او حربيا.واحكام القرآن للعلامة ظفر احمد العثماني(ج١ص ٧٠)_
[۲] فتح الباري(ج ٤ ص٤٨)_
[۳] حواله بالا)_
[٤] حاشية السندهي على صحيح البخاري(ج١ص ٣٣٤)كتاب جزاء الصيد.باب لايحل القتال بمكة)_
[۵] حواله بالا)_
[٦] اوګورئ فتح الباري(ج٤ص٤٨). واعلاء السنن(ج١٢ص٥٣٢و٥٣٣).وحاشية السندى على البخاري (ج١ص ٣٣٤)_

او حنفيه اوحنابله وائي چه دهغه نه به په حدود د حرم كښي قصاص نه اخستلې كيږى.بلكه د هغه خوراك څكاك به بند كړې شى.تردې چه هغه د حدود حرم نه پخپله باهر لاړشى،بيابه هغه نه قصاص اخستې شى (١)
شافعيه اومالكيه اولاددې خبرې نه استدلال كوى چه زانى ته كوږې لګول.دغل لاس كټكول.اوهم دغه شان دقاتل نه قصاص اخستو حكم دې.په دې امورو كښې ديو مكان تخصيص نشته هم دغه رنګ دهغوى استدلال د الحرم لايعيذ عاصيا ولا فارا بخربة نه هم دې نبى كريم ﷺ دابن خطل دقتلولو حكم وركړو.په دې حال چه هغه د كعبې غلاف سره لګيدلې وو (٢)
بله دا چه هغوى وائي چه داسې چه جنايت يې اوكړواو حرم ته اوتختيدو.چه دهغه قتلول دمعصيت د وجې نه مباح شوې دې،هغه دكلب عقوربه شان دې.لكه څنګه چه كلب عقور په حرم كښې هم وژلې شى.هم دغه شان دې سړى ته به هم په حرم كښې پناه نه ملاويږى (٣)
دحنفيه او دحنابله استدلال دقرآنى آيت ومن دخله كان امنا (٤)نه دې.دا اګركه خبر دې خو مراد ترې نه امر دې (٥)
هم دغه شان دحديث الباب نه هم استدلال كوى

ان مكة حرمها الله ولم يحرمها الناس،فلايحل لامرئ يومن بالله واليوم الآخر ان يسفك بها دما،ولايعضد بها شجرة،فان احد ترخص لقتال رسول الله ﷺ فيها فقولوا:ان الله قد اذن لرسوله ولم ياذن لكم،وانما اذن لى فيها ساعة من نهار،ثم عادت حرمتها اليوم كحرمتها بالامس،وليبلغ الشاهد الغائب.

دنبي كريم ﷺ ارشاد هذا بلد حرمه الله يوم خلق السموات والارض......(٦) نه هم حنفيه اوحنابله استدلال كوى
ترڅو پورې چه دشوافع ومالكيه داستدلال تعلق دې چه زانى ته كوږې لګول.دغل لاس كټكول او دقاتل نه قصاص اغستو حكم دې اوددوى دپاره دمكان څه تخصيص نشته پس دا خبره خو مسلمه ده چه په دې امورو داجراء دپاره دامكنه وازمنه عموم دې.هريوځائې او هريوزمانه كښې د دوى اجراء كيدې شى.ددې دپاره غير متعين طورباندې هريومكان كافى دې.لهذا ددې اجراء په غير حرم كښې كيدې شى

---

(١) اوګورئ:المغنى لابن قدامة(ج٩ص٩٠...٩٢).واوجز المسالك(ج٨ص١٧۶)كتاب الحج.باب جامع الحج.واحكام القرآن للعلامة ظفر احمد العثمانى(ج١ص۶٩)وبدائع الصنائع(ج٧ص١١٤).واعلاء السنن(ج١٢ص٥٣٢...٥٣٥).كتاب السير.باب لايجوزقتل من لجا الى الحرم......)_
(٢) اوګورئ:موطا امام مالك(مع اوجزالمسالك ج٨ص١٧٢)كتاب الحج.باب جامع الحج)_
(٣) دتفصيل دپاره اوګورئ:المغنى لابن قدامة(ج٩ص٩٠و٩١)_
(٤) آل عمران ٩٧)_
(٥) المغنى(ج٩ص٩١)_
(٦) صحيح البخارى (ج١ص٢٤٧)كتاب الصيد.باب لا يحل القتال بمكة.رقم(١٨٣٤)_

بیا که عموم امکنه اخستوسره په حدودحرم کښې داجراء قصاص جواز ثابت کړي.نوبیاهم زمونږه مذکوره روایاتونه به په دې کښې تخصیص ضروري وي. خاص طور باندې چه پخپله دا حضرات حامله اوهغه مریض چه دچاد صحت امیدوي.دهغوي سزامؤخر کوي.حالانکه دعموم تقاضا خو داده چه بغیر دتاخیر نه سزاجاري کړې شي.چه هغوي ددې تخصیص کولې شي نود دلائلوپه رڼاکښې مونږه دمذکوره صورت تخصیص هم کولې شو

دشافعیه الحرم لایعیذ عاصیا......الخ نه استدلال کول هم صحیح نه دې ولې چه دا حدیث نه دې. بلکه داخو دعمروبن سعید قول دې

اوترڅو پورې چه دابن خطل دقتل تعلق دې.نوهغه په دې رخصت کښې داخل دې چه دکوم ذکرپه حدیث باب کښې راغلې دې.وانما اذن لي فیها ساعة من نهار،ثم عادت حرمتها الیوم کحرمتها امس.

شافعیه په دې باندې وائي چه نبي کریم ﷺ مکې مکرمې ته په داخلیدوسره مکمل قبضه کړې وه اوټول مطیع شوي وو.هغه وخت(یعني یوساعت)دحرمت نه مستثنی وو.دې نه پس بیا حرمت راغلې ووچه وروستو دابن خطل دقتل حکم ورکړې شو.معلومه شوه چه نبي ﷺ په حرم کښې داقامت حد حکم ورکړې وو.([1])

ددې جواب دادې چه نبي کریم ﷺ ته چه دیو(ساعت)پورې دقتال اجازت ملاوشوې وو.دهغې نه مراد اصطلاحي گهنټه نه وه.بلکه دسحرنه واخله ترمازیگرپورې وخت وو.دې وخت کښې دننه دننه ابن خطل قتل کړې شو.د عمروبن شعیب عن ابیه عن جده دطریق نه امام احمد روایت نقل کړې دې چه دا اجازت تر مازیگرپورې وو ([2])

بیاپه کلب عقورباندې قیاس هم صحیح نه دې،ولې چه دکلب عقور په طبیعت کښې ایذا رساني ده. ددې وجې نه حرم دهغه دایذارسانۍ نه بچکیدلودپاره هغه ته پناه نه ده ورکړې. اوپه انسان کښې اصل حرمت دې اودهغه حرمت هم ډیرعظیم دې لهذاداقیاس مع الفارق دې. بیا سړي جنایت باهر کړې دې اوهغه په حرم کښې دننه څه قسم انتهاك نه دې کړې.بلکه دحرم دحرمت لحاظ یې اوساتلواودهغې پناه ئې واخستله ([3])

باقي پاتې شوپه حدودحرم کښې قتل یادموجب حد گناه دارتکاب تعلق،پس مونږه مخکښې بیان کړې دی چه دتمام علماء په نزدبالاتفاق دده نه به هم هغه خائي کښې قصاص اخستې شي اوپه ده باندې به حدجاري کولې شي

وجه داده چه څنگه دحل والوته دجرائم نه ایساروлوضرورت وي،هم دغه شان حرم والوته هم د زاجر ضرورت دې.که دهغوي په حق کښې حدودزنانافذنشي نودالله تعالی حقوق به معطل شي. دې نه علاوه داوجه هم ده چه هغې دجنایت ارتکاب کولوسره دحرم حرمت انتهاك اوکړو، لهذا حرم ددې صیانت ذمه دارنه دې.په خلاف دهغه صورت چه هغې دقتل ارتکاب دحدود

---

[1] اوگورئ شرح النووي على صحيح مسلم(ج۱ص۴۳۹).کتاب الحج،باب جواز دخول مکة بغير احرام)_

[2] اوگورئ مسنداحمد(ج۲ص۱۷۹)،وفتح الباری (ج۱ص۱۹۸). واوجز المسالک (ج۸ ص۱۷۵ و۱۷۶)، کتاب الحج،باب جامع الحج)_

[3] دتفصیل دپاره اوگورئ المغنی لابن قدامة (ج۹ص۹۱). وزاد المعاد(ج۳ص۴۴۲....۴۴۹)_

حرم نه باهر کړي وی او بیا یې په حرم کښې پناه اخستې وی نو چونکه د حرم د حرمت انتهاک نه دې شوې. څکه حرم به دې پخپل پناه کښې واخلی [۱]

او څو مره پورې چه د مادون النفس جنایاتو تعلق دې نو د دې سزا به هلته نافذ یږي. اګر که جنایت په غیر حرم کښې شوې وی. ولې چه د نبي کریم ﷺ نه هلته د قتل نهی خو ثابت ده. فرمائیلی دی فلا یحل لامرئ یومن بالله والیوم الآخران یسفك بها دما سفك دم د قتل نه کنایه دې. ظاهره ده چه د مادون النفس مرتبه د نفس نه بهر حال کمه ده [۲]

بیا مادون النفس او د اطرافو معامله اموالو په شان ده. څنګه د مالی معاملا تو تصفیه هلته کیدې شی د مادون النفس تصفیه هم هلته کیدې شی والله اعلم

**یو اشکال او د هغې جواب** بعضې حضرات د حنفیه دلیل ان یسفك بها دما چه مطلق د خونریزی په حرمت دال دې، د دې د تاویل کوشش کړې دې چه د دې نه ناجائز خونریزی مراد ده. لهذا کوم کس چه د قتل جنایت او کړی او حرم کښې داخل شی د هغه قتلول ناجائز نه دی. لهذا د هغه نه هلته قصاص اخستې شی

لیکن د دې جواب دا دې چه دې کښې د حرم څه تخصیص دې؟ ناجائز خونریزی خو چه چرته هم وی جائز نه ده. نیز نبي کریم ﷺ مخکښې فرمائي فان احد ترخص لقتال رسول الله ﷺ فيها...... دې نه معلومه شوه چه نبي کریم ﷺ هلته قتال او سفك دم کړې دې. ظاهره ده چه هغوی ﷺ ناجائز خونریزی نه ده کړې، مخکښې هم د دې جائز قتال تخصیص بیان کړې شوې دې فقولوا: ان الله قد اذن لرسوله ولم یاذن لکم نو چه جائز قتال او جائز سفك دم د هغوی ﷺ سره خاص شو نو مخکښې د بل د پاره د جواز څه صورت پاتې کیږی [۳] والله سبحانه وتعالی اعلم

**قوله**: ولا یعضد بها شجرة: او هلته به ونې نه کټکولې کیږی

عضد یعضد باب ضرب نه دې. د دې معنی ده کټکول معضد د کټکولو آله [۴]

**د حرم مکه د ونو بوټو کټ کولو حکم**: د حرم مکه اشجار و نباتات په درې قسمونه دی

د ونو بوټو یو هغه قسم چه یو کس په خپل محنت سره کرلې وی. د هغوی کټکول یا د ویخ نه راویستل بالاتفاق جائز دې

دویم هغه چه چا کرلې خو نه وی لیکن هغه هم د هغې نباتاتو د جنس نه وی. کوم چه خلق عام طور سره کری.

د دې دویم قسم نباتاتو کټکول او د ویخ نه راویستل هم جائز دی

دریم قسم د خودرو ونې اود ګیاوغیره دې. په دې قسم کښې صرف د اذخر ګیا کټکول او د

---

[۱] حواله جات بالا_

[۲] حواله جات بالا)_

[۳] اوګورئ المغنی (ج۹ ص۹۱)_

[۴] فتح الباری (ج۱ ص۱۹۸)_

ويخ نه راويستل جائزدي، باقي ديوخيزهم كټكول او دويخ نه راويستل جائزنه دي. البته دخودرو ګيا يا د ونو نه كه كومه ونه وغيره مړاوې شوې وي، يا سوزيدلې وي، ياماتې شوې وي نودهغې كټكول هم جائزدى

حاصل داچه ولايعضدبها شجرة كښې دشجره نه مرادهغه ګيا او ونې وغيره دى چه پخپله راختلې وي. هغه نه خو د ماانبته الناس دجنس نه وي. نه ماتې شوې وي. نه سوزيدلې وي اونه دمړاوې شوې وي. نيزاذخر هم نه وي. دداسې ونو او ګياګانو وغيره كټكول جائز نه دى اودكټكولوپه صورت كښې به جزاء واجبيږي (۱) والله اعلم.

**قوله: فان احدترخص لقتال رسول الله ﷺ فيها فقولوا: ان الله قداذن لرسوله، ولم يأذن لكم:** كه يوكس د رسول الله ﷺ په مكه مكرمه كښې دقتال دوجې نه د رخصت حاصلولو كوشش كوى نو تاسو اووائې چه الله تعالى خپل رسول لره اجازت وركړې دې، تاسوته ئې اجازت نه دې دركړې

يعنى كه څوك د رسول الله ﷺ په مكه مكرمه باندې دحملې كولو نه استدلال اوكړى او دا اووائى چه نبى ﷺ حمله كړې ده لهذا مونږه هم حمله كوو. مونږ دپاره هم جائز دې نو تاسودا اووائې چه الله تعالى نبى كريم ﷺ ته اجازت وركړې وو. تاته ئې اجازت نه دې دركړې. لهذا ته حمله نشې كولې

ددې نه معلوم شوه چه په مكه باندې حمله كول اوهلته قتال كول په يوحال كښې هم جائزنه دى، هم دغه دامام بخارى رحمه الله مسلك دې. كماسبق تفصيله.

**مكه مكرمه عنوةً فتح شوې ده يا صلحاً؟** بيا دا روايت په دې خبره صراحة دلالت كوى چه مكه مكرمه عنوة فتح شوې وه. هم دغه دجمهور علماو رائې ده. ددې په مقابله كښې امام شافعى رحمه الله فرمائى چه مكه مكرمه صلحا فتح شوې وه. د امام احمد رحمه الله په دې سلسله كښې دوه قوله دى. يوقول د امام شافعى مطابق دې اويوقول دجمهورو موافق

امام غزالى رحمه الله دمكې صلحاً فتح كيدو قول مدلل ګڼړلوسره خپل كتاب وسيط كښې د امام شافعى داقول نقل كړې دې چه مكه مكرمه عنوة فتح شوې ده او وې فرمائيل چه هم دا دهغوى مذهب دې (۲)

---

(۱) تفصيل دپاره اوګورئ فتح القدير (ج۳ ص۳۳)، كتاب الحج، فصل فى جزاء الصيد...... وبدائع الصنائع (ج۲ ص۲۱۰)، كتاب الحج، فصل: واما الذى يرجع الى النبات..... دنورو مذاهبوتفصيل دپاره اوګورئ المغنى لابن قدامة (ج۳ ص۱۶۸_۱۷۱)، كتاب الحج، تحريم قطع شجرالحرم ونباته الا الاذخر، والمجموع شرح المهذب (ج۷ ص ۴۴۷_۴۵۳)، وزادالمعاد فى هدى خيرالعباد (ج۳ ص۴۴۹_۴۵۵۲)، والحاوى الكبير للماوردى (ج۵ ص۴۱۲_۴۱۷)، كتاب الحج، باب جزاء الصيد)_

(۲) دبحث تفصيل دپاره اوګورئ زادالمعاد فى هدى خيرالعباد (ج۳ ص۴۲۹_۴۳۴) فصل فى الاشارة الى ما فى الغزوة من الفقه واللطائف)_

**قوله**: وانما اذن لي فيها ساعة من نهار: مادپاره خوهلته صرف د ورځې يوساعت پورې دقتال اجازت وو

اذن معروف هم اووئيلې شو اى اذن الله لى او مجهول هم مروى دې [۱]

ساعت دوخت يو مقدار ته وئيلې شي.دې نه مراديوم الفتح ده [۲]

په يوم الفتح کښې دسحر طلوع شمس نه واخله تر مازيګرپورې وخت مستثنى وو.چه پکښې نبى کريم ﷺ ته دقتال اجازت ورکړې شوې وو [۳]

**قوله**: ثم عادت حرمتها اليوم كحرمتها بالامس: بيا نن ددې حرمت هم هغه شان واپس راغلو څنګه حرمت چه پرون وو

يعنى څنګه حرمت چه دنن نه مخکښې ووهم هغه شان ددې حرمت بيا راغلو

**قوله**: وليبلغ الشاهد الغائب: او پکار دي چه حاضر غائب ته اورسوى هم دغه مقصود بالترجمه دې

**قوله**: فقيل لابي شريح: ما قال عمرو؟: دابوشريح ﷛ نه پوښتنه اوکړې شوه چه عمرو څه اووئيل؟

مطلب دا دې چه چا دحضرت ابوشريح ﷛ نه پوښتنه اوکړه چه دا حديث اورولونه پس عمروبن سعيد څه جواب ورکړلو؟

**قوله**: قال: انا اعلم منك يا اباشريح: هغه اووئيل چه اې ابوشريح څه ستانه زيات پوهيږم

**قوله**: لا يعيذ عاصيًا ولا فارًا بدم، ولا فارًا بخربة: حرم يوعاصى ته پناه نه ورکوى،اونه هغه کس له چه قتل اوکړى او اوتښتى او نه هغه کس له چه غلااوکړى او اوتښتى

عاصى: دعصيان نه دې.خروج عن الطاعة ته عصيان وائى، ګويا چه دعاصى نه مراد باغى دې.

د فاربالدم نه مراد دقتل کولو نه پس تښتيدو والا [۴]

خربة خاء معجمه او د را مهمله په فتحې سره دې،دې نه پس باء موحده ده [۵]

ابن الاثير ﷬ فرمائى خربة اصل کښې عيب ته وائى،دلته د خربة مفهوم دادې چه يوسړې يو څيز داسې څان دپاره مختص کول او په هغې باندې غالب کيدل غواړى چه شريعت دهغې

---

[۱] فتح البارى (ج۱ ص۱۹۸)_

[۲] حواله بالا)_

[۳] حواله بالا. مسنداحمد(ج۲ ص۱۷۹) کښې دې عن عمروبن شعيب عن ابيه عن جده قال:لما فتحت مكة على رسول الله ﷺ قال:كفواالسلاح الاخزاعة عن بنى بكر.فاذن لهم حتى صلى العصر.ثم قال: كفوا السلاح)

[۴] فتح البارى (ج٤ ص٤٤و٤٥) كتاب جزاءالصيد. باب: لايعضد شجرالحرم)_

[۵] عمدة القارى(ج۲ ص۱٤٠)،وفتح البارى (ج۱ ص۱۹۸)

اجازت نه ورکوی (۱)

هم دغه شان د خربه معنی سرقه هم ده.په خاص طور د اوښانو په غلا به د خربه اطلاق کیدلو. بیا توسعا په عام غلا باندې هم ددې اطلاق اوکړې شو (۲)، امام ترمذی رحمه الله ددې تفسیر په جنایت سره کړې دې (۳)

بعض حضرات دې نه خربة (بفتح الخاء المعجمة وسكون الراء المهملة وبعدها باء موحدة) بسودلې دې (۴)، ابن بطال رحمه الله فرمائي چه ددې معنی د فساد ده (۵). په صحيح بخاری کښې يو ځائې کښې ددې معنی بلية مذکور ده (۶)

امام ترمذی رحمه الله فرمائی ویروی: ولافار بخزية. (۷) یعنی دا لفظ په خاء معجمه مکسوره او زاي معجمه ساکنه او ددې نه پس یاء مثناة سره هم روایت کړې شوې دې.چه معنی بې رسوا کیدل او دباعث عار امر دې (۸)

علامه کرمانی رحمه الله دالفظ په جیم او (زای) سره جزیه هم نقل کړې دې (۹)، لیکن دا روایة ثابت نه دې (۱۰) والله اعلم

ابن بطال رحمه الله فرمائي چه حضرت ابوشریح رضي الله عنه دحدیث دعموم نه استدلال کړې دې.لیکن عمرو بن سعیدانکار اوکړو او دا يې اوونیل چه ته دا حدیث عام ګنړې.حالانکه دا حدیث خاص دې، مجرم او عاصی چه جرم اوکړی اوبیا په حرم کښې پناه واخلی نوهغه ته به پناه نه ملاویږی.(۱۱)

علامه طیبی رحمه الله فرمائي چه دعمرو بن سعید کلام دقول بالموجب دقبیل نه دې.ګویاچه هغه دا وائي چه څه دا تسلیموم چه تاسو دا حدیث اوریدلې دې اوتاسو ته یاد دې.لیکن څه چه څه وایم هغه ددې خلاف نه دې،دحدیث تعلق په مکه باندې عنوة د فتح په نیت حمله کولو سره دې.او دا ځما مقصودنه دې،بلکه ځما مقصود دهغه سړی خلاف جنګ کول دی چه باغی او

---

(۱) جامع الاصول(ج ۹ ص۲۸۷)_
(۲) جامع الاصول(ج ۹ ص۲۸۸)_
(۳) جامع الترمذی، فاتحة ابواب الحج، باب ما جاء فی حرمة مكة)_
(۴) فتح الباری (ج۱ ص۱۹۸)_
(۵) شرح صحيح البخاری لابن بطال (ج ۱ ص ۱۸۲)_
(۶) صحيح البخاری (ج ۱ ص۲٤۷)، كتاب جزاء الصيد، باب:لا يعضد شجرالحرم، رقم(۱۸۳۲)_
(۷) جامع الترمذی،فاتحة ابواب الحج،باب ماجاء فی حرمة مكة، رقم (۸۰۹)_
(۸) جامع الاصول (ج۹ ص۲۸۸)_
(۹) شرح الكرمانی(ج ۲ ص۱۰۵)_
(۱۰) فتح الباری (ج ٤ ص ٤۵)_
(۱۱) اوګورئ شرح صحيح البخاری لابن بطال(ج ۱ ص ۱۸۰)_

خطاكار دي او حرم عصي اوخطاكار ته پناه نه ورکوي[1]
ليکن دعمرو بن سعيد دا جواب غلط دي.ولې چه حضرت عبدالله بن الزبير نه خو باغي وو.نه عاصي وو اونه هغوی دچا قتل کړې وو
ابن بطال رحمه الله فرمائي وابن الزبير عند علماء اهل السنة اولى بالخلافة من يزيد وعبد الملك، لانه بويع لابن الزبير قبل هولاء، وهو من اصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم.[2] والله سبحانه اعلم
يعنې دعلماء اهل سنت په نزد عبدالله بن زبير د يزيد او دعبدالملك په مقابله کښې دخلافت زيات حقدار وو.ولې چه ددې خلقونه مخکښې دهغوی په لاس بيعت شوې وو. او بيا هغوی دنبي کريم صلى الله عليه وسلم دصحابه نه هم وو

[۱۰۵] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنِ ابْنِ أَبِي بَكْرَةَ عَنْ أَبِي بَكْرَةَ ذُكِرَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم - قَالَ « فَإِنَّ دِمَاءَكُمْ وَأَمْوَالَكُمْ - قَالَ مُحَمَّدٌ وَأَحْسِبُهُ قَالَ وَأَعْرَاضَكُمْ - عَلَيْكُمْ حَرَامٌ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هَذَا فِي شَهْرِكُمْ هَذَا، أَلاَ لِيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ مِنْكُمُ الْغَائِبَ ». وَكَانَ مُحَمَّدٌ يَقُولُ صَدَقَ رَسُولُ اللهِ - صلى الله عليه وسلم - كَانَ ذَلِكَ « أَلاَ هَلْ بَلَّغْتُ » مَرَّتَيْنِ [ر ٦٧]

## رجال الحديث

① **عبدالله بن عبدالوهاب** دا ابومحمد عبدالله بن عبدالوهاب حجبي بصري رحمه الله دي[3]
دوی د بشربن المفضل.حمادبن زيد.حاتم بن اسماعيل.عبدالعزيزبن ابی حازم. عبدالعزيز بن محمددراوردي.امام مالك اوابوعوانه رحمهم الله نه روايت کوي
ددوی نه روايت کونکو کښې امام بخاري.يعقوب بن شيبه.امام محمدبن يحي ذهلي.علي بن عبدالعزيزبغوی اوعمروبن منصورنسائي رحمهم الله وغيره حضرات دي[4]
امام يحي بن معين رحمه الله فرمائي ثقة.[5]
امام ابوحاتم رحمه الله فرمائي ثقة صدوق.[6]
ابن حبان رحمه الله دهغوی ذکر په کتاب الثقات کښې کړې دي[7]

---

[1]) الکاشف عن حقائق السنن (ج ۵ ص ۳۶۲). کتاب المناسک. باب حرم مکة حرسهاالله تعالى)_
[2]) شرح صحيح البخاری لابن بطال(ج ۱ ص ۱۸۰)_
[3]) تهذيب الکمال (ج ۱۵ ص ۲۴۶)_
[4]) دشيوخو اوتلامذود تفصيل دپاره اوګورئ تهذيب الکمال(ج۱۵ ص۲۴۸،۲۴۶)، وتهذيب التهذيب(ج ۵ ص ۳۰۴و۳۰۵)_
[5]) تهذيب الکمال(ج ۱۵ ص۲۴۷و۲۴۸)_
[6]) حواله بالا.وتهذيب التهذيب (ج ۵ ص۳۰۵)_
[7]) الثقات لابن حبان (ج۵ ص۳۵۳)_

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي ثقة.[1]
حافظ ذهبی رحمه الله فرمائي ثبت.[2]
په ۲۲۸هجری کښې دهغوی وفات اوشو [3] رحمه الله تعالی رحمة واسعة

④ **حماد** دوی حماد بن زید بن درهم بصری رحمه الله دی. ددوی حالات کتاب الایمان، باب: وان طائفتان من المؤمنین اقتتلوا فاصلحوا بینهما دلاندې تیرشوی دی [4]

⑤ **ایوب** دوی ایوب بن ابی تمیمه کیسان سختیانی بصری رحمه الله دی. ددوی حالات هم د کتاب الایمان، باب حلاوة الایمان، د لاندې تیر شوی دی [5]

⑥ **محمد** دوی امام محمد بن سیرین بصری رحمه الله دی. ددوی حالات هم د کتاب الایمان، باب اتباع الجنائز من الایمان، دلاندې تیر شوی دی [6]

⑦ **ابن ابی بکرة** : دوی عبدالرحمن بن ابی بکره رحمه الله دی. ددوی حالات په کتاب العلم کښې باب قول النبی ﷺ: رب مبلغ اوعی من سامع، دلاندې تیر شوی دی.[7]

⑧ **حضرت ابو بکره** رضي الله عنه: دحضرت ابوبکره رضي الله عنه حالات په کتاب الایمان، باب: (وان طائفتان من المؤمنین اقتتلوا فاصلحوا بینهما) دلاندې تیرشوی دی.[8]

**دحدیث دسندمتعلق یو تنبیه**: دلته د دې حدیث په سند کښې دمستملی او کشمهینی په نسخو کښې دمحمد نه پس د ابن ابی بکرة واسطه ده. بعینه هم دغه سند په کتاب التفسیر. سورة براءة کښې هم وارد شوې دې [9] او په کتاب العلم کښې د عبدالرحمن بن ابی بکرة تصریح موجود ده [10] په باقی نسخو کښې ابن ابی بکرة ساقط دی. په دې صورت کښې به دا سند منقطع شی. ولې چه محمد بن سیرین ته د حضرت ابوبکره رضي الله عنه نه سماع حاصل نه ده

---

[1] ) تقریب التهذیب (ص۳۱۲)، رقم(۳٤٤۹)_
[2] ) الکاشف (ج ۱ ص۵۷۰)، رقم (۲۸۳٤)_
[3] ) حواله بالا)_
[4] ) کشف الباری (ج ۲ ص۲۱۹)_
[5] ) کشف الباری (ج ۲ ص ۲۶)_
[6] ) کشف الباری (ج ۲ ص ۵۲٤)_
[7] ) کشف الباری (ج ۳ ص ۱۹٤)_
[8] ) کشف الباری (ج ۲ ص ۲۲۵)_
[9] ) صحیح البخاری (ج ۲ ص ۷۶۲)، کتاب التفسیر، سورة براءة، باب(ان عدة الشهور عندالله اثنا عشر شهرا.....). رقم (٤۶۶۲)_
[10] ) صحیح البخاری (ج ۱ ص۱۶)، کتاب العلم، باب قول النبی ﷺ رب مبلغ اوعی من سامع، رقم(۶۷)_

په بعضې نسخو کښې عن محمدبن ابی بکرة عن ابی بکرة لفظ راغلې دې.چه غلط دې. په دې نسخه کښې د محمد نه پس د عن لفظ ساقط شوې دې [1]

حاصل دا چه محمدبن ابی بکرة غلط دې. عن محمدعن ابن ابی بکرة عن ابی بکرة صحیح دې.او د کتاب العلم په طریق کښې د دې (ابن ابی بکرة ؓ) تعیین هم کړې شوې دې چه هغه عبدالرحمن بن ابی بکره دې والله اعلم.

**قوله: ذکرالنبی ﷺ قال:** دنبی کریم ﷺ ذکراوکړې شو. نبی ﷺ اوفرمائیل یعنې حضرت ابوبکره ؓ دنبی کریم ﷺ تذکره اوکړه چه نبی ﷺ خپل اوښ باندې کیناستو اویوکس رسې اونیوله او نبی ﷺ خطبه ورکړله. په هغې کښې اوفرمائیل

**فان دماءکم واموالکم _ قال محمد: واحسبه قال: واعراضکم _ علیکم حرام کحرمة یومکم هذا فی شهرکم هذا.....** بیشکه ستاسو خانونه اوستاسو اموال ـ محمد بن سیرین وائی چه خماگمان دا دې چه هغوی د آبرو لفظ هم فرمائیلې وو ـ په تاسو باندې حرام دې.ستاسو ددې ورځې او ددې میاشتې دحرمت پشان

مطلب دا دې چه محمد بن سیرین ته شک دې چه ابن ابی بکره خپل روایت کښې **فان دماءکم واموالکم** نه پس **واعراضکم** هم فرمائیلې وو او که نه [2]

لیکن وړاندې **باب قول النبی ﷺ: رب مبلغ اوعی من سامع** په ذیل کښې حدیث تیر شو.په هغه کښې جزم سره بغیر دشک نه **واعراضکم** هم مذکور دې [3]

**قوله: الا لیبلغ الشاهدمنکم الغائب:** واورئ په تاسو کښې چه څوک حاضر دی هغوی دې غائب ته اورسوی.

ابن جریر طبری رحمه الله فرمائی چه ددې نه معلومه شوه چه دخبرواحد قبلول جائز دې ولې چه نبی کریم ﷺ هر کس ته دتبلیغ کولو حکم ورکړې وو. که دهریو کس خبره بیله بیله معتبرنه وې نو د نبی ﷺ هر سړی لره دتبلیغ مکلف ګرځولوبه څه فائده وه؟ [4]

**قوله: وکان محمدیقول: صدق رسول الله ﷺ، کان ذلک:** محمد بن سیرین رحمه الله به فرمائیل. رسول الله ﷺ رښتیا اوفرمائیل او دا واقع شوې دې

**دمحمد بن سیرین رحمه الله دقول مختلف توجیهات** محمدبن سیرین رحمه الله دڅه څیز تصدیق کوی؟ په خاص طور دا سوال ځکه هم پیداکیږی چه دلته **لیبلغ** دامر صیغه ده اوتصدیق یا تکذیب

---

[1] فتح الباری (ج ۱ ص۱۹۹).وعمدة القاری (ج۲ ص ۱٤٥)_

[2] فتح الباری (ج ۱ ص۱۹۹)_

[3] صحیح البخاری (ج ۱ ص ۱۶). کتاب العلم. باب قول النبی ﷺ: رب مبلغ اوعی من سامع. رقم (۶۷)

[4] فتح الباری (ج ٤ ص ٤٤) کتاب جزاء الصید. باب : لا یعضد شجرالحرم)_

د خبر كولو شی، امر، نهی، وغيره چه د انشاء دقبيل نه دی دهغې تصديق يا تكذيب نه كيږی. بله دا چه په كان ذلك كښې ذلك اشاره كوم څيز طرف ته ده؟
علامه كرمانى رحمه الله په دې سلسله كښې مختلف احتمالات ذكر كړی دی، هر احتمال ګويا چه مستقل يو قول دې
(۱) يو احتمال دا دې چه دلته ممكن ده چه روايت دامر دصيغې سره نه وی. بلكه ليبلغ په شروع كښې لام مفتوح وی. ګويا نبی كريم ﷺ خبر وركوی ليبلغ الشاهد منكم الغائب په تاسو كښې چه څوك حاضر دې هغه به غائب ته رسوی
محمد بن سيرين رحمه الله ددې خبرې تصديق كوی او وائی نبی كريم ﷺ چه دا خبر وركړې دې صحيح خبرئې وركړې دې كان ذلك واقعی تبليغ شوې دې
(۲) ...... دويم احتمال دا دې چه دلته ليبلغ د امر صيغه ده، ليكن دا بمعنى الخبر دې. ګويا نبی ﷺ فرمائی (سيقع التبليغ بعد) امام ابن سيرين رحمه الله هم ددې خبرې تصديق او ددې د وقوع خبر وركوی.
(۳) ...... دريم احتمال دا دې چه ددې نه پس چه كوم (الا هل بلغت) راغلې دې. دهغې په ضمن كښې چه كوم دتبليغ مفهوم دې دهغې طرف ته اشاره مقصود ده. اوس به د ابن سيرين رحمه الله د قول مطلب داشی چه دنبی كريم ﷺ د طرف نه امت ته تبليغ شوې دې
(۴) ...... څلورم احتمال دا دې چه د ذلك اشاره تتمه حديث طرف ته وی. ولې چه ددې حديث په آخر كښې دا جمله هم شته فان الشاهد عسى ان يبلغ من هو اوعى له منه.[1] ګويا ابن سيرين رحمه الله دا فرمائي چه نبی كريم ﷺ دا اوفرمائيل چه شاهد ته مخكښې نورو ته دعلم خبره رسول پكار دې، ولې چه عين ممكن ده چه چا ته اورسولې شی هغه ددې دعلم خبرې د رسونكې په نسبت زيات حفاظت اوكړی، دا خبره نبی ﷺ بالكل صحيح فرمائيلې ده. بيا چه دشاهدينو د طرف نه راتلونكې خلقو ته تبليغ اوشو نو په هغوی كښې ډير حضرات اوعى او احفظ اوختل.([2])
علامه عينى رحمه الله فرمائي چه اول احتمال وجيه دې، ليكن دا په هغه صورت كښې معتبر دې چه كله د محمد بن سيرين نه د لام دفتحه روايت ثابت شی
اوترڅو پورې چه دبل احتمال تعلق دې، نو د امر په معنى دالخبر كيدو كښې څه قرينه پكار دې. اوهغه دلته نشته ([3])
بله دا چه هغوی فرمائی چه دا عين ممكن ده چه د ذلك اشاره هغه تبليغ طرف ته وی چه د

---

[1]) صحيح البخارى (ج ۱ ص ۱۶) كتاب العلم، باب قول النبى ﷺ: رب مبلغ اوعى من سامع، رقم (۶۷)
[2]) اوګورئ شرح الكرمانى (ج ۲ ص ۱۰۸)_
[3]) عمدة القارى (ج ۲ ص ۱۴۶)_

لیبلغ په ضمن کښې مفهومیږی.اوس د کان ذلك مطلب به داشی وقع ذلك التبلیغ المامور به من الشاهد الی الغائب.(۱)

حضرت شاه ولی الله رحمه الله فرمائی چه د صدق مطلب دې وقع ما امر به یعنی نبی ﷺ چه کوم حکم ورکړې وو دهغې تعمیل اوشو او اهل عرب په داسې موقعو باندې صدق استعمالوی.
خو په نزد ظاهر داده چه دا د تتمه حدیث رب مبلغ اوعی من سامع طرف ته اشاره ده (۲)
شیخ الاسلام رحمه الله فرمائی چه دا د نبی کریم ﷺ د ارشاد مطلقا تصدیق دې. نورو شارحینو چه کومه خبره کړې ده چه دا د جزء اخیر (الاهل بلغت)سره متعلق دې. یا دتتمۀ محذوف (فان الشاهد عسیٰ ان یبلغ من هو اوعیٰ له منه) سره متعلق دې.ددې په مقابله کښې دا توجیه زیاته بهتره ده (۳)

حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائی. صدق رسول الله ﷺ ای فیما کان یخاف علیٰ قومه وامته من وقعة سیوفهم فیهم ویوکد حرمات دمائهم واعراضهم فکان کما اخبر.(۴)

گویا ابن سیرین رحمه الله د صدق ونیلو سره چه کوم تصدیق کړې دې.دهغې تعلق دهغه قتل و نهب او دسفک دماء سره دې چه دهغې ویره نبی کریم ﷺ ته وه او چه دهغې دحرمت تاکید نبی ﷺ کړې وو. (کان ذلك نبی) نبی ﷺ چه څنگه تاکید کړې وو.او نبی ﷺ ته چه دڅه ویره لګیدلې وو آخر هغه اوشو.
نبی کریم ﷺ اګرچه په حدیث باب کښې د سفک دماء صراحة خبرنه دې ورکړې لیکن د (قتل وسفك) په باب کښې د نبی ﷺ دتاکیداتو نه معلومیږی چه دهغه څیز د وقوع ویره ده.ولې چه په یود معامله کښې تاکید هغه وخت کولې شی کله چه دهغې دعدم تعمیل ویره وی.هم دغه شان دیو څیزنه په تاکیدسره هغه وخت منع کولې شی چه دهغې دارتکاب کولو ویره وی (۵)والله اعلم.

**قوله: الاهل بلغت؟مرتین:** واورئ آیا ما اورسولو؟نبی ﷺ دوه خله اوفرمائیل دا هم دحدیث جزء دې او دنبی کریم ﷺ فرمان دې او د (وکان محمد یقول) نه واخله تر د (کان ذلك) پورې دحدیث په مینځ کښې دابن سیرین قول جمله معترضه ده (۶)والله اعلم بالصواب

---

(۱) حواله بالا)_
(۲) شرح تراجم ابواب البخاری (مطبوعه مع صحیح بخاری ج ۱ ص ۱۵)_
(۳) شرح شیخ الاسلام فارسی (مطبوعه بر حاشیه تیسیر القاری ج ۱ ص ۱۶۷)_
(۴) لامع الدراری مع الکنزالمتواری (ج ۲ ص ۳۴۱ و ۳۴۲)_
(۵) اوګورئ لامع الدراری (ج ۱ ص ۱۹۹)_
(۶) فتح الباری (ج ۱ ص ۱۹۹)_

**نوټ** دا حدیث په **باب قول النبی ﷺ : (رب مبلغ اوعی من سامع)** دلاندې تیر شوې دې، دتفصیلي تشریح دپاره دمذکوره باب ته مراجعت اوکړئ.

## ۳۸_ باب: إِثْمِ مَنْ كَذَبَ عَلَى النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم

**د باب سابق سره مناسبت** تیر شوي باب کښې دا ذکر شوی ووچه څوک نه پوهیږي هغه پوهول او هغه ته علم رسول پکار دی او دې باب کښې د کذب فی التبلیغ نه تحذیر دې چه په هغه علم رسولو کښې د دروغو نه مکمل احتراز اوکړې شی. دې سره دواړو ابوابو کښې مناسبت ظاهر شو [۱]

**مقصد د ترجمة الباب** حضرت شیخ الهند رحمه الله فرمائی چه دابواب سابقه متعدده نه تبلیغ اوتعلیم وتعمیم وتکثیر معلوم شواو په دې کښې د کذب خطره ضرور شته. بالاراده وی یا بلا اراده. خکه دا ترجمة الباب بیانولو سره ئې تنبیه اوکړه چه په تعلیم اوتبلیغ کښې نهایت احتیاط و اهتمام لازم دې دتخمین اومجازفت نه دې کار وانخستلې شی [۲]، والله تعالی اعلم

حاصل دا دې چه دنبی کریم ﷺ طرف ته څه غلطه خبره منسوبول بالاتفاق حرام او گناه کبیره ده. امام بخاری رحمه الله دتعلیم وتبلیغ دترغیب دپاره متعدد ابواب منعقد کړي وې. اوس امام بخاری رحمه الله دا ښائی چه دتعلیم و تبلیغ اګرچه اهتمام پکار دې. لیکن احتیاط هم ضروری دې، خکه چه که نبی کریم ﷺ طرف ته چا څه غلطه خبره منسوب کړه او داسې بې احتیاطی یې اوکړه نوهغه به د (من کذب) وعید دلاندې داخل شی. خکه د دروغونه بچ کیدل ډیر ضروری دې.

[۱۰۶] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْجَعْدِ قَالَ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي مَنْصُورٌ قَالَ سَمِعْتُ رِبْعِيَّ بْنَ حِرَاشٍ يَقُولُ سَمِعْتُ عَلِيًّا يَقُولُ قَالَ النَّبِيُّ صلی الله علیه وسلم - «لَا تَكْذِبُوا عَلَيَّ، فَإِنَّهُ مَنْ كَذَبَ عَلَيَّ فَلْيَلِجِ النَّارَ»

## رجال الحدیث

① **علی بن الجعد** دوی ابوالحسن علی بن الجعد بن عبید جوهری بغدادی رحمه الله دی. د دوی حالات په کتاب الایمان، باب اداء الخمس من الایمان د لاندې تیر شوي دې [۳]

② **شعبه** دوی امیرالمومنین شعبة بن الحجاج عتکی بصری رحمه الله دی. د دوی حالات په کتاب الایمان، باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده دلاندې تیرشوي دې [۴]

③ **منصور** دوی مشهور محدث منصوربن المعتمر السلمی الکوفی رحمه الله دی. د دوی حالات

---

[۱] عمدة القاری (ج ۲ ص ۱٤۷)_
[۲] الابواب والتراجم (ص ۵۵)_
[۳] اوګورئ: کشف الباری (ج ۲ ص ٦۹۷)_
[۴] کشف الباری (ج ۱ ص ٦۷۸)_

په هم كتاب العلم كښې باب من جعل لاهل العلم اياما معلومة دلاندې تير شوي دي
⊙ ربعي بن حراش راء مهمله مكسوره، باء ساكن، عين مهمله مكسوره، دې نه پس ياء مشدده ده[1]
هم دغه شان حراش حاء مهمله مكسوره او راء مهمله سره دې[2]
دوی مشهور تابعي بزرګ ربعي بن حراش بن جحش بن عمرو غطفاني عبسي كوفي رحمه الله دی[3]
ابوالربيع ددوی كنيت دې، ربيع بن حراش او مسعود بن حراش ددوی ورونړه دی.[4]
دوی دحضرت حذيفه، حضرت ابوموسى اشعری، حضرت عبدالله بن مسعود، حضرت ابو مسعود بدری، حضرت علی، حضرت عمربن الخطاب، حضرت عمران بن حصين او د حضرت ابوبكره رضي الله عنهم وغيره نه روايت كوی.
د دوی نه ابراهيم بن مهاجر، سعدبن طارق اشجعی، عامر شعبی، ابوالنضر كثيربن ابی كثير، منصوربن المعتمر او نعيم بن ابی هند رحمهم الله وغيره روايت كوی.[5]
امام عجلی رحمه الله فرمائی تابعي ثقة من خيار الناس، لم يكذب كذبة قط.[6]
امام ابن سعد رحمه الله فرمائی وكان ثقة له احاديث صالحة.[7]
لالكائی رحمه الله فرمائی مجمع على ثقته.[8]
حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی: حجة قانت لله لم يكذب قط.[9]
حافظ ذهبی يو خائي كښې ليكی .......... الامام القدوة الولي الحافظ الحجة........[10]
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی ثقة عابد مخضرم.[11]
ابن حبان رحمه الله دهغوی ذكر په كتاب الثقات كښې كړې دې.[12]

---

[1]) المغنی (ص ٣٢)_
[2]) المغنی (ص ٢٠)_
[3]) تهذيب الكمال (ج ٩ ص ٥٤و٥٥)_
[4]) حواله بالا)_
[5]) دشيوخو او تلامذو تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال (ج ٩ ص ٥٥.٥٦)_
[6]) تهذيب الكمال (ج ٩ ص ٥٦)_
[7]) الطبقات الكبرى لابن سعد (ج ٦ ص ١٢٧)_
[8]) تهذيب التهذيب (ج ٣ ص ٢٣٧)_
[9]) الكاشف (ج ١ ص ٣٩٠)، رقم (١٥٢١)_
[10]) سير اعلام النبلاء (ج ٤ ص ٣٥٩)_
[11]) تقريب التهذيب (ص ٢٠٥)، رقم (١٨٧٩)_
[12]) الثقات لابن حبان (ج ٤ ص ٢٤٠و٢٤١)_

دربعي بن حراش په باره کښې دهغوی سوانح ليکونکو دا ليکلي دی چه هغوی کله هم دروغ نه دي وئيلي. هغوی باندې ډير آزمائشونه راغلل. ليکن د رشتيا په وجه الله تعالى هغوی کامياب کړل

دهغوی يو واقعه ليکلې ده چه دهغوی دوه خامن دحجاج بن يوسف معتوب وو او حجاج دهغوی سزا پسې ډير بې چين وو او هغوی په لاس نه راتلل. حجاج چا پوهه کړو چه دهغوی والد کله هم دروغ نه وائی، دهغوی نه تپوس اوکړه چه دهغوی خامن چرته دی؟ حجاج دهغوی

نه پوښتنه اوکړه نو هغوی بلا تامل اووئيل هما فى البيت، والله المستعان حجاج بن يوسف حيران پاتې شو او دېلار دعظيم صداقت دوجې نه خامن يې معاف کړل (١)

الله تعالى هغوی ته د آخرت دفکر عظيم دولت ورکړې وو. کله يې نه وو خاندلي. حتى چه هغوی قسم اوخوړو چه کله پورې زه دا معلومه نه کړم چه زما انجام به څه وی ترهغه وخت پورې به نه خاندم، بيا په پوره ژوند کښې ئې اونه خندل. حتى چه کله دهغوی انتقال اوشو نوهغوی ته غسل ورکونکو اووئيل چه هغوی به مسلسل تبسم کولو. تر دې چه مونږ دغسل نه فارغ شول (٢)

د ربعي بن حراش يو ورور ربيع بن حراش وو. وئيلې شی چه دهغوی انتقال اوشو. هغوی سيده اوخملولې شول او د بره نه پرې څادر واچولې شو. لږ ساعت پس هغوی دخپل مخ نه څادر لرې کړو او سلام يې اوکړو. خلقو دسلام جواب ورکړو او تپوس يې اوکړ چه دمرګ نه پس هم خبرې کيدې شی؟ هغوی جواب ورکړو:

انى لقيت ربى بعدكم، فتلقانى بروح وريحان، ورب غير غضبان، وكسانى ثوابا خضرا من سندس واستبرق، ووجدت الامر ايسر مما فى انفسكم، ولا تغتروا، فانى استاذنت ربى لابشركم، فاحملونى الى رسول الله ﷺ، فانه وعدنى ان لايسبقنى حتى ادركه.

تاسو نه پس چه کله ما د خپل رب سره ملاقات اوکړو نو زما استقبال په خوشبيو او رحمتونو سره اوکړو او ما ته داسې رب ملاو شو چه ناراضه نه وو. ما ته يې د نرۍ او ډيبر ريښمو جامې واغوستولې او ما ته معلومه شوه چه معامله ته چه ته څومره خپل زړه کښې مشکل ګڼړی د هغې نه ډيراسانه ده. البته ته په دهوکه کښې مه اوسه. ما دخپل رب نه ستاسو د زيرې ورکولو دپاره اجازت اخستې وو. اوس ما دنبى كريم ﷺ په خدمت کښې يوسئ. ولې چه هغوی ﷺ ماسره وعده کړې ده چه ما نه بغير به مخکښې نه زی.

دا وئيلو نه پس بيا خاموش شو (٣) والله اعلم بالصواب

---

(١) اوګورئ سير اعلام النبلاء (ج ٤ ص ٣٦٠ و٣٦١). وتهذيب الكمال (ج ٩ ص ٥٦)_

(٢) حواله جات بالا)_

(٣) اوګورئ طبقات لابن سعد (ج ٦ ص ١٥٠). وسير اعلام النبلاء (ج ٤ ص ٣٦١). والثقات لابن حبان (ج ٤ ص ٢٢٧)_ واضحه دی وی چه د تكلم بعد الموت دا واقعه په تهذيب الكمال (ج ٩ ص ٥٦) او عمدة القارى (ج ٢ ص ١٤٧) کښې د مسعود بن حراش طرف ته منسوب کړې شوې ده

دربعي بن حراش رحمه الله وفات ١٠٠ هجرى يا ١٠١ هجرى يا ١٠٤ هجرى كښې اوشو [1] رحمه الله تعالى رحمة واسعة

⑤ **حضرت علي بن ابي طالب** رضي الله عنه دوى اميرالمومنين سيدنا علي بن ابى طالب بن هاشم بن عبدمناف هاشمي مكى مدنى رضي الله عنه دى. ابو الحسن ئي كنيت دې [2] نبى كريم ﷺ دابو تراب په كنيت سره رابللې وو [3]

د نبى ﷺ د تره خوى وو. د نبى ﷺ زوم.يعنى دحضرت فاطمه الزهراء رضي الله عنها خاوند وو دډيرو اهل علمو په نزد د ټولو نه اول اسلام راوړنكې هم دوى دى. هغه وخت دهغوى عمر اته كالو نه د پنځلسو كالو په مينځ كښې وو. دمختلف حضراتو نه مختلف اقوال مروى دى.[4]

د حضرت على رضي الله عنه مناقب بې شماره دى. امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائى چه څومره مناقب د حضرت على رضي الله عنه په باره كښې منقول دى د چا په باره كښې هم منقول نه دى.ددې وجه دا ده چه د بنو اميه خلقوبه دحضرت على رضي الله عنه سره د بغض اظهار كولو.په دې وجه چا سره چه كوم روايت هم وو هغه يې نقل كړو.نو چه څومره قدرې دهغوى فضائل ختمولو كوشش اوكړې شو هم هغه قدر دهغوى مناقب اوفضائل خورې او منتشر شو.[5]

اگر چه روافضو د حضرت على رضي الله عنه په مناقب كښې ډير خرافات او بې سند خبرې ذكر كړى دى. ليكن دهغوى چه كوم حقيقى فضائل دى هغه كم نه دى. امام نسائى رحمه الله د خصائص على په نوم يو كتاب لكلې دې.چه د هغې اكثر روايات جيد دى [6]

حضرت على رضي الله عنه ته چه الله تعالى څنګه نسبى شرافت او نبوى قرابت عطا كړې وو.دغه شان هغوى په علم وعرفان او شجاعت او بهادرئ كښې هم بې مثال وو.

عبدالله بن عياش رحمه الله فرمائى: **ان عليا كان له ما شئت من ضرس قاطع فى العلم، وكان له السطة** [7] **فى العشيرة، والقدم فى الاسلام، والصهر برسول الله ﷺ، والفقه فى السنة،والنجدة فى الحرب، والجود فى الماعون.** [8]

يعنى حضرت على رضي الله عنه ته انتهائى مضبوط علم حاصل وو، هغوى ته د حسب نسب اعتبار سره ډير اوچته مرتبه حاصل وه، په اسلام كښې هغوى ته ډير اوچت مقام حاصل شو،دنبى كريم ﷺ د زوم جوړيدلو شرف ورته حاصل شو،د فقه حديث لويه حصه ورته حاصله

[1] سير اعلام النبلاء (ج ٤ ص ٣٦٢)_
[2] تهذيب الكمال (ج ٢٠ ص ٤٧٢)_
[3] اوګورئ صحيح البخارى (ج ١ ص ٦٣). كتاب الصلاة. باب نوم الرجال فى المسجد. رقم (٤٤١)_
[4] اوګورئ الاصابة فى تمييز الصحابة (ج ٢ ص ٥٠٧). و تهذيب الكمال (ج ٢٠ ص ٤٨٠....٤٨٢)_
[5] الاصابة (ج ٢ ص ٥٠٧ و ٥٠٨)_
[6] حواله بالا)_
[7] التوسط فى العشيرة حسبا ونسبا. تعليقات تهذيب الكمال (ج ٢٠ ص٤٨٧)_
[8] تهذيب الكمال (ج ٢٠ ص ٤٨٧)_

شوه، هغوی په حالت جنګ کښې دشجاعت وبسالت او خلقو ته د ضروریات ځیزونه ورکولو کښې دسخاوت سره متصف وو

حضرت علی ﷺ د بنو هاشم اول خلیفه وو. هغوی ته د احد العشرة المبشرة بالجنة، احد الستة اصحاب الشوری، احد الخلفاء الراشدین، احد العلماء الربانیین، احد الشجعان المشهورین او احد السابقین الی الاسلام کیدلو شرف حاصل دی (۱)

د نبی کریم ﷺ سره ټولو غزواتو او مشاهد کښې شریک وو. البته په غزوه تبوک کښې نبی کریم ﷺ هغوی په مدینه منوره کښې خپل نائب جوړ کړې وو. خکه نې په دې کښې عملا شرکت اونکړو (۲)

د حضرت عثمان ذوالنورین ﷺ دشهادت نه پس امت دهغوی په لاس بیعت اوکړو او هغوی خلیفه منتخب کړې شول. دې نه فورا پس حضرت طلحه. حضرت زبیر او حضرت عائشه ﷺ دحضرت عثمان ﷺ د قصاص مطالبه اوکړه. ددې په نتیجه کښې واقعه د جمل اوشوه، بیا حضرت معاویه ﷺ داهل شام راوستلوسره هم دغه مطالبه اوکړه. چه دهغې په نتیجه کښې واقعه صفین اوشوه.

دحضرت علی ﷺ دا رائې وه چه هغه ټولو حضراتو ته پکار وو چه اول نې بیعت کړې وې او په طاعت کښې داخل شوې وې، بیا دحضرت عثمان ﷺ اولیاء د قصاص مطالبه کړې وې نو بیا په حکم د شریعت باندې عمل کیدې شو. او دهغوی دمخالفینو دا وینا وه چه اول دې د قاتلینو نه قصاص واخستې شي. دحضرت علی ﷺ دا موقف وو چه قصاص بغیر د دعوې او بغیر د اقامت بینه نه صحیح نه دې هر یو فریق په دې سلسله کښې مجتهد وو. بعض حضرات صحابه د دواړو فریقونو نه جدا وو، د حضرت عمار ﷺ د شهادت نه ظهره شو چه حضرت علی ﷺ په حق وو نو په ابتداء کښې داختلاف نه پس د اهل السنت والجماعة په دې اتفاق اوکړو. (۳)

دحضرت علی ﷺ په خصائص کښې یودا هم دی چه نبی ﷺ د خیبر په موقع اوفرمائیل

لادفعن الرایة غدا الی رجل یحب الله ورسوله، ویحبه الله ورسوله، یفتح الله علی یدیه.

یعنی صبا سحر به زه داسې کس له جهنډه ورکوم چه دالله او دهغې رسول سره محبت لری. او الله او د هغې رسول هغه سره محبت کونکې دی، او هم ددې په لاس به فتح کیږی

کله چه صبا شو نو ډیر حضرات په دې امید وو چه ممکنه ده جهنډه به زما لاس ته راشي. لیکن نبی ﷺ تپوس اوکړو علی بن ابی طالب چرته دې؟ خلقو اووئیل چه دهغوی په سترګو کښې تکلیف دې، هغوی راغلل. نبی کریم ﷺ دهغوی په سترګو کښې خپلې لاړې اولګولې او دعا یې اوکړه. هغوی ټیک شو. او هغوی ته نبی ﷺ جهنډه ورکړه (۴)

---

(۱) عمدة القاری (ج ۲ ص ۱۴۷)_
(۲) تهذیب الکمال (ج ۲۰ ص ۴۸۳)_
(۳) اوګورئ الاصابة (ج ۲ ص ۵۰۸)_
(۴) الاصابة (ج ۲ ص ۵۰۸). نیز اوګورئ صحیح البخاری (ج ۱ ص ۵۲۵). کتاب فضائل اصحاب النبی ﷺ باب مناقب علی بن ابی طالب)_

حضرت عمر ﷜ فرمائی چه ماته کله هم د امارت اخستو خواهش اونشو. البته هغه ورځ ددې فضائلو د وجې نه زما په زړه کښې دا خواهش پیدا شو چه کاش دا شرف ما ته حاصل شی (۱)

نبی کریم ﷺ هم دوی د حج په موقع باندې د اعلان براءت دپاره لیږلې وو او فرمائیلې ئې وو لایذهب بها الا رجل منی وانا منه. (۲)

کله چه دا آیت کریمه نازل شو (فقل تعالوا ندع ابناءنا وابناءکم ونساءنا ونساءکم وانفسنا وانفسکم) (۳)

نو نبی ﷺ حضرت علی، حضرت فاطمه او حضرات حسنین ﷢ راوبلل او وې فرمائیل اللهم هولاء اهلی. (۴)

دغزوه تبوک په موقع کله چه نبی کریم ﷺ هغوی خپل نائب جوړ کړو او په مدینه منوره کښې ئې دپاتې کیدو حکم ورکړو نو حضرت علی ﷜ عرض اوکړل تخلفنی مع النساء والصبیان؟ یعنی تاسو ما د ښځو او د ماشومانو سره شاته پریږدئ؟ نبی ﷺ اوفرمائیل اما ترضی ان تکون منی بمنزلة هارون من موسی، الا انه لا نبوة بعدی؟ (۵) یعنی آیا ته دا نه خوښوې چه تاته زما د نسبت سره هغه مقام حاصل شی، کوم چه حضرت هارون ته دحضرت موسی ﷤ په نسبت سره حاصل وو. دا بیله خبره ده چه ما نه پس د نبوت سلسله نشته

حضرت عمر ﷜ به د داسې واقعاتو او مشکلاتو نه د الله تعالی نه پناه غوښتله چه د هغې د حل د پاره به حضرت علی ﷜ نه وو.

د علمی مقام ئې دا حال وو چه پخپله فرمائی سلونی، سلونی، وسلونی عن کتاب الله تعالی، فوالله ما من آیة الا وانا اعلم انزلت بلیل او نهار. (۶) یعنی ما نه د الله د کتاب په باره کښې ښه پوښتنې کوئی. په خدې قسم یو آیت هم داسې نشته چه دهغې په باره کښې ما ته علم نه وی چه هغه په شپه کښې نازل شوې دې یا په ورځ کښې

امام مسروق بن الاجدع ﷫ فرمائی

وجدت علم اصحاب محمد ﷺ ینتهی الی ستة: الی علی، وعبدالله، وعمر، وزید بن ثابت، وابی الدرداء، وابی بن کعب، ثم وجدت علم هولاء الستة انتهی الی علی وعبدالله. (۷)

---

(۱) صحیح مسلم، کتاب فضائل الصحابة، باب من فضائل علی بن ابی طالب ﷜، رقم (۶۲۲۲)_
(۲) مسند احمد (ج ۱ ص ۳۳۱)، مسند عبدالله بن عباس ﷠_
(۳) آل عمران (۶۱)_
(۴) صحیح مسلم، کتاب فضائل الصحابة، باب من فضائل علی بن ابی طالب ﷜، رقم (۶۲۲۰)_
(۵) حواله بالا)_
(۶) الاصابة (ج ۲ ص ۵۰۹)_
(۷) مقدمة نصب الرایة (ص ۵۵)_

يعنى ما دنبى ﷺ داصحابو علم په شپږ حضراتو باندې ختم اوموندو. يعنى علي، عبدالله، عمر، زيد بن ثابت، ابو الدرداء، او ابى بن كعب ﷺ. بيا دهغې شپږو علوم په دوه حضراتو كښې راغونډ شول. يو حضرت علي او دويم حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ
حضرت علي ﷺ د نبى كريم ﷺ نه علاوه د حضرت ابوبكر صديق، حضرت عمربن الخطاب، حضرت مقدادبن الاسود او د خپلې بى بى حضرت فاطمة الزهراء ﷺ نه روايت حديث كړې دې
د هغوى نه دبعض صحابه كرامو نه علاوه ډيرو تابعينو روايت كړې دې. په صحابه كرامو كښې د هغوى د صاحبزادګانو حضرت حسن او حضرت حسين ﷺ نه علاوه حضرت عبدالله بن مسعود، حضرت ابوموسى اشعرى، حضرت عبدالله بن عباس، حضرت ابو رافع، حضرت عبدالله بن عمر، حضرت ابوسعيد خدرى، حضرت صهيب رومى، حضرت زيد بن ارقم، حضرت جريربن عبدالله بجلى، حضرت ابوامامه، حضرت ابو جحيفه، حضرت براء بن عازب او حضرت ابو الطفيل ﷺ روايت كوى
په تابعين مخضرمين يا چا ته چه دنبى كريم ﷺ رويت حاصل دې. په هغوى كښې عبدالله بن شداد بن الهاد، طارق بن شهاب، عبدالرحمن بن الحارث بن هشام، عبدالله بن الحارث بن نوفل، مسعود بن الحكم او مروان بن الحكم وغيره د حضرت علي ﷺ نه روايت كوى. دې نه علاوه دتابعينو يو جم غفير دهغوى نه روايت كوى [1]
د حضرت علي ﷺ نه تقريبا پنځه سوه شپږ اتيا حديثونه مروى دى. په دې كښې متفق عليه شل احاديث دى، بله دا چه امام بخارى په نهه احاديثو كښې او امام مسلم په پنځلس احاديثو كښې متفرد دې [2]
رمضان ۴۰ هجرى كښې يو شقى القلب كس عبدالرحمن بن ملجم مرادى په هغوى باندې حمله اوكړه او په دې واقعه كښې هغوى شهيد شول [3]
هغوى خلافت درې نيمې مياشتې كم پنځه كاله وو [4] رضى الله تعالى عنه وارضاه

**قوله: قال النبى ﷺ: لاتكذبوا على، فانه من كذب على فليلج النار:** نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه په ما باندې دروغ مه وايئ. ولې چه څوک په ما باندې دروغ وائى هغه به جهنم ته داخليږى
مطلب دا دې چه ما طرف ته دځه قسم دروغو نسبت مه كوئى. خكه چه كوم سړې ما طرف ته داسې خبره منسوب كړى چه ما نه وى وئيلې، نو هغه به جهنم ته ځى. دنبى كريم ﷺ طرف ته يوه غلطه خبره منسوب كول حرام دې، كه ددين په تائيد كښې وى يا په ترديد كښې

---

[1] د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ الاصابة (ج ۲ ص ۵۰۸)، وتهذيب الكمال (ج ۲۰ ص ۴۷۳.....۴۷۹)_
[2] اوګورئ عمدة القارى (ج ۲ ص۱۴۷)، وخلاصة الخزرجى (ص ۲۷۴)_
[3] عمدة القارى (ج ۲ ص ۱۴۸)_
[4] الاصابة (ج ۲ ص ۵۱۰)_

په دې روايت كښې چه فرمائيلې دى لاتكذبواعلى په دې كښې د على مفهوم مخالف مقصود او معتبر نه دې.ولې چه د (كذب‌له) څه تصور دلته نشته. څكه دا نهى د مطلق كذب ده
**ايا د شريعت دتائيد د پاره د حديث وضع جائز ده؟** بعضې جاهل صوفيه وائى چه نبى كريم ﷺ د كذب‌على‌النبى ﷺ نه منع فرمائيلې ده.د كذب‌للنبى ﷺ نه ئې منع نه ده فرمائيلې.لهذا كه څوك ددين د تائيد دپاره احاديث وضع كړى نو دا جائز ده [1]
هم دغه شان كراميه هم دا وائى چه په قرآن اوسنت كښې چه څه وارد شوې دى دهغې ثابتولو دپاره كه دترغيب و ترهيب په باب كښې دروغ اوونيلې شى او نبى كريم ﷺ طرف ته منسوب كړې شى نو جائز دې.ولې چه دا (كذب‌له) دې (كذب‌عليه) نه دې [2]
ليكن دا دليل صحيح نه دې.ولې چه كذب‌على‌النبى او كذب‌للنبى كښې هيڅ فرق نشته. ولې چه كذب خلاف واقعه خبرې ته وائى.بيا كه يو سړې د بل طرف ته څه خبره منسوب كوى او منسوب اليه هغه خبره نه وى كړې نوكه دهغه په تائيد كښې وى.يا په ترديد كښې وى هلته كذب‌عليه ونيلې شى.[3] او دتائيد په صورت كښې د (كذب‌له) استعمال په لغت كښې چرته نشته.لهذا (كذب‌للنبى) ونيلوسره دې ته سند جواز وركولو كوشش بې اصل او بې فائدې دې. دا فرق ددې مدعينو پخپله جوړ كړې دې. دلغت نه ددې څه تائيد نه كيږى
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دا ددې خلقو د جهالت دليل دې.ولې چه هغوى په ترغيب وترهيب كښې چه كوم حديثونه وضع كړى دى او دهغې نه ئې كوم ندب ثابت كړې دې نو هغه مندوب هم چونكه داحكامونه دې.څكه هغه په وضع داحكامو كښې گويا الله تعالى طرف ته غلطه خبره منسوب كړه،هم دغه شان په دې حكم كښې هغه تمام اخبار او روايات داخل دى چه په هغوي كښې دالله تعالى طرف نه په مخصوص عمل باندې د مخصوص ثواب وعده نقل كړې شوې ده.او په حقيقت كښې هغه ثابت نه دې [4]
ددې جاهلانو يو استدلال ديو روايت نه هم دې،چه هغې كښې دې من كذب‌على‌متعمدا ليضل به الناس فليتبوا مقعده من النار.[5]
په دې روايت كښې كذب‌متعمدا ته گناه او باعث عذاب په هغه صورت كښې ونيلې شوې دې چه د خلقو دگمراه كولو په نيت دروغ اوونيلې شى،دې نه معلومه شوه چه كه دخلقو د

---

[1]) اوگورئ فتح البارى (ج ١ ص ١٩٩)، و فتح المغيث (ج ١ ص ٣٠٦)_
[2]) حواله جات بالا)_
[3]) اوگورئ المعجم الوسيط (ج ٢ ص ٧٨٠)، والقاموس الوحيد (ص ١٣٩٤)_
[4]) اوگورئ النكت على كتاب ابن الصلاح (ج٢ ص ٨٥٤و٨٥٥)_
[5]) كشف الاستار عن زوائد البزار(ج ١ ص ١١٤)، كتاب العلم، باب التحذير من الكذب على رسول الله ﷺ، رقم (٢٠٩)، وشرح مشكل الآثار (ج ١ ص ٣٧١)، باب بيان مشكل ما روى عن رسول الله ﷺ من قوله: من كذب الخ.)_

گمراه کولو نیت نه وی نو دروغ وئیلې شی نو دا خلق وائي چه کوم روایت ددې قیدنه مطلق دی هغه به هم دې مقید روایت باندې محمول کولې شی [1]

ددې جواب دا دې چه ائمه حدیث په دې باندې متفق دی چه دا زیادتی ضعیف دې. ددې ټولو نه قوی ترین طریق هغه دې کوم چه امام حاکم رحمه الله په المدخل کښې نقل کړې دې او بیائې ددې تضعیف کړې دې، هغه طریق دا دې یونس بن بکیرعن الاعمش عن طلحة بن مصرف عن عمرو بن شرحبیل عن ابن مسعود هم په دې طریق سره امام بزار رحمه الله هم نقل کړې دې

امام حاکم فرمائي چه دلته دیونس بن بکیرنه په دوه ځایونو کښې غلطۍ شوی ده

یوه غلطی دا اوشوه چه هغوی د طلحة بن مصرف او د عمروبن شرحبیل په مینځ کښې دابوعمار واسطه ساقط کړه

دویمه غلطی دا اوشوه چه دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نوم اخستوسره ئې دا موصول وګرځولو. حالانکه دا مرسل دې [2]

اوکه دا زیادت ثابت هم شی بیاهم ددې نه استدلال صحیح نه دې. ولې چه لام به دتعلیل په ځاې د عاقبت دپاره اوګنړلې شی. لکه څنګه چه د الله تعالی ارشاد ﴿فالتقطه آل فرعون لیکون لهم عدوا وحزنا﴾ [3] کښې د لیکون لام لام عاقبت دې. ولې چه د لام تعلیل په صورت کښې ددې معنی به وی چه آل فرعون د حضرت موسی علیه السلام التقاط ځکه کړې ووچه هغه ددوی دپاره دشمن او د پریشانئ باعث جوړشی. ظاهره ده چه دې غرض لره هغوی ددوی التقاط نه وو کړې، ځکه به لام دعاقبت دپاره وی او دآیت مطلب به دا وی چه آل فرعون چه دحضرت موسی علیه السلام التقاط اوکړو نو ددې انجام او مآل داشو چه هغوی دپاره دشمن نور هم باعث د پریشانئ ثابت شو.

هم دغه شان په من کذب علی متعمدا لیضل به الناس....... کښې هم لام دعاقبت دپاره دې او مطلب دا دې چه چا په ما باندې دروغ اووئیل. چه دهغې انجام او مآل دا دې چه په خلقو کښې به ګمراهي خوریږی، نو داسې کس دې جهنم کښې خپله ټهکانه جوړه کړی

د لیضل به الناس دویمه معنی دا کیدې شی چه داجمله دلته دتاکیدپه طور راوړلې شوې ده، چه ددې نه مفهوم مخالف مقصود دې اونه معتبر او دا هم داسې دې چه څنګه د الله تعالی په ارشاد ﴿فمن اظلم ممن افترٰی علی الله کذبا لیضل الناس بغیرعلم﴾ [4] کښې لیضل دتاکید دپاره دې. که ددې مفهوم مخالف معتبر او مقصود وې نو مطلب به دا وو چه افتراء علی الله کولو

---

[1] النکت علی کتاب ابن الصلاح(ج ۲ ص ۸۵۵)_

[2] اوګورئ النکت علی کتاب ابن الصلاح(ج ۲ ص ۸۵۵و۸۵۶). نیز اوګورئ شرح مشکل الآثار (ج ۱ ص ۳۷۱و۳۷۲)، باب بیان مشکل ما روی عن رسول الله صلی الله علیه وسلم من قوله: من کذب علی متعمدا)_

[3] (القصص ۸)_

[4] (الانعام ۱٤٤)_

والا ظالم نه دي.حالانكه افتراء الكذب على الله بهر صورت حرام دي. كه په دي كښې اضلال مقصود وى اوكه نه وى والله اعلم[1]

ددي توجيه د وضاحت په طور خان پوهه كړنى چه جاهلان دحديث وضع كولو جواز په ليضل به الناس كښې دمفهوم مخالف راويستلو سره كوى چه كه دګمراه كولو په نيت حديث وضع كړې شى نو ګناه ده ليكن كه نيت بنه وى او مقصود په دين باندې عمل كولو دپاره آماده كول وى نوبيا حديث وضع كول ګناه نه ده.دثواب حديثونه دې وضع كړې شى.چه دعمل خير تحريک اوشى او دعذاب حديثونه دې وضع كړې شى چه دګناهونونه خان اوساتلې شى نو په دې كذب على النبى كښې ګناه نشته

مونږه وايو چه دلته مفهوم مخالف نه مقصود دې او نه معتبر . كذب على النبى بهرصورت حرام او ګناه ده. د ليضل به الناس جمله كذب على النبى قباحت او دبدنې د تاكيددپاره ارشاد فرمائيلې شوي دي،دا بالكل هم دغه شان دې څنګه چه په قرآن مجيد كښې ﴿فمن اظلم ممن افترى على الله كذبا ليضل الناس بغير علم﴾ فرمائيلې شوي دي،په آيت كښې د ﴿ليضل الناس بغير علم﴾ مفهوم مخالف هرګز مقصود او معتبرنه دې، كه دمفهوم مخالف اعتبار اوكړې شى نومطلب به دا وى چه دخير غرض دپاره (دنيک كارد ترغيب او دګناه نه دنفرت دپاره) كه دافتراء على الله ارتكاب اوكړې شى نو افتراء كولو والا ظالم نه دې،حالانكه افتراء على الله بهرصورت ظلم دې اوحرام دې،څكه به په آيت كښې ﴿ليضل الناس بغير علم﴾ دتاكيددپاره اوګنړلې شى، ګويا چه ددې جملې نه دافتراء على الله شناعت اوقباحت موكد اومضبوط كول مقصود دي.هم دغه شان په حديث كښې هم ليضل به الناس په تاكيد باندې محمول دې،ددې مفهوم مخالف نه مقصود دې نه معتبر. والله تعالى اعلم وعلمه احكم

**قوله: فليلج النار:** دا د ولوج نه د امر غائب صيغه ده.

دا امر يا خوپه معنى د دعا دې ګويا نبى كريم ﷺ هغه كس دپاره كوم چه د كذب على النبى ﷺ ارتكاب كوى بددعافرمائى چه هغه دې په جهنم كښې واچولې شى يا دا امر په معنى د خبر دې. لكه څنګه چه دمسلم شريف په روايت كښې من يكذب على يلج النار راغلې دې[2] او د ابن ماجه په روايت كښې دا الكذب على يولج النار[3]، الفاظ دى.[4]

---

[1] النكت على كتاب ابن الصلاح (ج ۲ ص ۸۵۶) وتوضيح الافكار (ج ۲ ص ۶۳). وفتح المغيث (ج ۲ ص ۳۰۷). وشرح مشكل الآثار (ج ۱ ص ۳۷۲)_

[2] صحيح مسلم. المقدمة. باب تغليظ الكذب على رسول الله ﷺ. رقم (۲)_

[3] سنن ابن ماجه.المقدمة. باب التغليظ فى تعمد الكذب على رسول الله ﷺ.رقم (۳۱)_

[4] اوګورئ:فتح البارى (ج ۱ ص ۲۰۰)_

۱۰۷] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ جَامِعِ بْنِ شَدَّادٍ عَنْ عَامِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قُلْتُ لِلزُّبَيْرِ [1] إِنِّي لَا أَسْمَعُكَ تُحَدِّثُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صلی الله علیه وسلم - كَمَا يُحَدِّثُ فُلَانٌ وَفُلَانٌ . قَالَ أَمَا إِنِّي لَمْ أُفَارِقْهُ وَلَكِنْ سَمِعْتُهُ يَقُولُ « مَنْ كَذَبَ عَلَيَّ فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ

## رجال الحديث

① **ابوالوليد**: دوی مشهور محدث امام ابوالولید هشام بن عبدالملک باهلی طیالسی بصری رحمه الله دی [2]

دوی د ابراهیم بن سعد، اسحاق بن سعید قرشی، عکرمه بن عمار، جریر بن حازم، مهدی بن میمون، امام شعبه، امام مالک، امام لیث بن سعد، سفیان بن عیینه، هشام الدستوائی او د زائده بن قدامه رحمهم الله وغیره نه روایت کوی.

د دوی نه روایت کونکو کښې امام بخاری، امام ابوداود، ابراهیم بن یعقوب الجوزجانی، اسحاق بن راهویه، ابوحاتم رازی او محمد بن یحی ذهلی رحمهم الله دی [3]

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی ابوالولید متقن. [4]

نیز هغوی فرمائی وابوالولید الیوم شیخ الاسلام، ما اقدم علیه الیوم احدا من المحدثین. [5]

ابن واره رحمه الله فرمائی حدثنی ابوالولید وما ارانی ادرکت مثله. [6]

امام عجلی رحمه الله فرمائی ابوالولید بصری، ثقة ثبت فی الحدیث، وکان یروی عن سبعین امرأة....... [7]

احمد بن سنان رحمه الله فرمائی حدثنا ابوالولید امیر المحدثین. [8]

امام ابوزرعه رحمه الله فرمائی ادرک نصف الاسلام، وکان اماما فی زمانه، جلیلا عند الناس. [9]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی ابوالولید امام، فقیه، عاقل، ثقة، حافظ، ما رایت فی یده کتابا قط. [10]

---

[1] قوله: قلت للزبير: الحديث. اخرجه ابوداود فی سننه. فی کتاب العلم. باب التشدید فی الکذب علی رسول الله ﷺ رقم (۳۶۵۱). وابن ماجه فی سننه. فی المقدمة. باب التغلیظ فی تعمد الکذب علی رسول الله ﷺ رقم (۳۶)_

[2] تهذیب الکمال (ج ۳۰ ص ۲۲۶)_

[3] دشیوخ او تلامذه دتفصیل دپاره اوګورئ تهذیب الکمال (ج ۳۰ ص ۲۲۷_۲۲۹)_

[4] تهذیب الکمال (ج ۳۰ ص ۲۲۹)_

[5] حواله بالا)_

[6] تهذیب الکمال (ج ۳۰ ص ۲۳۰)_

[7] حواله بالا)_

[8] حواله بالا)_

[9] حواله بالا)_

[10] حواله بالا)_

معاويه بن عبدالكريم زيادي رحمه الله فرماني ادركت البصرة، والناس يقولون: ما بالبصرة اعقل من ابي الوليد، وبعده ابوبكر بن خلاد.[1]

يعني ما بصره په داسې حال کښې اوموندله چه خلقو به وئيل چه په بصره کښې د ابوالوليد نه زيات څوک عقلمند نشته. او دهغوی نه پس ابوبکر بن خلاد دې

ابن سعد رحمه الله فرماني كان ثقة حجة ثبتا.[2]

ابن حبان رحمه الله دهغوی ذکر په کتاب الثقات کښې کړې دې او فرمائيلې ئې دي وكان من عقلاء الناس.[3] ابن قانع رحمه الله فرماني ثقة مامون ثبت.[4]

په ۲۲۷ هجری کښې دهغوی انتقال اوشو [5] رحمه الله رحمة واسعة.

(۲) **شعبه** دوی امير المومنين فی الحديث شعبه بن الحجاج عتکی بسطامی رحمه الله دی. ددوی حالات كتاب الايمان، باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده په ذيل کښې تير شوي دي.[6]

(۳) **جامع بن شداد** دوی ابوصخره جامع بن شداد محاربی کوفی رحمه الله دی [7]

دوی د صفوان محرز. طارق بن عبدالله محاربی. عبدالرحمن بن يزيد نخعی. ابوبرده بن ابی موسی او دعامر بن عبدالله بن الزبير رحمهم الله وغيره نه روايت کوی

ددوی نه روايت کونکو کښې امام اعمش. مسعر بن کدام. شعبه. سفيان ثوری. عبدالرحمن بن عبدالله المسعودی او عمر بن ابی زائده رحمهم الله وغيره دی [8]

امام يحي بن معين، امام ابوحاتم او امام نسائی رحمهم الله فرمائی ثقة.[9]

يعقوب بن سفيان رحمه الله فرمائی ثقة متقن.[10]

امام عجلی رحمه الله فرمائی وهو شيخ عال ثقة.... من قدماء شيوخ سفيان، وكان شيخا عاليا ثقة ثبتا كوفيا[11]

---

[1] تهذيب الكمال (ج ۳۰ ص ۲۳۱)_
[2] الطبقات الكبرى لابن سعد (ج ۷ ص ۳۰۰)_
[3] الثقات لابن حبان (ج ۷ ص ۵۷۱)_
[4] تهذيب التهذيب (ج ۱۱ ص ۴۷)_
[5] حواله بالا)_
[6] كشف البارى (ج ۱ ص ۶۷۸)_
[7] تهذيب الكمال (ج ٤ ص ٤٨٦)_
[8] دشيوخ اوتلامذه دتفصيل دپاره اوګورئ تهذيب الكمال (ج ٤ ص ٤٨٦و٤٨٧). وتهذيب التهذيب (ج ۲ ص ۵۶)_
[9] تهذيب الكمال (ج ٤ ص ٤٨٧)_
[10] تهذيب التهذيب (ج ۲ ص ۵۶)_
[11] تهذيب التهذيب (ج ۲ ص ۵۶). وتعليقات تهذيب الكمال (ج ٤ ص ٤٨٧)_

ابن حبان رحمه الله دهغوی ذکر په کتاب الثقات کښې کړې دې (۱)
حافظ ذهبی رحمه الله دهغوی تذکره کولوکښې لیکی الامام،الحجة،ابوصخرة المحاربي، احد علماء الکوفة.(۲)
ددوی سن وفات بعض حضرات ۱۱۸هج.بعض حضرات ۱۲۷هج.او بعض حضرات ۱۲۸ هجری بیانوی (۳) رحمه الله تعالی رحمة واسعة.

⑨**عامربن عبدالله بن الزبیر**: دوی عامر بن عبدالله بن الزبیربن العوام قرشی اسدی مدنی رحمه الله دی ابوالحارث ددوی کنیت دې (۴)
دوی دخپل پلارحضرت عبدالله بن الزبیر رضی الله عنه نه علاوه دحضرت انس.حضرت صالح بن خوات بن جبیر،عمروبن سلیم زرقی.عوف بن الحارث بن الطفیل او دخپل ماما ابوبکربن عبدالرحمن بن الحارث بن الهشام نه روایت کوی.
ددوی نه روایت کونکو کښې جامع بن شدادمحاربی.دهغوی ورور عمربن عبدالله بن الزبیر،عمروبن دینار،مالک بن انس،محمدبن عجلان.مصعب بن ثابت بن عبدالله بن الزبیر او یحی بن سعیدانصاری رحمهم الله وغیره حضرات دی (۵)
امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی ثقة من اوثق الناس.(۶)
امام یحي بن معین او امام نسائی رحمهما الله فرمائی ثقة.(۷)
امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی ثقة صالح.(۸)
امام عجلی رحمه الله فرمائی مدنی تابعی ثقة.(۹)
حضرت ابن سعد رحمه الله فرمائی کان عابدا فاضلا،وکان ثقة مامونا،وله احادیث یسیرة.(۱۰)
خلیلی رحمه الله فرمائی احادیثه کلها یحتج بها.(۱۱)

---

(۱) تهذیب التهذیب (ج ۲ ص ۵۷)_
(۲) سیراعلام النبلاء (ج ۵ ص ۲۰۵)-
(۳) اوګورئ سیر اعلام النبلاء (ج ۵ ص ۲۰۶).وتهذیب التهذیب (ج ۲ ص ۵۶و۵۷). وتهذیب الکمال(ج ٤ ص ٤۸۷و٤۸۸)_
(۴) تهذیب الکمال (ج ١٤ ص ۵۷)_
(۵) دشیوخ اوتلامذه دتفصیل دپاره اوګورئ تهذیب الکمال (ج ١٤ ص ۵۷و۵۸). وتهذیب التهذیب (ج ۵ ص ۷٤)_
(۶) تهذیب الکمال (ج ١٤ ص ۵۸)_
(۷) حواله بالا)_
(۸) تهذیب التهذیب (ج ۵ ص ۷٤)_
(۹) حواله بالا)_
(۱۰) حواله بالا)_
(۱۱) حواله بالا)_

امام نووى رحمه الله فرمائى وكان عابدا فاضلا مجمعا على توثيقه وجلالته.[١]

ابن حبان رحمه الله دهغوى ذكر په كتاب الثقات كښې كړې دې او ليکلي ئې دي كان عالما فاضلا[٢].

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى مجمع على ثقته.[٣]

حافظ ذهبى رحمه الله دهغوى دوفات قابل رشک واقعه ليکلې ده چه عين د وفات په وخت د مابنام اذان آواز واوريدې شونو هغوى اووئيل چه ما دلاس نه اونيسئ او اوچت مې كړئ او جمات ته مې بوځنې ويسئ. خلقو اووئيل چه تاسوخوبيمار يئ وې فرمائيل اسمع داعى الله فلا اجيبه؟ چه زه دالله تعالى طرف ته رابلونكې اواز واورم او لبيک اونه وايم؟ نوخلقو هغوى ته سهارا وركړه او د مابنام په جماعت كښې شريک شو. لا يو ركعت يې ادا كړې ووچه روح ئې دقفس عنصرى نه پرواز اوكړو.[٤]

دعبادت او د دعا داسې شوق وو چه هوش به يې نه پاتې كيدل او بعض وختونه دماسختن نه واخله تر سحر پورې به دعاكښې مشغول وو.[٥]

په ١٢١ هجرى كښې دهغوى انتقال اوشو.[٦] رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

⑤ **عبدالله بن الزبير** رضي الله عنه: دوى مشهورصحابى. اميرالمومنين عبدالله بن الزبيربن العوام بن خويلدبن اسدالقرشى الاسدى المدنى رضي الله عنهما دى. ابوبكر دهغوى كنيت دې او بعض حضراتو كنيت ابوخبيب خودلې دې.[٧]

حضرت عبدالله بن الزبيرته الله تعالى ډير خصوصيات او فضائل وركړى وو. دهغوى پلار حضرت زبيربن العوام دى، چه په دعشره مبشره كښې ووا و ورسره د نبى كريم صلى الله عليه وسلم دحوارى په نوم معروف وو، دهغوى والده حضرت اسماء رضي الله عنها ذات النطاقين بنت ابى بكرالصديق رضي الله عنه ده، دهغوى نيا حضرت صفيه بنت عبدالمطلب رضي الله عنها ده، چه دنبى كريم صلى الله عليه وسلم حقيقى ترور وه، حضرت خديجه رضي الله عنها دهغوى دپلار ترور وه، دهغوى ترور ام المومنين حضرت عائشه رضي الله عنها ده.[٨]

دحضرت عبدالله بن الزبير رضي الله عنهما ولادت دهجرت نه پس اوشو. بعضو په ٢ هجرى كښې ولادت خودلې دې. او حافظ ابن حجر رحمه الله ١ هجرى ته ترجيح وركړې ده.[٩]

هغوى ته د اول مولودفى الاسلام بعدالهجرة كيدوشرف حاصل دې، دهغوى ولادت اهل اسلام

---

[١] تهذيب الاسماء واللغات (ج ١ ص ٢٥٦)_
[٢] الثقات لابن حبان (ج ٥ ص ١٨٦)_
[٣] سير اعلام النبلاء (ج ٥ ص ٢٢٠)_
[٤] حواله بالا)_
[٥] حواله بالا)_
[٦] الثقات لابن حبان (ج ٥ ص ١٨٧)_
[٧] تهذيب الكمال (ج ١٤ ص ٥٠٨و٥٠٩)_
[٨] اوګورئ تهذيب الاسماء واللغات للنووى (ج ١ ص ٢٦٦)_
[٩] اوګورئ تهذيب التهذيب (ج ٥ ص ٢١٣و ٢١٤)، والاصابة (ج ٢ ص ٣٠٩)_

دپاره د ډير خوشالئ سبب اوګرځيدو.ددې وجه دا وه چه يهودو دا مشهوره کړې وه چه مونږه دې مهاجرينو باندې جادو کړې دې.ځکه ددوى په کورونو کښې به ولادت نه کيږى.نوچه کله دوى پيدا شول نو ديهودو په ترديد او ذلت باندې مسلمانان طبعا خوشاله شول [۱]

کله چه دوى پيداشول نو دنبى کريم ﷺ په خدمت کښې راوړلې شول.نبى ﷺ کهجوره اوچوپله او ددې کهجورې نه يې تحنيک اوکړو.نو دټولو نه اول څيز چه دهغوى په خيټه کښې لاړو هغه دنبى کريم ﷺ لعاب مبارک وو [۲]

دنبى کريم ﷺ د وصال په وخت دهغوى عمر اته يا نهه کاله وو.کله چه دوى د اوه کاله عمرته اورسيدل نودخپل پلارپه اشاره باندې د نبى کريم ﷺ په لاس بيعت دپاره حاضر شول.نبى ﷺ چه هغوى په راتلواوکتل نو مسکې شو اوبيا يې بيعت اوفرمائيه [۳]

الله (ج) څنګه چه هغوى ته نسبى شرافت ورکړې ووهم داسې ذاتى قابليت او صلاحيت يې هم ورکړې وو.ډير بهادر وو. دلسو کالو په عمر کښې خپل پلار سره ديرموک په جنګ کښې شريک شو او د اس سورلى يې اوکړه [۴]

يو خله حضرت عبدالله بن الزبيردنبى کريم ﷺ خدمت ته لاړو.نبى کريم ﷺ هغه وخت حجامت لګولو.د فراغت نه پس نبى ﷺ اوفرمائيل اې عبدالله دا وينه يوسه او داسې ځائې کښې واچوه چه تا څوک اونه وينى.کله چه دوى هلته نه روان شول نوهغه وينه يې اوڅکله.په واپسئ باندې نبى ﷺ پوښتنه اوکړه چه وينې سره دې څه اوکړو؟ عرض يې اوکړو چه ماته ډير پټ ځائې معلوم وو.هلته مې پټه کړه.نبى ﷺ اوفرمائيل شايد چه تا هغه وينه اوڅکله؟

عرض يې اوکړو چه آو نبى ﷺ اوفرمائيل ولم شربت الدم؟ ويل للناس منك، وويل لك من الناس. تا دا وينه ولې اوڅکله؟ اوس به ستا دطرفه خلقو ته تکليف رسى او دخلقو دطرف نه به تاته تکليف رسى

موسى تبوذکى راوى حديث نقل کوى چه ما دا حديث ابو عاصم ته واورولونوهغوى اوفرمائيل چه دخلقو خيال دادې چه په هغوى کښې کوم ډيرزيات قوت وو هغه هم ددې وينې د وجې نه وو [۵]

دحضرت عبدالله بن سعد بن ابى سرح ﷺ په ماتحتئ کښې دافريقې جهاد کښې شريک شول.په يو موقع کښې دمسلمانانو شل زره لښکر مقابله د يو لکه شل زره کافرانوسره وو. حضرت عبدالله بن الزبير په دې موقع باندې د بې مثال بهادرئ او دنهايت هوښيارئ نه کار واخستو.او ددشمن په فوج بالکل په مينځ کښې يې حمله اوکړه او په لږ وخت کښې د کفارو د سردار سر پخپل نيزې باندې واپس راوړلو.نورو مسلمانانو په دې موقع ډيره سخته او په

[۱] سير اعلام النبلاء (ج ۳ ص ۳۶۵). والاصابة (ج ۲ ص ۳۰۹)_
[۲] تهذيب الاسماء واللغات (ج ۱ ص ۲۶۶)_
[۳] سير اعلام النبلاء (ج ۳ ص ۳۶٤ و ۳۶۵)_
[۴] صحيح البخارى (ج ۲ ص ۵۶۶) کتاب المغازى،باب قتل ابى جهل،رقم (۳۹۷۵)_
[۵] سير اعلام النبلاء (ج ۳ ص ۳۶۶). والاصابة (ج ۲ ص ۳۱۰)_

يو خلى حمله اوكړه نو د كفارو لښكر ايسارپاتې نه شو او اوتختيدو (۱)
د واقعه جمل په موقع باندې دحضرت عائشه رضي الله عنها سره شريک شول او داسې بهادرۍ سره يې جنګ اوكړو چه د خلويښت نه زيات زخمونه پرې راغلل (۲)
حضرت عبدالله بن الزبير رضي الله عنه دعبادت خاص ذوق لرلو ،حضرت عمروبن دينار رحمه الله به فرمائيل
ما رايت مصليا قط احسن صلاة من عبدالله بن الزبير (۳)
ابن ابى مليكه رحمه الله فرمائى چه ماته حضرت عمربن عبدالعزيز رحمه الله اوفرمائيل ان فى قلبك من ابن الزبير نو ما ددې خدشې دازالې په طور اوونيل لورايته ما رايت مناجيا ولا مصليا مثله. (۴)
يعنى كه تا هغوى ليدلې وې ـــ بوهه شوې به وې چه دهغوى نه زيات څوک مناجات كونكې او مونځ كونكې نشته.
حضرت ابن الزبير رضي الله عنه به اوه اوه ورځې صوم وصال كولو .بياهم دټولو نه مضبوط وو (۵)
امام مجاهد رحمه الله فرمائى چه كله به حضرت عبدالله بن الزبير مونځ ته اودريدو نوداسې به ښكاريدو ګويا چه هغوى يولرګې دې (۶)
حضرت عبدالله بن الزبير رضي الله عنه خپلې شپې داسې تقسيم كړې وې چه يوه شپه ترسحر پورې به ئې صرف دقيام په حالت كښې عبادت كولو .يوه شپه صرف دركوع په حالت كښې او يوه شپه به صرف دسجدې په حالت كښې به عبادت كښې مصروف وو (۷)
وړاندې د باب ليبلغ العلم الشاهد الغائب دلاندې حضرت ابوشريح رضي الله عنه عمروبن سعيدته چه كوم نصيحت كړې وو دهغې په ذيل كښې دحضرت عبدالله بن الزبير بعض حالات راغلل. هغه هم ملاظه اوكړې شى.
حضرت عبدالله بن الزبير رضي الله عنه ديزيد دخلافت په اوائل كښې دمدينې منورې نه مكې مكرمې طرف ته راغلى وو .هم دلته دهغوى سره دجنګونو سلسله جارى وه ،تردې چه په ۶۴ هجرى كښې د يزيد انتقال اوشو اوس دحضرت عبدالله بن الزبير رضي الله عنه په لاس خلقو بيعت اوكړو، نودشام لرې علاقې نه بغير باقى ټولو ملكونو كښې دحضرت عبدالله بن الزبير رضي الله عنه خلافت قائم شو
دټولو نه مخكښې مروان بن الحكم بغاوت اوكړو او دشام په علا قه باندې ئې قبضه اوكړه اوبيا په مصر باندې قابض شو .دې نه پس دمروان انتقال اوشواو عبدالملک بن مروان مسَر

۱) سير اعلام النبلاء (ج ۳ ص ۳۷۱). وتهذيب الاسماء واللغات(ج ۱ ص ۲۶۶)_
۲) سير اعلام النبلاء (ج ۳ ص ۳۷۱)_
۳) سيراعلام النبلاء (ج ۳ ص ۳۶۷)_
۴) حواله بالا)_
۵) سير اعلام النبلاء (ج ۳ ص ۳۶۸)-
۶) حواله بالا)_
۷) سير اعلام النبلاء (ج ۳ ص ۳۶۹)_

شو اوپیش قدمی یې اوکړه.حتی چه حجاج بن یوسف دمکې مکرمې شدید محاصره اوکړه.په بیت الله شریف باندې نې دمنجنیق په ذریعه حمله اوکړه.په دغه موقع باندې حضرت عبدالله بن الزبیر رضی الله عنهما په ډیره بې جګړې سره اوجنګیدو.حتی چه په ۱۷ جمادی الاولی ۷۳ هجری کښې شهید شو [1] والحدیث ذوشجون.

حضرت عبدالله بن الزبیر رضی الله عنهما دنبی کریم ﷺ نه علاوه دخپل پلار حضرت زبیربن العوام. سفیان بن ابی زهیر.حضرت عثمان بن عفان.حضرت علی بن ابی طالب.حضرت عمربن الخطاب.دخپل نیکه حضرت ابوبکرالصدیق اودخپلې ترور حضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت کوی ددوی نه روایت کونکو کښې ثابت بنانی.ابوالشعثاء جابربن زید.ابو ذبیان خلیفة بن کعب تمیمی.عامربن عبدالله بن الزبیر.عبادبن عبدالله بن الزبیر.عامربن شراحیل شعبی.عروة بن الزبیر.عمروبن دینار.ابوالزبیرمکی.ابواسحاق سبیعی.هشام بن عروة او فاطمة بنت المنذر بن الزبیر رحمهم الله وغیره ډیر حضرات دی.[2]

دحضرت عبدالله بن الزبیر رضی الله عنهما نه تقریبا درې دیرش حدیثونه مروی دی.په دې کښې متفق علیه صرف یو حدیث دې.بله دا چه امام بخاری رحمه الله په شپږ حدیثونو کښې او امام مسلم رحمه الله په دوه حدیثونو کښې متفرد دی [3]

حضرت عبدالله بن الزبیر رضی الله عنهما په عبادله اربعه کښې یو دې،د عبادله اربعه تفصیل مونږ د بدء الوحی دڅلورم حدیث دلاندې دحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما په حالاتو کښې ذکر کړی دی [4] رضی الله تعالی عنه وارضاه

⑤ **حضرت زبیر بن العوام رضی الله عنه:** دوی حواری رسول الله ﷺ حضرت زبیربن العوام بن خویلد بن اسد بن عبدالعزی بن قصی قرشی اسدی مدنی رضی الله عنه دی.ابوعبدالله ددوی کنیت دې [5] حضرت زبیر رضی الله عنه دنبی کریم ﷺ دترور حضرت صفیه رضی الله عنها خوی دې [6] دحضرت خدیجه رضی الله عنها وراره دې [7] حضرت زبیر رضی الله عنه بالکل دابتداء نه مشرف باسلام شوې وو.بلکه هغوی څلورم یا پنځم کس وو [8]

---

[1] د تفصیل دپاره اوګورئ الکامل لابن الاثیر(ج ۳ ص ۲۵۹......۳۵۰). وتهذیب الاسماء واللغات (ج ۱ ص ۲۶۷)، والاصابة (ج ۲ ص ۳۱۱)_

[2] دشیوخ اوتلامذه دتفصیل دپاره اوګورئ تهذیب الکمال (ج ١٤ ص ۵۰۹و۵۱۰). وسیراعلام النبلاء (ج ۱ ص ۳٦٤)_

[3] اوګورئ سیر اعلام النبلاء (ج ۳ ص ۳٦۳)،وخلاصة الخزرجی (ص ۱۹۷)_

[4] اوګورئ کشف الباری (ج ۱ ص ٤۳٦)_

[5] تهذیب الکمال (ج ۹ ص ۳۱۹و۳۲۰)_

[6] تهذیب الاسماء واللغات (ج ۱ ص ۱۹٤)_

[7] زوجته خدیجة بنت خویلد عمتی قاله الزبیر رضی الله عنه. انظر تهذیب الکمال (ج ۹ ص ۳۲۵)_

[8] تهذیب الاسماء واللغات (ج ۱ ص ۱۹٤)_

دنبی کریم ﷺ د دفاع دپاره دتولو نه اول توره راويستونکي هم دوي وو. يو خل دا افواه اوچته شوه چه نبی کریم ﷺ دشمنانو گرفتار کړو. حضرت زبير رضي الله عنه فورا توره راوويستله اوهم په دې حال کښې اووتو او په تلاش تلاش کښې نبی کریم ﷺ ته اورسيدو. نبی ﷺ چه کله دوی په دې حال کښې اوليدل نود وجې یې تپوس اوکړو. هغوی ټول صورتحال بيان کړو. نبی کریم ﷺ د هغوی اودهغوی دتورې دپاره دعااوفرمائيله. هغه وخت ددوی عمر صرف دولس کاله وو (١)

حضرت زبير رضي الله عنه ته اسلام راوړلونه پس ډيرتکاليف اورسيدل. دهغوی تره به دهغوی نه پوړ راتاو کړو او رازوړند به یې کړو اوبيا د لاندې نه به یې اور بل کړو او دهغې لوګی به ورکولو، ليکن حضرت زبير رضي الله عنه چه دعزم نه پوخ وو. دا به یې وئيل لااكفرابدا. (٢)

هم داشان حضرت زبير رضي الله عنه هغه دشپږو اصحاب شوری نه وو چه دهغوی نه يوکس حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت دپاره منتخب کړې وو او فرمائيلې وو چه داهغه حضرات دی چه دچا نه نبی کریم ﷺ تر آخر وخت پورې راضی وو. (٣)

حضرت زبير رضي الله عنه دحبشې طرف ته دواړه هجرتونه کړی دی. ليکن هلته ډير وخت ايسار نشو. بيا مدينې طرف ته یې هجرت اوکړو. (٤)

په مکه مکرمه کښې نبی کریم ﷺ دوی او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه پخپل مينځ کښې ورونړه جوړ کړې وو. (٥) او چه کله مدينې منورې ته هجرت یې اوکړو نو هلته دحضرت سلمه بن سلامه رضي الله عنه سره یې د مواخات رشته قائمه کړه. (٦)

دحضرت زبير رضي الله عنه فدائی کارونو کتلوپه وجه نبی کریم ﷺ فرمائيلی وو فداك ابى و امى. (٧)
نبی ﷺ هم دغه شان دحضرت سعدبن وقاص رضي الله عنه په حق کښې هم ارشادفرمائيلې وو. (٨)

نبی کریم ﷺ دبنی قريظه خبر راوړلو په سلسله کښې تپوس کړې وو من ياتينا بخبرالقوم؟ نبی ﷺ هم دا شان درې خله تپوس اوکړو، درې واړه خله حضرت زبير رضي الله عنه خپل نوم پيش کړو، نبی ﷺ خوشاله شو او وې فرمائيل ان لكل نبی حواريا وحواري الزبير. (٩)

---

(١) سير اعلام النبلاء (ج ١ ص ٤١)_
(٢) تهذيب الكمال (ج ٩ ص ٣٢١)_
(٣) تهذيب الاسماء واللغات (ج ١ ص ١٩٤)_
(٤) الطبقات الكبرى لابن سعد (ج ٣ ص ١٠٢)_
(٥) انظر الطبقات (ج ٣ ص ١٠٢)، وقيل : آخى بينه وبين طلحة. كما في الطبقات)_
(٦) تهذيب الاسماء (ج ١ ص ١٩٤)، وقيل: آخى بينه وبين كعب بن مالك. انظر الطبقات (ج ٣ ص ١٠٢)_
(٧) صحيح البخارى (ج ١ ص ٥٢٧) كتاب فضائل اصحاب النبى ﷺ، باب مناقب الزبير بن العوام رضي الله عنه، رقم (٣٧٢٠)_
(٨) اوګورئ صحيح البخارى (ج ١ ص ٥٢٧) كتاب فضائل اصحاب النبى ﷺ، باب مناقب سعد بن ابى وقاص الزهرى رضي الله عنه، رقم (٣٧٢٥)_
(٩) سنن ابن ماجه، المقدمة، باب فضائل اصحاب رسول الله ﷺ، فضل الزبير رضي الله عنه، رقم (١٢٢)_

حضرت عثمان ﷺ ته خلقو عرض اوكړو چه تاسو حضرت زبير خپل خليفه جوړ كړئ نو حضرت عثمان ﷺ اوفرمائيل اما والذى نفسى بيده، انه لخيرهم ما علمت، وان كان لاحبهم الى رسول الله ﷺ.[1] يعنى په هغه ذات قسم چه دچا په قبضه كښې زما خان دې، زما د علم مطابق هغه د دې ټولو نه افضل دې اوهغه د الله د رسول ﷺ په نزد دټولو نه محبوب وو

حضرت زبير ﷺ د بدر اواحد سره سره د نبى كريم ﷺ ټولو غزواتو كښې شريک وو، په غزواتو كښې به داسې بهادرئ سره جنګيدو چه دهغوى دجسم يو حصه هم د زخم نه خالى نه وه[2] حضرت حسان ﷺ د حضرت زبير ﷺ په تعريف كښې فرمائى

فكم كربة ذب الزبير بسيفه عن المصطفى والله يعطى فيجزل

فما مثله فيهم ولا كان قبله وليس يكون الدهر مادام يذبل

ثناؤك خير من فعال معاشر وفعلك يا ابن الهاشمية افضل[3]

(څومره اذيتونه دى چه زبير دخپلې تورې په ذريعه د نبى كريم ﷺ نه لرې كړل. الله تعالى به ددې صله وركوى او ښه به وركوى، ددوى په شان نه په دې خلقو كښې شته اونه دهغوى په وړاندې خلقو كښې ووا و دا زمانه به تيريږى ليكن څوک به دهغوى په شان نه وى، دډيرو خلقو دعملى كارونو په مقابله كښې ستا دژبې تعريف بهتر دې او اې ابن الهاشميه ستاسو عملى كار خو دټولو نه افضل دې)

دحضرت زبير ﷺ نه باوجود د طول صحبت نه زيات حديثونه مروى نه دى. دحضرت عبدالله بن الزبير ﷺ نه چه كله ددې متعلق تپوس اوكړې شو نو وې فرمائيل

يا بنى، كانت عندى امك، وعند رسول الله ﷺ خالتك عائشة، وبينى وبينه من القرابة والرحم ما قد علمت، وعمتى ام حبيبة بنت اسد جدته، وعمته امى، وامه آمنة بنت وهب بن عبد مناف، وجدتى هالة بنت اهيب بن عبد مناف، وزوجته خديجة بنت خويلد عمتى، ولقد نلت من صحابته افضل ما نال احد، ولكنى سمعته يقول: من قال على مالم اقل تبوا مقعده من النار فلا احب ان احدث عنه.[4]

يعنى هغوى اوفرمائيل چه اې زما خويه ما سره ستا مور وه، او دنبى كريم ﷺ سره ستا ترور عائشه وه او ماته د نبى ﷺ سره چه كومه قرابت او رشته دارى ده هغه تاته معلومه ده، زما ترور ام حبيبه بنت اسد دهغوى نيا ده. دهغوى ترور زما مور ده، دهغوى مور آمنه بنت وهب بن عبد مناف ده او زما نيا هاله بنت اهيب بن عبد مناف ده. دهغوى بى بى خديجه بنت خويلد زما ترور ده، دهغوى په اصحابو كښې چا چه دهغوى نه څه حاصل كړل ما دټولو نه

[1] صحيح البخارى (ج ۱ ص ۵۲۷). كتاب فضائل اصحاب النبى ﷺ. باب مناقب الزبير بن العوام ﷺ. رقم (۳۷۱۷)_

[2] سير اعلام النبلاء (ج ۱ ص ۵۲). وتهذيب الاسماء (ج ۱ ص ۱۹۴)_

[3] تهذيب الكمال (ج ۹ ص ۳۲۲)_

[4] تهذيب الكمال (ج ۹ ص ۳۲۵و ۳۲۶)_

بهتر حاصل كړل. ليكن ما د نبي كريم ﷺ نه اوريدلي دي فرمائي د كوم كس چه په ما باندې داسې خبره جوړه كړي چه ما نوي ونيلې نو هغه دې خپل ټهكانه جهنم كښې جوړ كړي خكه زه دا نه غواړم چه ده نبي كريم ﷺ نه زيات حديثونه بيان كړم

دحضرت زبير رضي الله عنه نه تقريبا اته ديرش حديثونه مروي دي. په هغې كښې متفق عليه دوه دي. او اوه احاديثو كښې امام بخاري رحمه الله متفرد دي [1]

حضرت زبير رضي الله عنه د جمل په واقعه كښې د حضرت عائشې رضي الله عنها د طرفه شريك شوې وو. ليكن حضرت علي رضي الله عنه هغوى ته يو حديث ياد كړو. چه په دې باندې هغوى هلته واپس شول [2] په لاره كښې عمروبن جرموز نومې بدبخت او دهغې ملګرو حضرت زبير رضي الله عنه شهيد كړل [3] دا د سن ۳۶ هجري واقعه ده [4]

دقتل نه پس ابن جرموز په دې خيال حضرت علي رضي الله عنه ته راغلو چه هغوى به ددې كارنامې نه خوشاله شي. ليكن حضرت علي رضي الله عنه اوفرمائيل ليدخل قاتل الزبير النار [5]

ددې نه پس ابن جرموز ته سكون ملاؤ نه شو. تردې چه دحضرت عبدالله بن الزبير رضي الله عنه په دور خلافت كښې دې دهغوى ګورنر مصعب بن الزبير ته راغلو او دخپل خان ګرفتارى يې پيش كړل او وې وئيل چه ما نه قصاص واخله. مصعب حضرت عبدالله بن الزبير ته اوليكل. هغوى خواب وركړو چه زه د بنوتميم يو اعرابى نه د زبير قصاص څنګه واخلم؟ هرګز نه. بلكه د هغوى دخپلو د تسمو برابرهم هغه نه ګنړم. دا فورا پريګده [6]

نو دې پريخودې شو. دې د هلته نه يو اوچت محل ته لاړو اوخودكشي يې اوكړه. ونيلې شي چه هغه په دې قتل باندې ډيرپريشان وو. ولې چه هغه ته به ويرونكې خوبونه راتلل [7]

حضرت زبير دنبي كريم ﷺ نه روايت كوي. او دهغوى نه روايت كونكو كښې حضرت عبدالله بن الزبير. مالك بن اوس بن الحدثان. عبدالله بن عامر. حضرت حسن بصري. مسلم بن جندب. ميمون بن مهران. نافع بن جبيربن مطعم. ابو حروالمازني رحمهم الله وغيره دي [8]

---

[1] سير اعلام النبلاء (ج ۱ ص ۶۷) وخلاصة الخزرجي (ص ۱۲۱)_

[2] عن ابي جروالمازني قال: شهدت عليا والزبير حين توافقا. فقال له علي: يا زبير. انشدك الله اسمعت رسول الله ﷺ يقول: انك تقاتل عليا وانت ظالم له؟ قال: نعم. ولم اذكر ذلك الا في موقفي هذا. ثم انصرف. رواه ابو يعلى. انظر المطالب العالية (ج ٤ ص۳۰۳). بقية كتاب الفتن. باب وقعة الجمل. رقم (٤٤٧٦)

[3] اوګورئ سير اعلام النبلاء (ج ۱ ص ۶۰و۶۱). وتهذيب الكمال (ج ۹ ص ۳۲۶و ۳۲۷)_

[4] سيراعلام النبلاء (ج ۱ ص ٦٤)_

[5] تهذيب الكمال (ج ۹ ص ۳۲۸)_

[6] سير اعلام النبلاء (ج ۱ ص ٦٤)_

[7] حواله بالا. وتهذيب الكمال (ج ۹ ص ۳۲۸و۳۲۹)_

[8] اوګورئ تهذيب الكمال (ج ۹ ص ۳۲۰)_

حضرت زبير ﷺ په جمادى الاولى يا په رجب ۳۲ هجرى كښې شهيد شول (۱)

رضى الله تعالى عنه وارضاه

**اسنادى لطائف** په دې سند كښې دوه لطائف دى

يو دا چه په دې سند كښې دوه تابعى دى. جامع بن شداد محاربى او عامربن عبدالله الزبير او دوه صحابيان دى حضرت عبدالله بن الزبير او حضرت زبيربن العوام ﷺ

دا سند اگرچه سداسى دې. يعنى تر نبى كريم ﷺپورې شپگ واسطې دى ليكن معنى رباعى دې. ولې چه دوه تابعى هم ديوې طبقې كيدلوپه وجه گويا يو واسطه ده. هم دغه شان دوه صحابه ديوې طبقې كيدلو په وجه يو واسطه ده. والله اعلم.

دويمه لطيفه دا ده چه په دې كښې د رواية الابناء عن الآباء بخصوص رواية الاب من الجد خصوصيت دې (۲)

**قوله: قال: قلت للزبير: انى لا اسمعك تحدث عن رسول الله ﷺ كما يحدث فلان وفلان**: حضرت عبدالله بن الزبير ﷺ فرمانى چه ما خپل پلار حضرت زبير ته عرض اوكړو چه زه تاسو ته دنبى كريم ﷺ نه روايت كونكې نه اوورم. څنگه چه فلان فلان صحابى د نبى كريم ﷺ نه كثرت سره روايت كوى

د سنن ابن ماجه او مسند احمد په روايت كښې دحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ نوم تصريح هم موجود دى (۳) يعنى څنگه چه حضرت ابن مسعود او فلان فلان حضرات روايت كوى داسې تاسوهم كثرت سره روايت ولې نه كوئ؟

**قوله: قال: اما انى لم افارقه**: وې فرمائيل. واوره زه دنبى ﷺ نه جدا نه وم مطلب دا دې چه د روايت نه بيانولو منشا دا نه ده چه ما ته دنبى كريم ﷺ په صحبت كښې كثرت سره اوسيدلو موقع ملاو نشو. ما د نبى ﷺ نه حديثونه نه دى اوريدلى. بلكه زه خو د نبى ﷺ ديو ارشاد دخوف د وجې نه احتياطا حديث نه بيانوم او هغه دنبى ﷺ ارشاد دې

**من كذب على فليتبوأ مقعده من النار.**

معلومه شوه چه حضرت زبير ﷺ او دهغوى په شان نور صحابه د احتياط د وجې نه به حديث نه بيانول. هغوى ته دا خيال وو چه چرته په نقل كښې كمې بيشې اونه شى

او كومو حضراتو صحابه كرامو چه حديثونه بيان كړى دى يا خو هغوى ته په خپل ځان باندې وثوق او يقين وو چه څه هم هغوى بيانى پورا پورا بغير دڅه كمې زياتى نه بيانى او يا يې

(۱) اوگورئ تهذيب الكمال (ج ۹ ص ۳۲۹). وسير اعلام النبلاء (ج ۱ ص ۶۴)_

(۲) اوگورئ فتح البارى (ج ۱ ص ۲۰۰)_

(۳) سنن ابن ماجه. المقدمة. باب التغليظ فى تعمد الكذب على رسول الله ﷺ. رقم (۳۶). ومسند احمد (ج ۱ ص ۱۶۵) مسند الزبير بن العوام ﷺ_

خکه بیانولو چه دهغوی عمرونه طویل شول، دهغوی نه سوالات اوکړې شول او هغوی ته مجبورا د جواب نوبت راغې (١) والله اعلم.

بیا چه حضرت زبیر ﷜ دلته اوفرمائیل اما انی لم افارقه د ابن ماجه او مسند احمد په روایت کښې ددې نه پس منذ اسلمت هم مذکور دې (٢) ددې ظاهری مطلب خو دا جوړیږی چه کله نه ما اسلام راوړې دې د هغې وخت نه کله هم دنبی ﷺ نه جدا شوې نه یم. لیکن دا ظاهری مطلب مقصود نه دې، ولې چه حضرت زبیر ﷜ د حبشې طرف ته هجرتونه کړی وو. هم دغه شان کله چه نبی کریم ﷺ د مکې مکرمې نه هجرت اوکړو او مدینې منورې ته تشریف ویوړو نو هغه وخت هم حضرت زبیر ﷜ نبی ﷺ سره نه وو لهذا ددې واضح مطلب دا دې چه ما ته په عام احوالوکښې دنبی کریم ﷺ صحبت نصیب شوې دې، زه دنبی ﷺ نه جدانه یم پاتې شوې (٣)

**قوله: ولکن سمعته یقول: من کذب علی فلیتبوا مقعده من النار:** البته ما د نبی ﷺ نه اوریدلی دی، نبی ﷺ فرمائیلی دی چه کوم سړې په ما باندې دروغ وائي هغه ته پکار دې چه په جهنم کښې خپله ټهکانه جوړه کړی.

دبخاری شریف دا روایت د ابوالولید عن شعبة د طریق نه مروی دې، چه په دې کښې د من کذب علی سره د متعمدا قید نه دې، هم دا شان دا روایت اسماعیلی د غندر عن شعبة د طریق نه هم نقل کړې دې، چه په هغې کښې دا قید نه دې (٤)

نیز زبیر بن بکار په خپل (کتاب النسب) کښې خپل طریق سره چه کوم روایت نقل کړې دې په هغې کښې هم دا قید موجود نه دې (٥) هم دا شان امام دارمی ﷫ هم یو دوه طریقو سره دا روایت نقل کړې دې، چه دهغې الفاظ دا دی من حدث عنی کذبا په دې کښې هم د تعمد قید موجود نه دې (٦)

هرکله چې ددې روایاتو په مقابله کښې ابن ماجه د غندر عن شعبة د طریق نه روایت نقل کړې دې، چه په هغې کښې د متعمدا اضافه هم شته (٧) نیز اسماعیلی د معاذ عن شعبة د طریق نه حدیث ذکر کړې دې، په هغې کښې هم دا قید موجود دې (٨)

---

(١) فتح الباری (ج ١ ص ٢٠١)_
(٢) مسند احمد (ج ١ ص ١٦٥)، وسنن ابن ماجه، المقدمة، باب التغلیظ فی تعمد الکذب علی رسول الله ﷺ، رقم (٣٦)_
(٣) فتح الباری (ج ١ ص ٢٠٠)، وعمدة القاری (ج ٢ ص ١٥١)_
(٤) فتح الباری (ج ١ ص ٢٠٠)_
(٥) حواله بالا)_
(٦) سنن الدارمی (ج ١ ص ٨٨) المقدمة، باب اتقاء الحدیث عن النبی ﷺ والتثبت فیه، رقم (٢٣٣)_
(٧) سنن ابن ماجه، المقدمة، باب التغلیظ فی تعمد الکذب علی رسول الله ﷺ، رقم (٣٦)_
(٨) فتح الباری (ج ١ ص ٢٠١)_

حاصل دا دې چه په اکثر طرق او رواياتو کښې د تعمد قيد نشته. او په بعضې طرق کښې دا قيد موجود دې

**ايا د کذب په تعريف کښې د عمد قيد ملحوظ دې؟** په دې خبره کښې اختلاف شوې دې چه په کذب کښې د عمداً قيد لازمی دې. يا دا چه کذب عام دې که عمداً وی يا عمداً نه وی؟

صحيح او مختار قول د اهل سنت دې چه کذب: **الاخبار بالشيئ على خلاف ما هو عليه سواء كان عمداً اوخطاءً** ته وائی. او دحضرت زبير ﷺ ددې روايت په اکثر طرق کښې د عمداً اضافه نشته [1] دحديث شريف اطلاق خو عامد اوخاطی او ساهی او ناسی ټولوته شامل دې. البته په دې باندې اجماع ده چه دعامد نه علاوه باقی خلقو باندې گناه نشته [2]

دلته سوال پيدا کيږی چه که د خطا او نسيان په حالت کښې گناه نه وی نوبيا حضرت زبير ﷺ ته د مذکوره وعيدخوف ولې وو؟

ددې جواب دا دې چه اصل کښې هغوی ته د اکثارفی الرواية نه خوف محسوسيدو چه چرته هغوی لاشعوری توگه باندې په غلطئ کښې واقع نشی. اگرچه مخطئ گناه گار نه وی ليکن چونکه اکثار مظنه خطا ده. ځکه به هغې دا کثار د وجې نه گناه گار کيدې شی اوکله چه يو ثقه کس خطا غلط روايت بيان کی نودهغې په نقل باندې د وثوق دوجې نه به خلق هميشه هميشه د پاره به په هغې باندې به عمل کوی. نوهغه ثقه کس ددا سې عمل سبب به اوگرځی کوم چه د شارع نه ثابت نوی.

لهذا کوم سړی ته چه دا کثار د وجې نه د وقوع فی الخطا انديشه وی نو په داسې کس باندې د تعمد اکثارپه صورت کښې اطمينان نشی کيدې. هم دغه وجې نه حضرت زبير ﷺ او بعضې نورو حضراتو صحابه کرامو ﷺ دا کثار نه احتراز اوکړو [3] والله تعالیٰ اعلم

**قوله:** فليتبوأ مقعده من النار: نو هغه ته پکار دی چه خپله ټهکانه دې په جهنم کښې جوړه کړی.

دا صيغه اگرچه د امر ده خو ددې معنی د خبر ده، گويا نبی کريم ﷺ دا فرمائی چه کوم کس ماطرف ته دروغه خبره منسوب کړی الله تعالی به دهغه ټهکانه جهنم راگرځوی

هم دغه شان ددې معنی امکان هم شته چه ځنگه دې بالقصد دکذب ارتکاب کړې دې نو ددې نتيجه دا دې چه بالقصد خپل ځان دپاره ټهکانه هم تلاش کړی

نيز په معنی د دعا هم مراد کيدې شی. گويا نبی کريم ﷺ ددې دپاره بد دعا فرمائی چه چا د کذب علی النبی ﷺ دفعل شنيع ارتکاب اوکړو نو الله تعالی به هغه ته په جهنم کښې ټهکانه ورکوی [4]

---

[1] اوگورئ فتح البارى (ج ١ ص ٢٠١)_
[2] فتح البارى (ج ١ ص ٢٠١). وعمدة القارى (ج ٢ ص ١٥٢)_
[3] حواله جات بالا)_
[4] اوگورئ فتح البارى (ج ١ ص ٢٠١)، وعمدة القارى (ج ٢ ص ١٥١)_

[۱۰۸] حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ قَالَ أَنَسٌ (۱) إِنَّهُ لَيَمْنَعُنِي أَنْ أُحَدِّثَكُمْ حَدِيثًا كَثِيرًا أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «مَنْ تَعَمَّدَ عَلَيَّ كَذِبًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ»

## رجال الحدیث

① **ابو معمر** دوی ابومعمر عبدالله بن عمروبن ابی الحجاج منقری بصری دي.ددوی حالات په هم کتاب العلم کښې د باب قول النبی ﷺ: اللهم علمه الکتاب لاندې تیرشول (۲)

② **عبدالوارث** دوی ابو عبیده عبدالوارث بن سعید بن ذکوان تمیمی عنبری تنوری بصری رحمه الله دي. ددوی حالات هم په کتاب العلم کښې د باب قول النبی ﷺ: اللهم علمه الکتاب لاندې تیر شول.(۳)

③ **عبدالعزیز** دوی عبدالعزیزبن صهیب بنانی بصری رحمه الله دي.ددوی مختصر حالات په کتاب الایمان، باب حب الرسول ﷺ من الایمان لاندې تیر شول (۴)

④ **حضرت انس** رضي الله عنه: دحضرت انس رضي الله عنه حالات د کتاب الایمان، باب من الایمان ان یحب لاخیه ما یحب لنفسه لاندې تیر شول.(۵)

**قوله: انه لیمنعنی ان احدثکم حدیثا کثیرا ان النبی ﷺ قال: من تعمد علی کذبا فلیتبوا مقعده من النار:** زه چه تاسو ته ډیر حدیثونه نه بیانوم په دې سلسله کښې ما لره مانع دا دې چه نبی کریم ﷺ ارشاد اوفرمائیل چه کوم کس ما باندې قصداً دروغ اووائی هغه د خپله تهکانه په جهنم کښې جوړه کړی

انه کښې ضمیر شان دي.

یمنع دوه مفعوله غواړی، ددې یو مفعول خوپه لیمنعنی کښې ضمیرمتکلم دې او دویم مفعول ان احدثکم حدیثا کثیرا دي. بیا (حدیثا) چونکه جنس دې خکه ددې صفت (کثیرا) راوړل صحیح دي.اودا د(احدثکم)مفعول مطلق دي.مخکښې (ان النبی ﷺ قال....الخ)د (یمنع)فاعل دي.(۶)

---

(۱) قوله: قال انس رضي الله عنه: الحدیث. اخرجه مسلم فی صحیحه، فی المقدمة، باب تغلیظ الکذب علی رسول الله ﷺ رقم (۳). والترمذی فی جامعه،فی ابواب العلم،باب ما جاءفی تعظیم الکذب علی رسول الله ﷺ رقم(۲۶۶۱).وابن ماجه فی سننه، فی المقدمة، باب التغلیظ فی تعمد الکذب علی رسول الله ﷺ،رقم (۳۲)

(۲) کشف الباری (ج ۳ ص ۳۰۸)_

(۳) کشف الباری (ج ۳ ص ۳۰۹)_

(۴) کشف الباری (ج ۲ ص ۱۲)_

(۵) کشف الباری (ج ۲ ص ٤)_

(۶) اوگورئ عمدة القاری (ج ۲ ص ۱۵۲)_

دحضرت انس ﷺ ارشاد مطلب واضح دي.هغه دا چه زه كثرت سره احاديث بيانولو نه خكه اجتناب كوم چه نبى كريم ﷺ وعيدارشاد فرمائيلې دې.نو د كذب على النبى ﷺدوعيد د ويرې نه زه كثرت سره احاديث نه بيانوم

دې نه معلوميږی چه كذب مطلقا د خلاف واقعه خبرې ته وانيلې شى.نيز دا خو يقينى خبره ده چه صحابه كرام د نبى كريم ﷺ طرف ته څه غلطه خبره منسوبولې نشى. اوس چه هغوى د كذب على النبى ﷺ نه ويريدل او دكوم ويرې د وجې نه به هغوى كثرت سره احاديث نه بيانول هغه صرف دد دې وجې نه چه دهغوى په نزد كذب خلاف واقعه خبرې ته وانى. كه عمدا اوكړې شى يا سهوا .والله اعلم.

**يو اشكال او دهغې جواب** : دلته حضرت انس ﷺ فرمائى چه زه زيات حديثونه نه بيانوم ولې چه ما ته دهغې وعيد ويره ده. او دحضرت انس ﷺ شمار په مكثرينو صحابو كښې دې.(١) ددې جواب دا دې چه په حقيقت كښې حضرت انس ﷺ شروع كښې به زيات حديثونه نه بيانول. ليكن هغوى له الله تعالى لوئې عمر وركړې وو. خلقو دهغوى نه تپوسونه اوكړل. خكه هغوى لره د كتمان ګنجائش نه وو. خكه دې نه پس د سوالاتو مطابق هغوى حديثونه بيان كړل.(٢)

داهم ممكن دې چه هغوى څه بيان كړل هغه د هغه احاديثو په مقابله كښې څه چه هغوى دنبى كريم ﷺ نه اوريدلى وو ډير قليل وى.كه د ټولو روايت به يې بيان كړې وې نودهغوى د روايت كړى احاديثوتعداد د موجوده رواياتو په مقابله كښې ډير زيات وو.(٣) والله سبحانه وتعالى اعلم

[۱۰۹]حَدَّثَنَا مَكِّى بْنُ إِبْرَاهِيمَ قَالَ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ أَبِي عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ(٤) قَالَ سَمِعْتُ النَّبِى صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «مَنْ يَقُلْ عَلَى مَالَمْ أَقُلْ فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ»

---

(١) د مكثرينو صحابه نه دعلماء اصول حديث په نزد هغه حضرات مراد دى چه دهغوى روايتونه د يوزر نه متجاوز وى. د هغوى ترتيب او دحديثونو تعداد درج ذيل دې (١) حضرت ابوهريرة [٥٣٧٤] (٢) حضرت عبدالله بن عمر [٢٦٣٠] (٣) حضرت انس بن مالك [١٢٨٦] (٤) حضرت عائشه صديقه [١٢١٠] (٥) حضرت عبدالله بن عباس [١۶۶٠] (۶) حضرت جابر بن عبدالله [١٥٤٠] (٧) حضرت ابو سعيد خدرى ﷺ [١١٧٠]. اوګورئ فتح المغيث للعراقى (ص ٣٥٠). وفتح المغيث للسخاوى (ج ٤ ص ١٠٢). وظفر الامانى (ص ٥٤٣)_

(٢) فتح البارى (ج ١ ص ٢٠١)_

(٣) فتح البارى (ج ١ ص ٢٠١)_

(٤) قوله: عن سلمة هو ابن الاكوع. والحديث لم يخرجه احد من اصحاب الاصول الستة سوى البخارى رحمه الله

## رجال الحدیث

① **مکی بن ابراهیم** دوي مشهور امام حدیث مکی بن ابراهیم بن تمیمی حنظلی بلخی رحمه الله دی، ددوی حالات هم په کتاب العلم کښې د باب من اجاب الفتیا باشارة الید والراس لاندې تیر شول (۱)

② **یزید بن ابی عبید** دوی مشهور تابعی بزرګ د حضرت سلمه بن الاکوع رضی الله عنه مولی ابو خالد یزید بن ابی عبید اسلمی حجازی رحمه الله دی (۲)

دوی دخپل مولی حضرت سلمه بن الاکوع رضی الله عنه نه علاوه دحضرت عمیر مولی ابی اللحم رضی الله عنه او د هشام بن عروه رحمه الله نه روایت کوی.

ددوی نه روایت کونکو کښې بکیربن الاشج. یحي بن سعید القطان.حاتم بن اسماعیل. مغیره بن عبدالرحمن مخزومی.مکی بن ابراهیم او ابوعاصم النبیل رحمهم الله وغیره دی (۳)

ابن سعد رحمه الله فرمائی (وکان ثقة کثیرالحدیث) (۴)

امام ابو داؤد رحمه الله فرمائی (ثقة) (۵)

امام یحي بن معین رحمه الله فرمائی (ثقة) (۶)

امام عجلی رحمه الله فرمائی (حجازی تابعی ثقة) (۷)

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی (من بقایا التابعین الثقات) (۸)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی (ثقة) (۹)

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی (وحدیثه من عوالی البخاری الثلاثیات) (۱۰)

په ۱۴۷ هجری کښې دهغوی انتقال اوشو (۱۱) رحمه الله تعالی رحمة واسعة

---

۱) کشف الباری (ج ۳ ص ۴۱۶)_

۲) اوګورئ تهذیب الکمال (ج ۳۲ ص ۲۰۶)_

۳) دشیوخ او تلامذو تفصیل دپاره اوګورئ تهذیب الکمال (ج ۳۲ ص ۲۰۶)، وتهذیب التهذیب (ج ۱۱ ص ۳۴۹)_

۴) تهذیب التهذیب (ج ۱۱ ص ۳۴۹)_

۵) تهذیب الکمال (ج ۳۲ ص ۲۰۶)، و سیر اعلام النبلاء (ج ۶ ص ۲۰۶)_

۶) تهذیب التهذیب (ج ۱۱ ص ۳۴۹)_

۷) حواله بالا)_

۸) سیر اعلام النبلاء (ج ۶ ص ۲۰۶)_

۹) تقریب التهذیب (ص ۶۰۳) رقم (۷۷۵۴)_

۱۰) سیر اعلام النبلاء (ج ۶ ص ۲۰۶)_

۱۱) سیر اعلام النبلاء (ج ۶ ص ۲۰۶)_

(۴)حضرت سلمه بن الاكوع ﷺ دوى مشهور صحابى حضرت سلمه بن الاكوع اسلمى مدنى ﷺ دى، ددوى د پلار په نوم كښې نور هم ډير اقوال دى. او ددوى نيكه داكوع نوم سنان بن عبدالله بن قشير دې (١)

حضرت سلمه ﷺ دنبى كريم ﷺ نه علاوه دحضرت ابوبكر . حضرت عمر .حضرت عثمان او دحضرت طلحة بن عبيد الله ﷺ نه روايت كوى.

ددوى نه روايت كونكو كښې اياس بن سلمة بن الاكوع .بريده بن سفيان. الحسن بن محمد بن الحنفيه .زيدبن اسلم .سفيان بن فروه .عبدالرحمن بن عبدالله بن كعب بن مالک. عطاء مولى السائب بن يزيد .ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف اويزيدبن ابى عبيده ﷺ وغيره دى.(٢)

حضرت سلمه ﷺ په بيعت الرضوان (غزوه حديبيه)كښې شريک وو .هغه ورځ هغوى دنبى كريم ﷺ په لاس مبارک باندې درې خله بيعت على الموت اوكړو (٣)

هغوى ډيرزيات بهادر وو .په تيراندازئ كښې به ئې زبردست مهارت لرل.(٤)يو جماعت دنبى كريم ﷺ د اوښانو غلا كولو كوشش اوكړو نو حضرت سلمه بن الاكوع ﷺ تنها دې ټول جماعت ته شكست وركړو، حالانكه هغوى پياده وو .په هغه موقع باندې نبى كريم ﷺ فرمانيلى وو (خيررجالتنا سلمة)(٥)زمونږه په پيادو كښې سلمه د ټولو نه بهتر دې

حضرت سلمة بن الاكوع ﷺ دنبى كريم ﷺ نه په كلى كښې داوسيدو اجازت مخكښې نه اخستې وو .(٦) چنانچه دحضرت عثمان ﷺ دشهادت نه پس فتنونه دبچكيدو په غرض هغوى دمدينې منورې نه په ربذه كښې سكونت اختيار كړې وو .هم هلته هغوى نكاح اوكړه. اولاد يې اوشول او د انتقال نه څه موده مخكښې مدينې منورې ته واپس راغلل (٧)

دحضرت سلمة بن الاكوع ﷺ نه تقريبا اوه اويا (۷۷) حديثونه مروى دى .په هغوى كښې متفق عليه شپاړلس دى، امام بخارى رحمه الله په پنځو حديثونوكښې او امام مسلم رحمه الله په نهه حديثونو كښې متفرد دى.(٨)

---

(١) اوګورئ تهذيب الكمال (ج ١١ ص ٣٠١)، وتهذيب الاسماء واللغات (ج ١ ص ٢٢٩)_

(٢) دشيوخ او تلامذو تفصيل دپاره اوګورئ تهذيب الكمال (ج ١١ ص ٣٠٢)_

(٣) اوګورئ تهذيب الكمال (ج ١١ ص ٣٠١)_

(٤) كان شجاعا، راميا،محسنا خيرا فاضلا. تهذيب الاسماء واللغات(ج ١ ص ٢٢٩)_

(٥) د واقعې تفصيل دپاره اوګورئ صحيح مسلم. كتاب الجهاد. باب غزوة ذى قرد وغيرها.رقم (٤٦٧٨)

(٦) عن سلمة بن الاكوع انه دخل على الحجاج. فقال: ياابن الاكوع.ارتددت على عقبيک. تعربت؟ قال: لا. ولكن رسول الله ﷺ اذن لى فى البدو. صحيح البخارى (ج ٢ ص ١٠٥٠) كتاب الفتن. باب التعرب فى الفتنة.رقم (٧٠٨٧). وانظر صحيح مسلم. كتاب المغازى.باب تحريم رجوع المهاجر الى استيطان وطنه. رقم (٤٨٢٥)، ومسند احمد (ج ٤ ص ٤٧و ٥٤)_

(٧) اوګورئ صحيح البخارى (ج ٢ ص ١٠٥٠)، كتاب الفتن.باب التعرب فى الفتنة.رقم (٧٠٨٧)_

(٨) اوګورئ تهذيب الاسماء واللغات (ج ١ ص ٢٢٩)، وخلاصة الخزرجى (ص ١٤٨)_

دحضرت سلمة بن الاكوع رضی الله عنه انتقال په ۷۴ هجری یا په ۷۴ هجری کښې اوشو. بعض حضراتو د حضرت معاویه رضی الله عنه د دور خلافت په آخر کښې دهغوی انتقال ښودلې دې (۱) رضی الله عنه وارضاه

**فائده** واضحه دې وی چه دا حدیث دامام بخاری رحمه الله دتولو نه اول ثلاثی حدیث دې دثلا ثیاتو بحث په مقدمه کښې تیر شو. چه دهغې خلاصه دا ده چه دامام بخاری رحمه الله تولونه عالی سند ثلاثی یعنی درې واسطوسره نبی کریم ﷺ ته رسیدلو والاحدیث دې په صحیح بخاری کښې د ثلا ثیاتو کل تعداد په لحاظ د سند سره دوه ویشت دې او په لحاظ د روایت سره اوولس دې. ولې چه پنځه روایات مکرر دی

دې دوه ویشتو کښې یولس روایات دامام بحاری رحمه الله عظیم شیخ مکی بن ابراهیم نه مروی دی (۲) شپږ حدیثونه دامام ابوعاصم ضحاک بن مخلد النبیل رحمه الله نه مروی دی (۳) او دا دواړه حضرات دامام ابوحنیفه رحمه الله خصوصی شاګردان دی (۴) درې روایتونه دمحمدبن عبدالله انصاری رحمه الله نه مروی دی (۵)

---

[1] اوګورئ الاصابة (ج ۲ ص ۶۷)_

[2] اوګورئ صحیح البخاری (ج ۱ ص ۲۱)، کتاب العلم، باب اثم من کذب علی النبی ﷺ. رقم (۱۰۹)، و (ج ۱ ص ۷۱) کتاب الصلاة، باب قدر کم ینبغی ان یکون بین المصلی والسترة؟ رقم (۴۹۹۷)، و (ج ۱ ص ۷۲) کتاب الصلاة، باب الصلاة الی الاسطوانة.رقم (۵۰۲)، و (ج ۱ ص ۷۹) کتاب مواقیت الصلاة، باب وقت المغرب.رقم (۵۶۱)، و (ج ۱ ص۲۶۸و ۲۶۹) کتاب الصوم، باب صیام یوم عاشوراء.رقم (۲۰۰۷)، و(ج ۱ ص ۳۰۵) کتاب الحوالات، باب ان احال دین المیت علی رجل جاز. رقم (۲۲۸۹)، و(ج ۱ ص۴۱۵) کتاب الجهاد والسیر، باب البیعة فی الحرب ان لا ینفروا، وقال بعضهم: علی الموت. رقم (۲۹۶۰)، و(ج ۱ ص۴۲۷) کتاب الجهاد والسیر، باب من رای العدو فنادی باعلی صوته: یا صباحاه حتی یسمع الناس.رقم (۳۰۴۱)، و(ج ۲ ص۶۰۵) کتاب المغازی، باب غزوة خیبر. رقم (۴۲۰۶)، و(ج ۲ ص۸۲۶) کتاب الذبائح والصید،باب آنیة المجوس والمیتة. رقم (۵۴۹۷)، و(ج ۲ ص۱۰۱۷و۱۰۱۸) کتاب الدیات،باب اذا قتل نفسه خطا فلا دیة له.رقم (۶۸۹۱). واضح شی چه دا یولس واړه روایتونه هم یوسند یعنی مکی بن ابراهیم عن یزید بن ابی عبید عن سلمة بن الاکوع دطریق نه مروی دی.)_

[3] اوګورئ صحیح البخاری (ج ۱ ص۲۵۷)، کتاب الصوم، باب اذا نوی بالنهار صوما. رقم (۱۹۲۴)، و(ج ۱ ص۳۰۶) کتاب الکفالة، باب من تکفل عن میت دینا فلیس له ان یرجع.رقم (۲۲۹۵)، و (ج ۱ ص ۳۳۶) کتاب المظالم والغضب، باب هل تکسرالدنان التی فیهاالخمر.....؟ رقم (۲۴۷۷)، و(ج ۲ ص۶۱۲) کتاب المغازی، باب بعث النبی ﷺ اسامة بن زید الی الحرقات من جهینة.رقم (۴۲۷۲)، و(ج ۲ ص۸۳۵) کتاب الاضاحی، باب ما یؤکل من لحوم الاضاحی وما یتزود منها. رقم (۵۵۶۹)، و(ج ۲ ص۱۰۷) کتاب الاحکام، باب من بایع مرتین. رقم (۷۲۰۸). واضحه ده چه دا شپږ واړه روایتونه هم د یو سند یعنی ابوعاصم الضحاک بن مخلد عن یزید بن ابی عبید عن سلمة بن الاکوع دطریق نه مروی دی.)_

[4] اوګورئ مقدمة اعلاءالسنن (ابو حنیفة واصحابه المحدثون ص۹۰و۹۱)_

[5] اوګورئ صحیح البخاری (ج ۱ ص۳۷۲) کتاب الصلح باب الصلح فی الدیة رقم (۲۷۰۳)، و(ج ۲ ص۶۴۶) کتاب التفسیر، سورة البقرة، باب)یاایهاالذین آمنوا کتب علیکم القصاص فی القتلی الحر بالحر_ الی قوله_ عذاب الیم)، رقم (۴۴۹۹)، و(ج ۲ ص۱۰۱۸) کتاب الدیات... [بقیه حاشیه په راروانه صفحه....

او دوی د امام زفر او امام ابویوسف شاگرد دی (۱) یو روایت د عصام بن خالدحمصی رحمه الله نه (۲) او یو روایت د خلاد بن یحي کوفي رحمه الله نه مروی دې (۳)
گویا دامام بخاری دوه ویش ثلاثی روایاتو کښې شل روایات دحنفی مشایخو نه مروی دی، او آخیرنئ دوه حضرات چا په حنفی علماء کښې نه دې شمار کړې
دامام ابو حنیفه رحمه الله اکثروبیشتر روایات ثلاثی دی.او هغوی کښې ثنائی روایات هم په کثرت سره شته.بلکه بعض وحدانیات هم شته (۴) هم دغه حیثیت نه بعضې حضراتو فقه حنفی وحدانی گرخولې دې.
لیکن تحقیقی خبره دا ده چه امام ابو حنیفه رحمه الله رؤیة خو تابعی دی،په روایة تابعی کیدلو کښې اختلاف دې (۵) امام ابومعشر رحمه الله د امام ابوحنیفه رحمه الله چه کوم وحدانیات جمع کړی دی دهغوی اسانید معلول دی.(۶)
دامام بخاری ثلاثیاتو بعض حضراتو داسې اهتمام کړې دې چه دهغوی مستقلا شروحات ئې لیکلې دی. صاحب کشف الظنون فرمائی چه ثلاثیات باندې محمدشاه بن الحاج حسن متوفی ۹۳۹ هجری یو لطیف شرح لیکلې دې.(۷)
هم دغه شان ملا علی قاری رحمه الله هم حاشیه لیکلې ده.(۸)
مولوی عبدالباسط قنوجی په فارسی کښې شرح لیکلې ده.(۹)
نواب صدیق حسن خان بهوپالی په اردو کښې شرح تحریرکړې ده (۱۰)

---

بقیه حاشیه د تیرمخ] باب: (السن بالسن). رقم (۶۸۹۴). واضح شی چه دا درې واړه حدیثونه محمدبن عبدالله الانصاري عن حمید عن انس د طریق نه مروی دی.ـ
(۱) اوگورئ سیر أعلام النبلاء (ج۹ ص۵۳۷)ـ
(۲) اوگورئ صحیح البخاری (ج۱ ص۵۰۲) کتاب المناقب، باب صفة النبی صلی الله علیه وسلم، رقم (۳۵۴۶) دا روایت عصام بن خالد عن حریز بن عثمان عن عبدالله بن بسر رضی الله عنه دطریق نه مروی دې)ـ
(۳) اوگورئ صحیح البخاری (ج۲ ص ۱۱۰۴) کتاب التوحید، باب (وکان عرشه علی الماء). رقم (۷۴۲۱)، دا روایت خلاد ابن یحی عن عیسی بن طهمان عن انس بن مالک رضی الله عنه دطریق نه مروی دې)ـ
(۴) اوگورئ مقدمة لامع الدراری (ج۱ ص۱۹۱) الفائدة الخامسة فی خصائص الکتاب غیر التراجم)ـ
(۵) اوگورئ ترجمان السنة (ج۱ ص۲۲۵)ـ
(۶) اوگورئ فتح المغیث (ج۳ ص ۳۴۴). والرسالة المستطرفة (ص۸۱)ـ
(۷) کشف الظنون (ج۱ ص۵۲۲)ـ
(۸) دهغې نوم تعلیقات القاري علی ثلاثیات البخاري دې. اوگورئ البضاعة المزجاة (ص ۸۸). ومقدمة لامع الدراری (ج۱ ص ۲۶۰)ـ
(۹) مقدمة لامع الدراری (ج۱ ص ۲۶۰)ـ
(۱۰) حواله بالا)ـ

**قوله: قال: سمعت النبی ﷺ یقول: من یقل علی مالم اقل فلیتبوا مقعده من النار:** حضرت سلمة بن الاکوع رضی الله عنه فرمائی چه ما نبی کریم ﷺ په دا فرمائیلو واوریدو چه کوم کس په ما باندې هغه خبره اولګوی چه ما نوی کړې هغه د خپله ټهکاه په دوزخ کښې جوړه کړی

(من یقل) په اصل کښې (من یقول) وو، شرطیت د وجې نه (یقل) شو (۱)

(مالم اقل) کښې (ما) (شیئا) په معنی دې اود (لم اقل) نه پس (شیئا) طرف ته ګرځیدو والا ضمیر محذوف دې، ګویا پورا جمله به داسې وی (من یقل علی شیئا لم اقله......) (۲)

دلته اګرچه صرف د (قول) ذکر دې، دفعل ذکر نه دې لیکن (فعل) هم په (قول) کښې داخل دې ولې چه د ممانعت په علت کښې دوانړه شریک دی، یعنی چه دکوم علت په وجه دقول نسبت ممنوع او حرام دې، بعینه هم هغه علت دفعل دممنوع کیدلو هم دې. بیا وړاندې چه دحضرت زبیر اود حضرت انس رضی الله عنهما حدیثونه تیرشول په هغوی کښې عموم دې. ولې چه په هغوی کښې (من کذب علی) یاد (من تعمد علی کذبا) الفاظ دی، چه په هغوی کښې دقول سره فعل هم داخل دې، هم دغه شان دحدیث باب نه پس دحضرت ابوهریره رضی الله عنه چه کوم حدیث راروان دې په هغې کښې هم دغه قسم عمومی الفاظ دی، لهذا که یو کار نبی کریم ﷺ نوی کړې نو دهغې په باره کښې (فعل رسول الله ﷺ) وئیل هم داسې ګناه او مستوجب وعید دې څنګه چه هغه خبره په باره کښې (قال رسول الله ﷺ) وئیل چه هغوی ﷺ ارشاد نوی فرمائیلی (۳)

**ایا روایت بالمعنی صحیح دې؟:** ددې حدیث دظاهری الفاظو نه بعضې حضراتو د روایت بالمعنی ناجائز کیدو باندې استدلال کړې دې، څنګه چه ظاهر دې.

او دمجوزینو وینا دا ده چه ددې نه د نبی کریم ﷺ په ارشاداتو کښې داسې الفاظ راوړلو ممانعت دې چه حکم بدلوی. او څومره پورې چه د روایت بالفظ تعلق دې نو ددې په غوره کیدو کښې دچا کلام نه دې (۴) والله اعلم

[۱۱۰] حَدَّثَنَا مُوسَى قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ أَبِي حَصِينٍ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ (۵) عَنِ النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم - قَالَ « تَسَمَّوْا بِاسْمِي وَلَا تَكْتَنُوا بِكُنْيَتِي، وَمَنْ

---

(۱) فتح الباری (ج۱ ص۲۰۲)_

(۲) حواله بالا)_

(۳) حواله بالا)_

(۴) حواله بالا)_

(۵) قوله: عن ابی هریرة رضی الله عنه: الحدیث. اخرجه البخاری ایضا فی صحیحه (ج۱ ص۵۰۱) کتاب المناقب. باب کنیة النبی ﷺ، رقم (۳۵۳۹). و(ج۲ ص۹۱۴) کتاب الادب. باب قول النبی ﷺ: سموا باسمی ولا تکتنوا بکنیتی. رقم (۶۱۸۸). و(ج۲ ص۹۱۵) کتاب الادب. باب من سمی.....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه..

رَآنِي فِي الْمَنَامِ فَقَدْ رَآنِي، فَإِنَّ الشَّيْطَانَ لَا يَتَمَثَّلُ فِي صُورَتِي، وَمَنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ» [۵۸۴۴]

## رجال الحدیث

① **موسی** دوی ابوسلمه موسی بن اسماعیل تبوذکی بصری رحمه الله دی. ددوی مختصر حالات په (بدءالوحی) کښې څلورم حدیث د لاندې دی[1] او لږ تفصیل سره په کتاب العلم "باب من اجاب الفتیا باشارة الید والراس" د لاندې تیرشوې دی.[2]

② **ابوعوانه** دا ابوعوانه وضاح بن عبدالله دې. د دوی حالات د "بدءالوحی" د څلورم نمبر حدیث لاندې تیرشوې دی.[3]

③ **ابوحصین** دا ابوحصین بفتح الحاء المهملة وکسر الصاد المهملة عثمان بن عاصم بن حصین _ بالتصغیر_ اسدکوفي رحمه الله دې. بعضې حضراتو د نیکه نوم یې دحصین په ځاې زید ابن کثیرخودلې دې.[4]

دوی په صحابه کرامو کښې د حضرت جابر بن سمره. عبدالله بن زبیر. عبدالله بن عباس. حضرت انس. زید بن ارقم او د حضرت ابوسعیدخدری رضي الله عنهم نه روایت کوی.[5] والله تعالیٰ اعلم.

---

بقیه حاشیه د تیرمخ] باسماء الانبیاء. رقم (۶۱۹۷). و (ج۲ ص۱۰۳۵) کتاب التعبیر. باب من رای النبی ﷺ فی المنام. رقم (۶۹۹۳). واخرجه مسلم فی المقدمة. باب تغلیظ الکذب علی رسول الله ﷺ. رقم (٤). و فی کتاب الآداب. باب النهی عن التکنی بابی القاسم وبیان ما یستحب من الاسماء. رقم (۵۵۹۷). وابوداؤد فی سننه. فی کتاب الادب.باب فی الرجل یتکنی بابی القاسم.رقم (۴۹۶۵). وابن ماجه فی سننه.فی المقدمة. باب التغلیظ فی تعمد الکذب علی رسول الله ﷺ. رقم (٣٤). وفی کتاب الادب. باب الجمع بین اسم النبی ﷺ وکنیته. رقم (۳۷۳۵). وفی کتاب تعبیر الرؤیا. باب رؤیة النبی ﷺ فی المنام. رقم (۳۹۰۱)_

[1] کشف الباری (ج۱ص۴۳۳و ٤٣٤)

[2] کشف الباری (۳ ۴۱۳)-

[3] کشف الباری (۱ ٤٣٤)-

[4] تهذیب الکمال (۱۹ ۴۰۱)-

[5] قال الحافظ رحمه الله فی تهذیب التهذیب (۸ ۱۲۸):وذکره ابن حبان فی الثقات فی اتباع التابعین فروایته عن الصحابة عند ابن حبان مرسلة.وهو الذی یظهرلی"

قال الدکتوربشارعواد معروف حفظه الله فی تعلیقاته علی تهذیب الکمال (ج۱۹ص۴۰۸)-

"بدا ذالک لابن حجر.لان ابن حبان ذکره فی طبقة اتباع التابعین زعم ان ابن حبان لم یتکلم فیه بما یشیر الی ذالک.و لم نقف علی ای قول للمتقدمین ینفی روایته عن الصحابة الا قول یحی ابن معین انه لم یلق ابن عباس. فالرجل ثقة ان شاء الله وروایته مقبولة.ولایصح ان ینفی ملاقاته للصحابة لکون ابن حبان ذکره فی طبقة اتباع التابعین.

البته امام يحی ابن معين رحمه الله د دوی د حضرت عباس رضی الله عنه نه د سماع انکار کړې دې[1] د دې نه علاوه د اسود بن هلال، ابوعبدالرحمن سلمی، ابووائل، سويد بن غفله، سعد بن عبيده، سعيد بن جبير، عامرشعبی، ابوالصالح السمان او د عميربن سعد رحمه الله نه هم روايت کوی ـ ددوی نه روايت کونکو کښې امام شعبه، سفيان ثوری، سفيان ابن عيينه، قيس بن ربيع، مالک بن مغول، مسعربن کدام، ابوالعوانه او ابوالاحوص رحمه الله شامل دی[2].

عبدالرحمن بن مهدی رحمه الله فرمائی "لم يكن بالكوفة اثبت من اربعة: منصور، ابوحصين، وسلمه بن كهيل، وعمرو بن مرة"[3].

بل خائې فرمائی "لا ترى حافظا يختلف على ابى حصين"[4].

امام احمدبن حنبل رحمه الله نه چه کله د دوی باره کښې تپوس اوکړې شو نو هغوی يې تعريف اوکړو[5].

امام عجلی رحمه الله فرمائی "ابوحصين كان شيخا عاليا وكان صاحب سنة"[6].

بل خائې فرمائی "ابوالحصين: كوفى ثقة وكان عثمانيا رجلا صالحا"[7].

دغه رنګې بل خائې د دوی ارشاد دې "كان ثقة ثبتا فى الحديث"[8].

يعقوب بن عثمان رحمه الله فرمائی "حدثنا ابونعيم، قال حدثنا سفيان عن ابى حصين اسدى، شريف ثقة ثقة كوفى"[9] امام ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی "اجمعوا على انه ثقة حافظ"[10].

حافظ ذهبی فرمائی "ثقة ثبت صاحب سنة"[11].

حافظ ابن حجر فرمائی "ثقة ثبت سنى وربما دلس"[12].

---

[1] انظر تعليقات تهذيب الكمال(ج۱۹ص۴۰۱)- نقلا عن تاريخ الدورى(۳۹۳\۲)-

[2] د شيوخو اوتلامذه تفصيل دپاره اوګورئ تهذيب الكمال(ج۱۹ص۴۰۲ـ۴۰۱)وتهذيب التهذيب (ج۷ص۱۲۶)

[3] تهذيب الكمال(۴۰۳/۱۹)، وسير اعلام النبلاء(ج۵ص۴۱۳)-

[4] تهذيب الكمال(۴۰۳/۱۹)-

[5] حواله بالا

[6] تهذيب الكمال (ج۱۹ص۴۰۴)-

[7] حواله بالا

[8] حواله بالا

[9] تهذيب الكمال(ج۱۹ص۴۰۵)-

[10] تهذيب الكمال(۱۲۸/۷)-

[11] الكاشف(ج/۸)رقم(۳۷۰۸)-

[12] تقريب التهذيب(۳۸/۴)رقم(۴۴۸۴)قال شيخ محمد عوامة حفظ الله وقول الحافظ فى التقريب (۴۴۸۴) ربما دلس "ماخوذ من كلام للاعمش فيه وقدكان بينهما على امامتهما[بقيه حاشيه په راروانه صفحه.

۱۲۷ يا ۱۲۸ كښې د دوى انتقال اوشو[1]

⓪ ابوصالح دا مشهور تابعى ابوصالح ذكوان السمان الزياتﷺ دي.د دوى مختصر حالات د كتاب الايمان، باب امور الايمان لاندې تيرشوي دى[2]

⑤ حضرت ابوهريرهؓ: د حضرت ابوهريرهؓ حالات دكتاب الايمان باب امور الايمان د لاندې تيرشوي دى[3]

**قوله:** عن النبي ﷺ قال: تسموا باسمي ولاتكتنوا بكنيتي: حضرت ابوهريرهؓ د نبى كريم ﷺ نه روايت كوى چې حضورپاك ﷺ اوفرمائيل خما په نوم باندې خپل نوم ايږدئ خو خما كنيت مه ږدئ

**دباب دروايت شان ورود:** د دې روايت شان ورود دا دې چې يوځل حضورپاك ﷺ په بازار كښې وو چې چا په يا اباالقاسم سره آواز اوكړوچې حضورپاك ﷺ ورته متوجه شو نو هغې كس عرض اوكړو چې ما تاسو ته نه.فلانكى كس ته آواز كولوپه دې باندې حضورپاك ﷺ اوفرمائيل سموباسمي ولاتكنوبكنيتى[4]

**دحضواكرم ﷺ په نوم مبارك باندې نوم او د هغوى كنيت باندې كنيت اينبودل** دې مسئله كښې دعلماؤ مختلف مذاهب دى ① اول مذهب دامام شافعي او داهل ظواهرو دې دا حضرات فرمائى چې هيچا دپاره د ابوالقاسم كنيت اينبودل درست نه دى كه د هغه نوم محمد يا احمد وى يا نه وى

ددې حضراتو استدلال د حديث پاک د ظاهر نه دې[5]

② دويم مذهب دامام مالک اوجمهورو علماؤ دې دوى فرمائى چې دابوالقاسم كنيت اينبودل مطلقاجائز دى كه د چا نوم محمد او احمد وى يا نه.گوياچه دوى دا حديث دحضور پاک ﷺ د ژوندسره خاص گرځوى او د وفات نه پس يې منسوخ بولي[6]

ددې حضراتو وينا ده چې د زمانه اول نه تر ننه پورې خلق د ابوالقاسم كنيت ايږدى خو چاهم ددې نه منع نه ده فرمائلې[7]

---

بقيه حاشيه د تيرمخ] ما يكون بين المتعاصرين فلا ينبغى اعتماده ولم يدخل الحافظ نفسه فى رسالته "مراتب المدلسين" انظر تعليقاته على الكاشف (۸/۲) رقم(۳۷۰۸)-

[1] الكاشف ۷/۲)رقم(۳۷۰۸) -رحمة الله رحمة واسعة

[2] كشف البارى(ج ۱ص۶۵۸)

[3] كشف البارى(ج ۱ص۶۵۹)-

[4] صحيح البخارى(ج ۱ص۲۸۵)كتاب البيوع باب ما ذكرفى الاسواق رقم ۲۱۲۰، و۲۱۲۱ و (ج ۱ص۵۰۲) كتاب المناقب باب كنية النبى ﷺ رقم(۳۵۳۷)-

[5] شرح النووى لضحيح مسلم(۲۰۶/۲)كتاب الاداب باب النهى عن التكنى بابى القاسم وبيان ما يستحب من الاسماء)-

[6] حواله باله

[7] حواله بالا

ددې حضراتو دلیل دحضرت علي رضی الله عنه روایت دې "قال علی: قلت: یارسول الله ان ولد لی من بعدك ولد أسمیه باسمك وأكنیه بكنیتك؟ قال نعم [سنن ابی داود کتاب الادب باب فی الرخصة فی الجمع بینهما رقم (۴۹۶۸) وجامع الترمذی ابواب الادب باب ماجاء فی کراهیة الجمع بین اسم النبی صلی الله علیه وسلم وکنیته رقم (۲۸۴۳)

③ دریم مذهب دابن جریر طبری رحمه الله دې دوی فرمائي چې دا نهي خو منسوخ نه ده البته دا نهي تنزیهي او د ادب دپاره ده نه چې د حرمت دپاره[1]

امام ابن جریر رحمه الله فرمائی چه دحضورپاک صلی الله علیه وسلم حضرت علي رضی الله عنه ته اجازت ورکول او دحضرت علي رضی الله عنه بیا خپل خوی له ابوالقاسم کنیت ایښودل دې خبرې ته اشاره ده چه دنهي روایات په کراهة تنزیهي باندې محمول دی نه چې په حرمت باندې.او دا اهل علمو ته پته ده چه نهی تنزیهی د جواز یوه شعبه ده دې ته به زیات نه زیات خلاف اولی ونیلې شي خو بیا هم اهل علم مشران کله کله د عوامو نه تنگی لرې کولو دپاره په کراهة تنزیهی یا خلاف اولی باندې هم عمل کوی اودلته هم دغه رنگې ده.

هغوی دا فرمائی چې د دې خبرې تائیددې نه هم کیږي که چرې دانهی دتحریم دپاره وه نوصحابه کرامو به په دې ضرور منع فرمائیلې وه اودا به یې کنیت گرځولو نه.نومعلومه شوه چې صحابه کرامو دا په نهی تنزیهی محموله کړې ده[2]

④ څلورم مذهب د بعض سلفو دې چه دابوالقاسم کنیت د هغه چا دپاره منع دې چه د چانوم محمد یا احمد وی او چې دچا نوم دې کښې یو هم نه وی دهغه دپاره دې کنیت کښي هیڅ گناه نشته[3]

ددې حضراتو استدلال دحضرت جابر رضی الله عنه مرفوع حدیث دې "من تسمی باسمی فلایکنی بکنیتی ومن اکتنی بکنیتی فلایتسمی باسمی"[4]

⑤ پنځم مذهب دا دې چې ابوالقاسم کنیت بالکل ممنوع دې که نوم یې محمد وی یا نه وی دغه شان دچا قاسم نوم ایښودل هم منع دی ځکه چې دهغه پلار ته ابوالقاسم اونه ونیلې شی مروان بن حاکم خپل خوی عبدالملک له اول نوم ابوالقاسم ایښودلې وو خو چې کله دا حدیث هغوی ته اورسیدلو نو نوم ئې ورته بدل کړو او عبدالملک ئې ورته کیښودو

بعض انصار حضرات نه هم منقول دی چې هغوي هم دارنگې کارکړې وو[5]

---

[1] شرح النووی لصحیح مسلم(۲۰۶/۲)کتاب الاداب باب النهی عن التکنی بابی القاسم وبیان مایستحب من الاسماء)-

[2] فتح الباری(۵۷۳/۱۰)کتاب الادب باب قول النبی صلی الله علیه وسلم سموباسمی ولاتکنوبکنیتی)-

[3] شرح النووی لصحیح مسلم(۲۰۶/۲)-

[4] (اللفظ لابی داود)کتاب الادب باب فیمن رأی ان لا یجمع بینهما رقم(۴۹۶۶) وجامع ترمذی.ابواب الادب.باب ماجاء فی کراهیة الجمع بین اسم النبی صلی الله علیه وسلم وکنیته رقم(۲۸۴۲)-

[5] شرح النووی(ج۲ص۲۰۶)-

(۶) شپږم مذهب دا دې چې محمد نوم اېښودل بالکل منع دی دغه شان ابوالقاسم کنیت هم مطلقاً منع دی[1]، د حضرت عمر رضی الله عنه اثر دې "لا تسموا احدا باسم نبی"[2]،
دغه رنګې د حضرت انس رضی الله عنه نه مرفوع روایت دې "تسمونهم محمدا ثم تلعنونهم"[3]،
امام نووی رحمه الله د امام مالک او د جمهورو علماؤ مذهب غوره ګرځولو سره فرمائی "واما اطباق الناس على فعله مع ان فى المتكنين به والمكنين الائمة الاعلام، واهل الحل والعقد والذين يقتدى بهم فى مهمات الدين ففيه تقوية لمذهب مالك فى جوازه مطلقا ويكونون قد فهموا من النهى الاختصاص بحياته صلى الله عليه وسلم"[4]
یعنې مطلقاً د ابوالقاسم کنیت اېښودل جائز دی. د ټولو خلقو په دې اتفاق دې بله دا چې ددې کنیت اېښودونکو او والا نور لوئې لوئې امامان اهل حل او عقد دی او داسې خلق دی چې د دین په اهم کارونو کښې د امامانو حیثیت لری. او دې سره د امام مالک مذهب ته تقویت ملاویګی چه مطلقاً جائز دی، همدارنګې دا معلومه شوه چې دې ټولو حضراتو دا نهی صرف د حضور پاک صلی الله علیه وسلم ژوند پورې خاص ګنړلې ده. والله اعلم

**قوله:** ومن رآنى فى المنام فقد رآنى، فان الشيطان لا يتمثل فى صورتى:
چا چې څه په خوب کښې اولیدم نو په حقیقت کښې یې هم زه اولیدم ځکه چې شیطان ځما په شکل سره، شکل نشی جوړولې

**دخوب حقیقت:** تفسیر مظهری کښې قاضی ثناء الله پانی پتی رحمه الله فرمائی چه د خوب حقیقت دا دې چې څه وخت د انسان نفس د خوب یا د بیهوشئ دوجې دظاهری بدن نه فارغ شی نو ده ته د خیالی قوت په لار کښې څه تصویرونه ښکاره شی، نو دغې ته خوب وئیلې شی[5]

**دخوب قسمونه:** دخوب درې قسمه دی دوه خو پکښې بالکل باطل دی چې دهغې څه حقیقت او اصلیت نشته او بل درېم دخپل ذات او اعتبار سره صحیح او رښتونې دې خو په دې صحیح قسم کښې هم بعض څه عوارض شامل شې چې هغې سره دا فاسد او بې اعتباره کوی، تفصیل ددې دادې چې انسان خوب کښې کوم مختلف صورتونه او واقعات ګوری کله خو داسې اوشی چه دبیدارئ په وخت انسان کوم صورتونه ګوری هم هغه په خوب کښې په شکل په نظر راځی او کله داسې هم اوشی چې شیطان څه صورتونه او واقعات دده په ذهن کښې ورواچوی کله د خوشالئ او کله د ویرې، خو دا دواړه قسمونه باطل دی چه ددې نه څه حقیقت

---

[1] شرح النووى(۲/۲۰۶)وفتح البارى(۱۰/۵۷۲)كتاب الادب باب قول النبى صلى الله عليه وسلم سموباسمى ولاتكنوا بكنيتى)
[2] فتح البارى(۱۰/۵۷۲)-
[3] المطالب العالية بزوائد المسانيد(۳/۳۱)كتاب البر والصلة باب اباحة التسمى باسماء الانبياء وما جاء فى كراهية ذالک رقم(۲۷۹۶) وكشف الاستارعن زوائد البزار(۲/۴۱۲)كتاب الادب باب كرامة اسم النبى صلى الله عليه وسلم رقم(۱۹۸۷)ومجمع الزوائد(۸/۴۸)كتاب الادب باب ما جاء فى اسم النبى صلى الله عليه وسلم وكنيته)-
[4] كتاب الاذكار مع شرحه الفتوحات الربانية (۶/۱۰۴)كتاب الاسماء باب النهى عن الهكنى بابى القاسم)-
[5] تفسير المظهرى(۵/۱۳۷)-

شته او نه څه اصليت او نه ددې څه تعبير كيدې شى. دې كښې اول قسم ته حديث النفس او دونم قسم ته تسويل شيطانى ونيلې شى
دريم قسم چه صحيح او برحق دې هغه دالله دطرف نه يو قسم الهام دې چه د خپل بنده دخبردارئ او د خوشخبرئ دپاره كولې شى. الله تعالى دخپل خزانه غيب نه بعض څيزونه دهغه په زړه او دماغ كښې واچوى.
دطبرانى يو حديث كښې رسول الله ﷺ فرمائى چې خوب يو كلام دې چې په هغې سره دې د خپل رب سره د خبرو كولو شرف حاصلوى[1]
ددې تحقيق د صوفيانوكرامو دبيان مطابق داسې دې چې په دنيا كښې څومره څيزونه په وجود كښې راتلو والادى ددې د وجود نه وړاندې يو خاص شكل په عالم مثال كښې موجود وى او په دغه عالم مثال كښې چه څنګه دجواهرو اود ثابت شوې حقيقتونو صورتونه او شكلونه وى دغه رنګې د معانى اود اعراض پكښې هم خاص شكلونه وى. خوب كښې چه كله نفس انسان دظاهرى بدن نه فارغ شى نو بعضې وخت ددې تعلق عالم مثال سره اوشى نو هلته كښې چې دكائنات كم شكلونه دى هغه ده ته په نظر راشى بيا دا صورتونه دعالم غيب نه ده ته ښكاره شى. خو بعضې وخت په دې كښې هم څه عوارض راشى چې هغې سره په اصل حقيقت كښې څه باطل خيالات هم شامل شى نو ځكه بيا تعبير ويستونكى ته هم تعبير ويستلو كښې مشكلات راځى اوبعضې وخت هغه د ټولوعوارضو نه خالى وى نو دا اصل حقيقت وى خو په دې كښې بعض خوبونه د تعبير محتاجه وى ځكه چې په هغې كښې حقيقت واضح نه وى اوس كه په داسې حالت كښې تعبير غلط شى نو واقعه به مختلفه شى. ځكه به صرف هغه خوبونه الهام من الله او حقيقت ثابته وى چې كوم دالله د طرف نه وى او په هغې كښې څه عوارض هم شامل نه وى اوتعبير يې هم صحيح ويستلې شوې وى
د انبياء كرام خوبونه هم دارنګې وى ځكه دهغوى خوب د وحى درجه لرى. دعامو مسلمانانو خوبونه كښې هر قسم احتمالات وى ځكه هغه د چا دپاره حجت او دليل نشى كيدلې دې خوبونو كښې بعض وختونه طبعى او نفسانى خواهشاتو ملاوټ وى او يا بعض وختونه دګناهونو نحوست او تياره په صحيح خوب غالب راشى او ناقابل اعتماد يې كړى. بعض وخت تعبير هم په عقل كښې نه راځى[2]
دخوب چې دا درې قسمونه ذكر شول دا د رسول اكرم ﷺ نه هم منقول دى. حضورپاك ﷺ اوفرمائيل چه دخوب درې قسمونه دى يوقسم شيطانى دې چې په هغې كښې د شيطان د

---

[1]) قال الحافظ فى الفتح(٣٥٤/١٢)كتاب التعبير باب اول ما بدا به رسول الله ﷺ من الوحى:الروية الصالحة :ذكر ابن قيم حديثا مرفوعا غيرمغزو "ان رويا المومن كلام يكلم به العبد ربه فى المنام. ووجد الحديث المذكور فى نوادر الاصول للترمذى من حديث عباده بن الصامت اخرجه فى اصل الثامن والسبعين وهو من روايته عن شيخه عمربن ابى عمر وهو واه وفى سنده جنيد وانظرمجمع الزوائد كتاب التعبير باب الرؤيا الصالحة.قال الهيثمى روايت الطبرانى وفيه من لم اعرفه وانظرالتفسير المظهرى (١٣٧/٠٥)قال الفانى فتى رحمه الله "رواه الطبرانى بسند الصحيح والضياء")-
[2]) تفسيرمظهرى(١٣٧/٥-١٤١)ومعارف القران(١٨/٥-٢٠)-

طرف نه څه شکلونه په ذهن کښې راشي، او دويم هغه چه انسان دبيدارئ حالت کښې څه اويني او بيا هغه صورتونه په خوب کښې راشي، او دريم هغه حالت دې چې بالکل صحيح او برحق دې هغه دنبوت په اجزاؤ کښې څلويښتم جزء دې يعني دالله دطرف نه الهام دې[١]

**ايا د مذکوره حديث مصداق جوړيدو دپاره حضورپاک ﷺ په خپل اصلي شکل کې ليدل ضروري دي؟** حضورپاک ﷺ په خوب کښې ليدل د هغوي د وينا مطابق هم هغوي ليدل دى خو په دې کښې اختلاف دې چې په کوم حالت کښې هم کتونکو اوليدلو نوبس هم دغه به حضور پاک ﷺ وي يا په دې کښې څه تفصيل شته؟

امام بخاري په کتاب التعبير کښې د ابن سيرين رحمه الله نه نقل کړی دی چې هغه به فرمائيل "اذا راٰه فى صورته"[٢] چه حضورپاک ﷺ يې په خپل شکل اوصورت کښې ليدلې وی نوهم هغوي يې ليدلې دی

هم دغه رنګې چه ابن سيرين رحمه الله ته به څوک راغلو او ورته به ئې اوئيل چه ما حضور پاک ﷺ په خوب کښې ليدلې دې نو هغوی به ترې دهغه حليه تپوس کوله چې خوب کښې به يې ليدلې وو که خلاف معهود حليه به يې اوونيله نو ورته به يې اوفرمائيل چه تا حضور پاک ﷺ نه دې ليدلې[٣]

ددې خبرې تائيدد ابن عباس رضي الله عنهما داثر نه هم کيږی عاصم ابن کليب فرمائي **حدثنى ابى قال: قلت لابن عباس: رأيت النبى ﷺ فى المنام قال صفه لى قال ذكرت حسن ابن على فشبهته به، قال قد رأيته**[٤]

يعنى ما ابن عباس ته اوئيل چې ما حضورپاک ﷺ په خوب کښې ليدلې دې هغوی اوفرمائيل چې په کوم شکل کښې دې ليدلې دې هغه بيان کړه ماته حضرت حسن بن على رايادشو ما هغوی سره تشبيه ورکړه نو وې فرمائيل چه او يقيناً چه تا ليدلې دې.

حالانکې امام نووی رحمه الله او نور علماء فرمائي چه حضورپاک ﷺ يې کوم شکل کښې هم ليدلې وی هم حضور ﷺ به ئې ليدلې وی.[٥]

البته که چرې هغوی ئې په هغه شکل کښې اوکتلوکوم چې په احاديثو کښې راغلی دې نودهغوی ذات ئې اوکتلواوکه په بل شکل کښې ئې اوکتلو نودابه شکل تمثيلي وی. که په بنه شکل کښې ئې اوکتلونود کتونکی دين بنه والي طرف ته اشاره ده خکه چې نبي کريم

---

[١]) عن عوف بن مالک عن رسول الله ﷺ قال:ان الرؤيا ثلاث منها اهاويل من الشيطان ليحزن بها ابن آدم ومنها ما يهم به الرجل فى يقظته فيراه فى منامه ومنها جزءمن ستةواربعين جزء من النبوة.سنن ابن ماجه كتاب تعبيرالرؤيا باب الرؤيا ثلاث رقم(٣٩٠٧)-

[٢]) صحيح البخاری(١٠٣٥/٠٢)كتاب التعبير باب من راى النبى ﷺ فى المنام رقم(٦٩٩٣)-

[٣]) فتح البخاری(٣٨٤/١٢)كتاب التعبير باب من راى النبى ﷺ فى المنام)-

[٤]) حواله بالا)-

[٥]) اوګورئ شرح النووی لصحيح مسلم (ج٢ ص٢٤٢ و ٢٤٣). كتاب الرؤيا.

ﷺ ددين شيشه ده. دهغوى ﷺ په آئينه کښې دين په نظر راځي اوکه په ناخوښه شکل صورت کښې ئې اوکتلونو نودکتونکي دنقص علامت دي. حضرت گنگوهي ﷫ هم دې راې ته ترجيح ورکړې ده .(١)

**دخوب په حالت کښې دحضور ﷺ ارشاد حجت شرعيه دې که نه؟** يوه مسئله داده که چرې چا حضوراکرم ﷺ لره اوکتلوچې هغوى ﷺ دځه ځيزخبرورکوى. يا د ځه ځيزنه منع فرمائي. يا دځه ځيزحکم کوى نوداسې مناميه (خوبونه) شرعي حجت دى که نه؟

دعلماؤيه دې باندې اتفاق دې چې په خوب کښې دنبي ﷺ ارشادات شرعي حجت نه دې. البته هغه ارشادکه چرې د يو حکم شرعي مصادم (مخالف) نه وى نودحضوراکرم ﷺ صورت ذاتيه يا صورت مثاليه سره دادب تقاضا دا ده چې په هغې باندې عمل اوکړې شى.نوپه داسې حکم باندې عمل کول مستحسن دى .(٢)

په دې باندې اشکال راځي چې خوب ليدونکي هم حضوراکرم ﷺ اوکتلواودهغوى ﷺ کتل برحق هم دى نودهغوى ﷺ ارشادات مبارکه دې هم برحق اوحجت وى .

ددې جواب دادې چې کوم حضرات دحضوراکرم ﷺ درؤيت برحق کيدو دپاره حقيقي حليه مبارکه سره لازمي گرځوى، نودهغوى په نيزخود خوب په حالت کښې دارشاداتوحجت نه کيدل ظاهردى، ځکه چې دچاده دپاره دامکن نه دى چې جزما (يقينا) داخبره اوکړى چې ما حضوراکرم ﷺ لره په خپل اصل حليه کښې ليدلې دې. کله چې دحضوراکرم ﷺ په کتلو کښې شبهه پيداشوه نودخوب دحجت کيدوځه سوال دې ؟!

اوچې کوم حضرات وائي چې هغوى لره په خپل اصل حليه کښې ليدل ضرورى نه دى.دهغوى په نيزدخوب عدم حجيت په دې بنياد باندې دې چې حضوراکرم ﷺ په حديث پاک کښې داخواوفرمائيل چې کوم سړى زۀ په خوب کښې اوليدم نوهغه واقعي هم زۀ اوليدم ځکه چې شيطان تصرف کولوسره زما شکل نه شي جوړولې . هغوى دانه دى فرمانيلې چې په خوب کښې زما ارشادبه هم برحق وى اودهغې نسبت زما طرف ته کيدې شى ظاهره ده چې درؤيا برحق کيدو نه دانه لازميږى چې کوم ځيزدې په خوب کښې ښکاره کړې شي يا اوروليې شي نوپه حقيقت کښې دې هم واقع وى.بلکه دومره خبره ثابتيږى چې داخوب په ,,اضغاث،، کښې نه دې. ددې ځه تعبير شته ددې تعبيردنسبت په وجه نه داخوب برحق دې.نه چې مرئى اودمسموع دنسبت په وجه .(٣)

بيادلته داخبره هم واضحه کيږى چې حضوراکرم ﷺ لره په خوب کښې ليدلوکښې دشيطان دتصرفاتو هږوځه دخل نشته.بياهم دکتونکي دقوت متخيله په بعضې اوقاتوکښې اثر انداز کيږى. هم داوجه ده چې حضوراکرم ﷺ په خپل معروف هيئت نه بغير په بل هيئت کښې هم

---

١) اوګورئ:الکوکب الدرى (ج٣ص١٩٦) ابواب الرويا. باب قول النبي صلى الله عليه وسلم:من رآني في المنام ....

٢) اوګورئ: تکملة فتح الملهم (ج ٤ ص٤٥٢). کتاب الرؤيا. باب قول النبي صلى الله عليه وسلم : من رآني في المنام فقد رآني .

٣) اوګورئ: تکملة فتح الملهم (ج ٤ص٤٥٢) .

بنکاره کیږي څکه عین ممکن دي چې د کتونکي په خیال کښې څه داسې کلام واقع شي چه دهغه تکلم هغوی ﷺ نه وی فرمائیلي. نیزداهم ممکن ده چې خوب لیدونکي په خوب کښې چې څه لیدلي وی هغه ترې نه هیر شوی وی. بیا دویخیدونه پس دۀ ته دداسې خبروخیال راغلوکوم چې په خوب کښې ده ته نه وې پیښې شوې۔
لهذا ددې شبهاتو سره مونږ هغه احکام نه پریږدو کوم چې مونږ دحضوراکرم ﷺ نه په حالت یقظه کښې حاصل کړې وی. نیزپه دې کښې هم څه شک نشته چې په حالت رؤیا اوحالت یقظه کښې که تعارض اوشي نوحالت یقظه لره به ترجیح حاصلیږی ـ (۱) څکه چې داهم معلوم دی چې دمغفل روایت معتبرنه وی. کله چې په بیدارۍ کښې دغفلت دوجې نه روایت نه قبلیږی نو دخوب غفلت خود بیدارۍ دغفلت نه بدرجها زیات دې. بیا ددغه نائم مغفل روایت څنګه قبول کړی شی ؟!
علامه شاطبی رحمه الله لیکلی دی چې ابن رشد رحمه الله نه تپوس اوکړې شوچې که د یوقاضی په وړاندې دوه عادلان اوثقه ګواهان په کومه معامله کښې ګواهی ورکړی. اوبیاچې کله قاضی اودۀ شونوپه خوب کښې ئې حضوراکرم ﷺ اولیدلوچې فرمائیل ئې ددې شهادت مطابق فیصله مه کوه، داشهادت باطل دې. نوآیا حاکم به درؤیا مطابق فیصله کوی که دشهادت مطابق ؟ ابن رشد رحمه الله اوفرمائیل قاضی لره درؤیا مطابق فیصله کول صحیح نه دی. ددغه رؤیا دوجې په شهادت باندې عمل ترک کول به جائزنه وی. څکه چې که داسې خوبونه حجت اوګرزو نودې نه به ابطال شریعت لازم راځي اوداصحیح نه ده ددې وجې چې دانبیاء کرامو خوبونوته د وحی حیثیت حاصل دې، او د دوی نه علاوه باقی دچاخوب وحی نه ده اودخوب په ذریعه د غیب علم نشی حاصلیدې ـ (۲)
شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله لیکلی دی چې مادشیخ عبدالوهاب متقی رحمه الله نه اوریدلي دی چې دمغرب دفقراء نه یوفقیرپه خوب کښې حضوراکرم ﷺ اولیدلوچې هغوی ﷺ دۀ ته دشرابودڅکلو حکم کوی، هغه دخپل وخت علماء کرامونه تپوس اوکړو. هریو کس ورته څه نه څه محمل اوښودلواوڅه نه څه تاویل ئې ورته اوکړو. دغه وخت په مدینه منوره کښې یوعالم محمدبن عراقی وو. کوم چې دیرزیات متبع سنت بزرګ وو. هغه په وړاندې چې کله دا وقعه بیان کړې شوه نوهغه اوفرمائیل چې ددغه کس په قوت سامعه کښې څه خلل وو. نبی کریم ﷺ فرمائیلي وؤ ,, لاتشرب الخمر،، . هغه ,, لاتشرب،، . لره ,, اشرب،، اوګنړلو (۳)
حضرت کشمیری رحمه الله فرمائی چې یوسړی حضوراکرم ﷺ په خوب کښې اولیدلوچې هغوی ﷺ انګریزی ټوپۍ په سرکړې ده، ددې وجې دغه سړی ته ویره اوشوه. هغه دحضرت ګنګوهی رحمه الله نه استفسار اوکړو. حضرت ورته اوفرمائیل چې دادهغه په دین باندې دنصرانیت غلبه طرف ته اشاره ده ـ (۴)

---

(۱) حواله سابقه
(۲) اوګورئ الاعتصام للشاطبی (ج۱ص ۲۶۲و۲۶۳). الباب الرابع فی ماخذ اهل البدع بالاستدلال ـ
(۳) اوګورئ اشعة اللمعات (ج۳ص۶۳۹)
(۴) اوګورئ فیض الباری (ج۱ص۲۰۳و ۲۰۴)ـ

**ایا په خوب کښې دحضوراکرم ﷺ زیارت کولو والا به صحابی وی ؟** که چاپه خوب کښې دحضوراکرم ﷺ زیارت اوکړو نو آیا هغه به صحابی وی ؟

علامه عینی رحمه الله فرمائی چې هغه به صحابی نه وی، ځکه چې دصحابی تعریف دادې چې هغه صاحب ایمان سړې کوم چې حضوراکرم ﷺ لیدلې وی، ددغه کتلونه مراد معهود او معتاد رؤیت دې، منامی رؤیت معتادنه دی، داسې هم ونیلې شی چې ددغه رؤیت نه دهغوی ﷺ په دنیوی حیات کښې زیارت کول دی ـ (۱)

علامه سیوطی رحمه الله هم دغه شان تصریح کړې ده ـ (۲)

**د حضوراکرم ﷺ په حالت بیدارۍ کښې زیارت ممکن دې که نه؟** ددې نه پس په دې باندې خان پوهه کړئ چې نبی علیه السلام که چاپه خوب کښې اولیدلو نوبیاخوهم هغوی ﷺ نې اولیدل. لیکن که چرې یوکس دا اووائی چې ماحضوراکرم ﷺ په بیدارئ کښې لیدلې دې نوآیا دهغه خبره به معتبره وی که نه؟ اوهغوی ﷺ لره په بیدارئ کښې لیدل ممکن دی که نه ؟

بعضې حضراتودې نفی کړې ده (۳)او ونیلې ئې دی چې دحضوراکرم ﷺ نه رؤیت منامی ثابت دی، بلکه دعلامه سیوطی رحمه الله په قول دامتواتردې(۴)اودرؤیت فی الیقظه باره کښې حضوراکرم ﷺ نه څه ثابت نه دی، البته د ..من رآنی فی المنام فسیرانی فی الیقظه، په احتمالاتو کښې دیواحتمال په توګه باندې اشاره ملاویږی ـ (۵)

دغه شان دحضراتوصحابه کراموادتابعینونه دچانه هم دامنقول نه دی چې هغوی دشدت تعلق نه باوجودهم حضوراکرم ﷺ لره دبیدارئ په عالم کښې لیدلې وی. تردې پورې چې حضرت فاطمه رضی الله عنها ته دحضوراکرم په فراق کښې چې کومه صدمه لاحق شوې وه. هغه صدمه دهغوی دپاره د مرګ سبب اوګرځیدو اودحضوراکرم ﷺ دوصال نه صرف شپږ میاشتې پس دهغې وفات شوې وو. دهغوی کور دروضه مبارکې سره پیوست وو. بیاهم دهغې نه منقول نه دی چې په دغه پوره مده کښې هغې حضوراکرم ﷺ په عالم بیدارئ کښې لیدلې وؤ ـ (۶)

ددې په مقابله کښې ډیرومحققینوددې اثبات کړې دې. علامه سیوطی رحمه الله خوددې داثبات دپاره یوه مستقله رساله .. تنویرالحلک فی امکان رؤیة النبی والملک، لیکلې ده (۷)علامه بارزی رحمه الله په خپل کتاب .. توثیق عری الاسلام، کښې. علامه ابومحمد عبدالله بن ابی جمره رحمه الله په

---

[1] ) اوګورئ عمدة القاری (ج۲ص ۱۵۶) ـ

[2] ) تنویر الحلک فی امکان رؤیة النبی والملک (ضمن الحاوی للفتاوی (ج۲ص۲۶۵) ـ

[3] ) اوګورئ المواهب اللدنیة مع شرحه (ج۷ص۲۹۲) الفصل الرابع.مااختص به صلی الله علیه وسلم من الفضائل والکرامات ـ

[4] ) شرح المواهب اللدنیة للزرقانی (ج ۷ص۲۹۲)ـ

[5] ) حواله بالا ـ

[6] ) المواهب اللدنیة للقسطلانی وشرحها للزرقانی (ج ۷ص۲۹۲)ـ

[7] ) کومه چې د ``الحاوی للفتاوی.. په ضمن کښې طبع شوې ده ـ

.. بهجة النفوس،،كښې عفيف يافعي رحمه الله په روضة الرياحين.. كښې اوشيخ صفي الدين بن ابي المنصور رحمه الله په خپلې .. رساله.. كښې سلف صالحينونه ډيرواقعات نقل كړي دي ـ (۱)
علامه ابن جمره رحمه الله فرمائي چې سلفو اودخلفويولوني جماعت نه منقول دي چې هغوى حضوراكرم ﷺ رومبې په خوب كښې ليدلې وو، بيا په مصداق حديث .. من رآني في المنام فسيراني في اليقظة،، هغوى نبى ﷺ دبيدارئ په عالم كښې هم اوكتل. دنبى ﷺ نه دغه حضراتو دخپلو بعضو مشكلاتواود مسائلو د حل په باره كښې تپوس هم اوكړو. نبى ﷺ دهغې حل ورته اوښودلو ـ (۲)
ابن ابي جمره رحمه الله فرمائي چې ددې خبرې منكرياخوبه دكرامات اولياء منلووالا وي يابه نه وي ـ كه هغه دكرامات اولياء منكروى نوزمونږ دهغوى سره بحث نشته. ځكه چې هغوى دداسې څيزنه انكار اوكړوكوم چې .. سنت.. نه په واضح دلائلوسره ثابت دې ـ
اوكه كرامت اولياء لره برحق ګڼړى نودلته دې هم هغه تسليم كړي چې دحضوراكرم ﷺ رؤيت يقظة په توګه دكرامت دې ـ (۳)
صاحب روح المعاني علامه آلوسى رحمه الله فرمائي چې دحضرات صحابه كرامو رضي الله عنهم حضوراكرم ﷺ لره دوصال نه پس دبيدارئ په حالت كښې نه كتل اودروستونوبه كتلوكښې دتوجيه ضرورت دې، چې پرې اطمينان اوشي، دا ونيل هم ممكن نه دى چې دكومو نيكانو حضراتو نه ليدل منقول دى دغه ټول دروغ اوبې اصل دى. ځكه چې ددې ناقلين هم ډيرزيات دى اوددې دعوى كونكى هم لوئې جليل القدر الله والاخلق دى.دغه شان داهم نشى ونيلې كيدې چې دغه حضراتو واقعى ليدلې خودې خودغه رؤيت يعنى ليدل منامى دى.دبيدارئ په عالم كښې نه وو. ځكه چې په دې محمل باندې حمل كول يولړې ده. بله دا چې بعضې واقعاتولره په خوب باندې محمول كيدې نشى ـ
البته داوانيلې كيدې شى چې دا خوارق عادتونو د قبيل نه دى، لكه څنګه چې دحضراتو انبياء عليهم الصلاة والسلام كرامات اوداولياء كرامو كرامتونه دى ـ
كوم خانې پورې چې په صدراول كښې دنه كتلوتعلق دې.نوعلامه آلوسى رحمه الله فرمائي چې حضوراكرم ﷺ لره په حالت يقضه كښې كتل دخارق عادت په توګه باندې دې اوپه صدر اول كښې يعنى دصحابه كرام په زمانه كښې دخوارقوصدورډيركم ظاهرشوې وو. اوددې وجه دا په پوهه كښې راځى چې حضوراكرم ﷺ چې دآسمان رسالت نمرد‌ې.دهغوى ﷺ زمانه ډيره قريبه وه.ظاهره ده چې دنمرپه رڼړه كښې ستورى نه ښكاره كيږى. لهذا عين ممكن دى چې ددغه حضراتوپه دوركښې بعضې حضراتوهغوى ﷺ لره په عالم بيدارئ كښې ليدلې وى خو هغوى داخلاف مصلحت ګڼړلوسره نه وى ظاهر كړى ـ ددغه حضراتودنه ليدلويوه وجه داهم

---

۱) المواهب اللدنية (ج۷ ص۲۹۳) ـ
۲) حواله بالا ـ
۳) المواهب اللدنية (ج۷ ص۲۹٤) ـ

كيدې شي چې د حضوراكرم ﷺ فراق سره دهغوى ابتلاء او آزميښت مقصودوى.داهم ممكن دى چې په دغه وخت كښې كه چاحضوراكرم لره په حالت بيدارئ كښې ليدلې وې نودنوروړپاره به دفتنه اودآزميښت دروازه كهولاؤ شوې وه. يومصلحت داهم ممكن دې چې په دغه وخت كښې ډير خلق داسې ووكوم چې دحضوراكرم ﷺ بعينه عكس وو.

نوځكه چاهم هغوى ﷺ ديقظه په حالت كښې نه دې ليدلې.نيزدې سره ددې هم قوى امكان دې چې هغوى لره بيائې دبيدارئ په حالت كښې په كثرت سره ليدلو نوهغوى ﷺ به په دغه موقع كښې براه راست استفاده كيدله.نو دې سره به په كتاب اوسنت كښې د اجتهاد دروازه نه كهولاويدله. اوس چونكه حضوراكرم ﷺ موجود نه دې اونه په عالم بيدارئ كښې څوک هغوى لره ګورى. نوځكه داجتهاد دروازه كهلاؤده. داسې دامت دپاره آسانى پيداشوه.[1]

كوم خانې پورې چې دمنكرينوداوېناده.چې حضور اكرم ﷺ دخوب دصحت ضمانت وركړې دې. دبيدارئ، نه لهذاپه بيدارئ كښې ممكنه ده چې جنات اوشيطانان متمثل كيدوسره خپل ځان ته نبى اكرم ﷺ اووائى اوكټونكى ته دهوكه وركړى.نو ددې جواب دادې چې دبيدارئ حالت دخوب دحالت نه اقوى دې، كله چې په حالت د خوب كښې تمثيل شيطانى نشى كيدې نودبيدارئ په حالت كښې هم نشى كيدې.

ممكنه ده چې منكرين دا اووائى چې د ,, فان الشيطان لايتمثل بى،. تعلق دخوب سره دې. بيدارئ سره نه.

ددې جواب دادې چې په دې كښې هړوڅه شک نشته چې د ,, فان الشيطان لايتمثل بى،. تعلق دخوب سره دې، بياهم ددې په علت كښې غوراوكړى چې دكوم علت په بناباندې هغوى ﷺ دافرمائيلى وو، هغه علت دادې چې هغوى ﷺ هدايت محض دى اوشيطان ضلال محض. ضلال محض دهدايت محض شكل نشى اختيارولې. لهذا څنګه چې داعلت په حالت خوب كښې دې،بعينه هم داعلت دبيدارئ په حالت كښې هم دې.لهذا داممكنه نه ده چې په حالت بيدارئ كښې شيطان متمثل كيدوسره په دهوكه كښې واچوى. والله اعلم

**ايا شيطان په خوب كښې دالله تعالى په صورت كښې متشكل كيدوسره راتلې شى؟** آياشيطان په خوب كښې راتلوسره دا ونيلې شى چې زهٔ ,, الله،، يم؟

حضرت ګنګوهى رحمه الله فرمائى چې شيطان داسې وائيلې شى. ځكه چې الله تعالى څنګه مظهر هدايت دې دغه شان مظهرضلالت هم دې، ارشاد بارى تعالى دې ﴿فَيُضِلُّ اللّٰهُ مَنْ يَّشَاءُ وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَاءُ﴾[2] والله اعلم بالصواب[3]

**قوله**: من كذب على متعمدا فليتبوا مقعده من النار: كوم سړى چې ښه په قصد

---

[1]) اوګورئ روح المعانى (ج۱۲ص۳۹) تحت تفسيرقوله تعالى : ماكان محمد ابا احد من رجالكم ولكن رسول الله وخاتم النبين)_

[2]) سورة ابراهيم ۴۱

[3]) اوګورئ لامع الدرارى وتعليقاته (ج۱۰ص ۲۴۰ و ۲۴۱) كتاب التعبير_

سره په مابانديې دروغ اووائی هغه دې خپله ټکانه «د استوګنې ځاى» په دوزخ کښې جوړه کړي دلته په حديث باب کښې هم داجزء اصالة اوبالذات مقصود دې ـ

د.. من كذب علي متعمدا، **تواتر حديث** .. من كذب على متعمدا .. دډيرو صحابه کرامونه منقول دې. په خپله امام بخاری رحمه الله په مختلفوالفاظوسره داد حضرت زبير رضى الله عنه [1] حضرت على [2]. حضرت انس [3] اود حضرت ابوهريره [4] نه نقل کړې دې. دغه شان هغوى د حضرت مغيره [5] حضرت سلمه بن الاكوع [6] حضرت عبدالله بن عمروبن العاص [7] او د حضرت واثله بن الاسقع رضى الله عنه [8] نه روايت کړې دې ـ البته په دې کښې دوعيدبالنارتصريح موجود نه ده ـ [9] امام مسلم رحمه الله هم دحضرت على [10]. دحضرت انس [11]، دحضرت ابوهريره [12] اودحضرت مغيره رضى الله عنه [13] نه داروايت نقل کړې دې.اودابوسعيد رضى الله عنه نه صرف هم دوى روايت کړې دې [14] امام بخاری نه دې روايت کوى ـ

دصحيحينونه علاوه نورودحديث په کتابونوکښې حضرت عثمان [15]، حضرت ابن مسعود [16]، حضرت ابن عمر [17] حضرت ابوقتاده [18]

---

[1] ) اوګورئ: صحيح البخارى (ج ۱ص ۲۱) كتاب العلم.باب اثم من كذب على النبى صلى الله عليه وسلم. رقم (۱۰۷) ـ

[2] ) حواله بالا (۱۰۶)

[3] ) حواله بالا (۲۰۸)

[4] ) حواله بالا. رقم (۱۱۰) ـ

[5] ) صحيح البخارى (ج ۱ص۱۷۲) كتاب الجنائز. باب ما يكره من النياحة على الميت. رقم (۱۲۹۱) ـ

[6] ) صحيح البخارى ج ۱ص ۲۱) كتاب العلم. باب اثم من كذب على النبى صلى الله عليه وسلم. رقم (۱۰۹)

[7] ) صحيح البخارى (ج ۱ص ۴۹۱) كتاب احاديث الانبياء. باب ماذكر عن بنى اسرائيل. رقم (۳۴۶۱)ـ

[8] ) صحيح البخارى (ج ۱ص۴۹۸) كتاب المناقب. باب (بدون ترجمة. بعد باب نسبة اليمن الى اسماعيل). رقم (۳۵۰۹) ـ

[9] ) الفاظ دا دى .. ان من اعظم الفرى ان يدعى الرجل الى غيرابيه اويرى عينه مالم تر. اويقول على رسول الله صلى الله عليه وسلم مالم يقل..ـ

[10] ) صحيح مسلم المقدمة. باب تغليظ الكذب على رسول الله صلى الله عليه وسلم. رقم (۲) ـ

[11] ) حواله بالا رقم (۳) ـ

[12] ) حواله بالا. رقم. (۴) ـ

[13] ) حواله بالا. رقم (۱) و (۵) و (۶) ـ

[14] ) صحيح مسلم. كتاب الزهد والرقائق. باب التثبيت فى الحديث وحكم كتابة العلم. رقم (۷۵۱۰)ـ

[15] ) مسند احمد (ج ۱ص ۷۰) ـ

[16] ) جامع الترمذى. ابواب العلم. باب ماجاء فى تعظيم الكذب على رسول الله صلى الله عليه وسلم. رقم (۲۶۵۹)

[17] ) مسند احمد (ج ۲ص ۲۲). رقم (۴۷۴۲) و (ج ۲ص ۱۰۳). رقم (۵۷۹۸)و(ج ۲ص ۱۴۴) و رقم (۶۳۰۹)، وشرح مشكل الاثار (ج ۱ص ۳۶۰) ـ

[18] ) سنن ابن ماجه. المقدمة. باب التغليظ فى تعمد الكذب على رسول الله صلى الله عليه وسلم. رقم (۳۵) ـ

حضرت جابر [۱] اوحضرت زيدبن ارقم رضي الله عنهما [۲] نه هم دا حديث مروى دې ـ
دغه شان په سندحسن سره حضرت طلحه بن عبيدالله، حضرت سعيدبن زيد، حضرت ابوعبيده بن الجراح، حضرت سعدبن ابى وقاص، حضرت معاذبن جبل، حضرت عقبه بن عامر، حضرت عمران بن حصين، حضرت ابن عباس، حضرت سلمان فارسى، حضرت معاويه بن ابى سفيان، حضرت رافع بن خديج، حضرت طارق الاشجعى، حضرت سائب بن يزيد، حضرت خالدبن عرفطه، حضرت ابوامامه، حضرت ابوموسى غافقى، حضرت عائشه او حضرت ابوقرصافه رضي الله عنهم نه هم مروى دې ـ [۳] دا ټول دريديرش ۳۳ صحابه كرام دى ـ
ددوى نه علاوه تقريبا دشلو ۲۰ صحابه كرامونه مزيد هم داحديث مروى دې. بياهم دهغوى سندونه ډير ضعيف اوساقط الاعتبار دى ـ [۴]
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چې بعضې حفاظ محدثينو ددې حديث طرق جمع كړى دى ـ
په دې سلسه كښې دټولونه ړومبې امام على بن المدينى رحمه الله صراحت كړې دې اودهغوى اتباع امام يعقوب بن شيبه رحمه الله كړې ده. هغه فرمائى چې دا حديث حجازى يا غيرحجازى صحابه كرامونه په شلوطرقوسره مروى دې. بيا ابراهيم الحربى اوابوبكر البزار رحمهما الله فرمائى چې تقريبا څلويښت صحابه كرامونه مروى دې ـ
په دغه زمانه كښې امام ابن صاعد رحمه الله دهغه شان دغه طرق جمع كړى دى كوم چې دمذكوره تعدادنه څه زيات دى ـ
امام ابوبكرالصيرفى رحمه الله فرمائى چې تقريبا شپېته صحابه كرامودې لره روايت كړې دې. ددې طرقو لره امام طبرانى جمع كړل نوپه دې كښې اضافه اوشوه
امام ابوالقاسم بن منده رحمه الله فرمائى چې دې روايت لره اوواتيه ۸۷ صحابه كر مونقل كړې دې. بعضې نيشاپورى حضراتوددې تخريج كړې دې. كوم سره چې نوره اضافه اوشوه
دغه شان امام ابن الجوزى رحمه الله دې طرقولره جمع كړه نوهغه دنوى ۹۰ نه زيات راوتل ابن دحيه رحمه الله په دې باندې جزم كړې دې
امام ابوموسى المدينى رحمه الله فرمائى چې دې لره تقريبا سل ۱۰۰ صحابه كرامو نقل كوى.
ددې نه پس حافظ يوسف بن خليل اوحافظ ابوعلى بكرى رحمهماالله ددې حديث طرق لره جمع كړه نود دواړو مجموعه تقريبا يوسل دوو ته اورسيده [۵]
حافظ عراقى رحمه الله فرمائى چې بعضې حفاظوذكركړې دى چې دې حديث لره دوه سوو ۲۰۰ صحابه كرامونقل كړې دې. خوزهٔ ددې وقوع لره مستبعد گنړم [۶]

---

[۱] ) حواله بالا. رقم (۳۳) ـ
[۲] ) مسند احمد (ج ٤ص ۳٦۷) ـ
[۳] ) ددې ټولوزوايانودپاره اوګورئ ,, الموضوعات.. لابن الجوزى (ج ۱ص ۵۵ ـ ۹۲). الباب الثانى فى قوله عليه السلام :٠٠ من كذب على متعمد ا ......ـ
[۴] ) اوګورئ فتح البارى (ج ۱ص ۲۰۳) ـ
[۵] ) اوګورئ فتح البارى (ج ۱ص ۲۰۳). وظفرالامانى (ص ۵۲ ـ ٥٤). وفتح المغيث للعراقى (ص ۳۲۳) ـ
[۶] ) اوګورئ فتح المغيث للراقى (ص ۳۲۳) ـ

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چې غالبادا "مائة" وو. د سبقت قلمې دوجې نه "مائتان". شول[1]، خودلته دې داخبره دنظرلاندې وي چې سلو ۱۰۰ ته نزدې صحابه كرامونه چې كوم دا روايت مروى دې هغه ټول طرق صحيح نه دى. بلكه څنګه چې رومبې بيان شو په دې كښې دصحيح نه علاوه بعضې حسن دى. بعضې ضعيف دى. اوبعضې بالكل ساقط الاعتبار دى. بيا په دې كښې بعضې روايتونه دمطلق كذب په مذمت كښې دى. په خاص كذب على النبى ﷺ سره مقيد نه دى ـ ([2])

ددې حديث تفصيلى تخريج دپاره دابن الجوزى رحمه الله كتاب الموضوعات اود علامه عبدالحى لكهنوى رحمه الله كتاب "الآثار المرفوعة فى الاخبار الموضوعة". اوګورئ ـ ([3])

حافظ ابن الصلاح رحمه الله فرمائي چې دا حديث متواتر دې. ددې نه علاوه بل حديث متواتر نشته ([4])اوابن حبان ([5]) اوحازمى ([6])رحمهماالله دحديث متواترمطلقا انكار كوى او وائى چې دحديث متواترهډو وجود نشته ـ

دابن حبان اوحازمى رحمهماالله دا دعوى خوبالكل باطله ده. څكه چې اوس مخكښې تفصيل تيرشوچې "من كذب على متعمدا". والا حديث دسلو نه زيات صحابه كرامو نقل كړې دې. نو ولې بيا به هم دا متواترنه وى ؟

كوم خائې پورې چې دحافظ ابن الصلاح رحمه الله ددعوې تعلق دې. نوعلماؤ ددغه تخصيص ترديد كړې دې او ونيلې ئې دى چې د "من كذب". والا حديث نه علاوه "من بنى لله مسجدا ......"، د "مسح على الخفين" والا حديث. رفع يدين والا حديث. دشفاعت والا حديث. د "حوض". او د "رؤيت بارى تعالى". والااحاديث وغيره متواتردى ـ ([7])

حافظ عراقى رحمه الله د "من كذب على متعمدا ....". والا حديث په باره كښې ليكلې دى "ولا يمكن التواتر فى شىء من طرق هذا الحديث، لانه يتعذر وجود ذلك فى الطرفين والوسط، بل بعض طرقه

---

[1]) فتح المغيث للسخاوى (ج٤ص١٩) الغريب والعزيزوالمشهور. امثلة التواتر ـ

[2]) اوګورئ ظفرالامانى (ص٥٤) نقلا عن فتح البارى (ج١ص٢٠٣) ـ

[3]) كتاب الموضوعات لابن الجوزى (ج١ص٩٢-٥٥)، الباب الثانى فى قوله عليه السلام : من كذب على متعمدا ........ والآثار المرفوعة (ص١١ ـ ١٨)، ضمن مجموعة سبع رسائل للكنوى رحمة الله تعالى ـ

[4]) قال ابن الصلاح رحمه الله تعالى : "نعم : حديث "من كذب على متعمدا فليتبوأ مقعده من النار" نراه مثالا لذلك، فانه نقله من الصحابة رضى الله عنهم العددالجم. وهو فى الصحيحين مروى عن جماعة منهم ........ـ علوم الحديث (ص٢٦٩)، النوع الموفى ثلاثين : معرفة المشهورمن الحديث ـ

[5]) قال ابن حبان فى مقدمة صحيحة : "فاماالاخبارفانها كلها اخبار آحاد ..........ـ انظرالاحسان بترتيب صحيح ابن حبان (ج١ص١٤٥)ـ

[6]) قال الحازمى رحمة الله تعالى : "واثبات المتواترفى الاحاديث عسيرجدا" ـ شروط الائمة الخمسة للحازمى (ص١٤٢) ثلاث رسائل فى علم مصطلح الحديث ـ

[7]) اوګورئ فتح البارى (ج١ ص٢٠٣)، وفتح المغيث للسخاوى (ج٤ص٢٠و٢١) ـ

الصحیحة انما هی افراد من بعض رواتها، وقد زاد بعضهم فی عدد هذا الحدیث حتی جاوز المأة، ولکنه لیس هذا المتن، وانما هی احادیث فی مطلق الکذب علیه صلی الله علیه وسلم، کحدیث: .. من حدث عنی بحدیث یری انه کذب، فهواحد الکاذبین، . ونحوذلک، . _ (۱)

دحافظ عراقی دقول حاصل دا دي چې .. که ددې حدیث ټول طرق هم ملاؤ کړې شي نوبیاهم تواترنه ثابتیږی. ځکه چې ابتداء او انتهاء اوبیا وسط کښې دتواترشرط یعنی کثرت رواة موندل ممکن نه دی. بلکه ددې حدیث بعضې طرق د داسې رواتونه مروی دی په کوم چې دآحادو اطلاق کیږی. بعضې حضراتوددې حدیث دطرقو تعداد دسلونه زیات ښودلې دې. خوداخبره صرف دې متن سره متعلقه نه ده. بلکه په حضور اکرم ﷺ باندې مطلقا دروغ ترلو سره متعلق دې. څنګه چې حدیث .. من حدث عنی بحدیث یری انه کذب، فهواحد الکاذبین. وغیره دی...

حافظ ابن حجر رحمه الله دحافظ عراقی رحمه الله دې اشکال لره (چې متواتردپاره دطرفینواوپه وسط کښې استواء فی الکثرة ضروری دې اوددې حدیث په هریو طریق کښې داخبره نشته دې) ذکرکولوسره ددې جواب ورکړې دې چې دمتواترکیدو مطلب دانه دې چې په هرهرطریق کښې دې دتواترضرورت وی. بلکه په هره زمانه کښې دابتداء نه ترانتهاء پورې یوجماعت دبل جماعت نه روایت کونکی موجود وی نو داافادهٔ دعلم دپاره کافی ده _ (۲)

حافظ رحمه الله فرمائی چې صرف دحضرت انس رضی الله عنه طریق لره روایت کونکو تعداد کافی زیات دې اودهغوی نه داپه تواترسره منقول دې.دحضرت علی رضی الله عنه نه روایت کولوالاشپږ مشهور تابعین دی.دغه شان حضرت ابن مسعود ، حضرت ابوهریره اوحضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنهم داحادیثوداحال دې،که چرې داسې اووئیلې شي چې داحدیث دکوم کوم صحابه کرامونه مروی دې دهغوی په طریق باندې دامتواتردې نودا خبره به صحیح وی.ځکه چې د تواتردپاره څه عددمعین شرط نه دې بلکه د ,, علم،. افاده کافی ده _ (۳)

خوعلامه عبدالحی لکهنوی رحمه الله دې خبرې لره نقل کولوسره چې داحدیث کوم چې دسلو (۱۰۰) نه زیات صحابه کرامونه مروی دې.په دې کښې بعینه ,, من کذب .......،،.. والا الفاظوسره نشته. بلکه نزدې نزدې نورو الفاظوو الاحدیثونه هم شامل دی. فرمائی

.. وبه ظهرمافی کلام الحافظ ابن حجر...... فان العلم الذی لابدمنه فی المتواترهوالعلم الضروری، لامطلق العلم، وحصول العلم الضروری من طرق هذا الحدیث ممنوع، . _ (۴)

---

(۱) التقیید والایضاح لما اطلق واغلق من کتاب ابن الصلاح (ص۲۷۲). النوع الحادی والثلاثون : معرفة الغریب والعزیز من الحدیث _

(۲) قال الحافظ :.. واجیب بان المراد باطلاق کونه متواترا روایة المجموع عن المجموع من ابتدائه الی انتهائه فی کل عصر. وهذا فی افادة العلم.. _ فتح الباری (ج ۱ص۲۰۳) _

(۳) فتح الباری (ج۱ص ۲۰۳) _

(۴) ظفرالامانی (ص۵۶و ۵۷). مبحث الخبرالمتواتر_

یعنی .. ددې نه دحافظ ابن حجرپه کلام کښې چې کوم خلل واقع دې هغه ظاهرشو خکه چې په متواترکښې کوم علم ناګزیردې هغه .. علم ضروری.. دې. نه چې مطلق علم. اوعلم ضروری ددې حدیث دطرق نه حاصل کیدل مسلم (تسلیم شده) نه دې..۔
حاصل داچې ابن حبان اوحازمی رحمهماالله دمتواتردوجود نه انکار کړې دې [1] اوابن الصلاح رحمه الله فرمائی چې دمتواتروجود ډیرقلیل دې. البته .. من کذب...... والاحدیث په باره کښې دعوی کیدې شي چې دامتواتردې
حافظ عراقی رحمه الله فرمائی چې ددې حدیث په باره کښې دا وینا ممکنه نه ده چې دالفظاهم متواتردی. خکه چه بعینه هم دې الفاظوسره دومره طرق سره مروی نه دی. دکوم په وجه سره چې په دې باندې دمتواترکیدو حکم لګولې کیدې شي
لهذا دې اختلاف ختمولو دپاره داسې ونیلې شي چې کوم حضراتود..متواتر.. انکار کړې دې هغوی د تواتر لفظی انکارکوی او چې کومو حضراتو متواتر تسلیم کړې دې هغه تواتر معنوی دې۔ [2] والله سبحانه وتعالیٰ اعلم
**دواضع حدیث حکم** دنبی کریم ﷺ طرف ته غلطه خبره منسوب کول په اتفاق سره ګناه کبیره ده [3]
البته په دې کښې اختلاف دې چې واضع حدیث کوم چې په حضوراکرم ﷺ باندې دروغ اوتړی هغه د دائره ایمان نه خارج کیږی که نه ؟
جمهور علماء فرمائی چې مفتری علی النبی ﷺ د دائره ایمان نه نه خارج کیږی ۔
امام ابومحمد الجوینی رحمه الله فرمائی چې په حضور اکرم ﷺ باندې دروغ تړونکې به کافر کیږی۔ [4]
علامه ابن المنیرمالکی رحمه الله دامام جوینی رحمه الله قول طرف ته خپل میلان ظاهرکړې دې اوبه دې سلسله کښې هغوی ددې خبرې نه استدلال کړې دې چې کوم سړې دنبی اکرم ﷺ طرف ته څه غلط حدیث منسوب کوی. دمثال په توګه باندې که هغه دکوم حرام دتحلیل دپاره غلط حدیث بیان کوی نوهغه به یا دا حرام حلال ګڼړی. یابه په حلال ګڼړلوباندې نورخلق آماده کوی او استحلال حرام کفر دې. دغه شان په دې باندې آماده کول هم کفر دې ۔ [5]
خو دعلامه موصوف دا دلیل ضعیف دې. خکه چې دلته ګفتګوپه استحلال حرام کښې نشته دې. بلکه ګفتګوپه دې خبرد کښې کیږی چې که څوک صرف په هوائې نفسانی (خواهشاتو) په غرض باوجود دحرام ګڼړلونه. حضور اکرم ﷺ طرف ته غلط خبره منسوب کړی نوهغه به

---

[1]) انظرفتح المغیث للسخاوی (ج ٤ص١٩) الغریب. والعزیز. والمشهور. وشرح شرح نخبة الفکر فی مصطلحات اهل الأثر (ص ١٨٧) ۔
[2]) انظرتعلیقات الشیخ نورالدین عترعلی علوم الحدیث لابن الصلاح (ص٢٦٨) ۔
[3]) اوګورئ توضیح الافکارلمعانی تنقیح الانظار (ج٢ص٦٦)۔
[4]) اوګورئ نزهة النظرشرح نخبة الفکرمع حاشیة لقط الدرر (ص ٨٥)) وشرح شرح نخبة الفکر لعلی القاری (ص ٤٥٢). وفتح الباری (ج١ص٢٠٢) ۔
[5]) فتح الباری (ج١ص٢٠٢) ۔

كافر وى كه نه. نصوص په دې خبره باندې دلالت كوى چې كافر كيږى به نه.
الله تعالى فرمائى ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَاءُ﴾[1]

د امام بخارى رحمه الله رجحان هم دې طرف ته دې. ځكه امام ترجمه كښې ..اثم من كذب.، ارشاد فرمائيلې دې. كه چرته كذب على النبى ﷺ كفروې نوحضرت امام بخارى رحمه الله به په ترجمه كښې د ..اثم.. په ځائې باندې د.. كفر.. لفظ روړلې وو - والله اعلم

**دحضور اكرم ﷺ په احاديثو كښې دروغ وئيلو والا توبه به قبوله وى كه نه؟** كه چرته يوكس دحضوراكرم ﷺ طرف ته غلطه خبره منسوب كړه اوداسې هغه عمدا اوكړه. نودومره خبره خوظاهره ده چې داګناه كبيره ده. البته په دې كښې كلام دې چې ددهٔ توبه به قبوله وى كه نه؟
امام احمد بن حنبل. امام حميدى. سفيان ثورى. عبدالله بن المبارك.رافع بن الاشرس اوابونعيم رحمهم الله دامذهب دې چې ددهٔ ټول روايت به مردود وى. كه چرته هغه په صدق دل سره (دزړه نه) توبه اوباسى نوبيا هم دهغه روايات معتبرنه دى -[2]
خوامام نووى رحمه الله فرمائى چې دا دقواعدو خلاف دې. مذهب مختار دادې چې ددهٔ توبه قبوله ده اودتوبه نه پس ددهٔ روايات هم معتبردى. دكفرپه شان جرم توبه سره معاف كيږى نودا خودهغې نه كمتردې، دابه بدرجه اولى معاف كړې شى -[3]
دجمهورو دطرف نه ددې جواب دادې چې بحث په دې خبره كښې نه دې چې فيمابينه وبين الله ددهٔ توبه به قبوله وى يا نه، بلكه بحث په دې كښې دې چې كاذب على النبى ﷺ روايات به متعبروى كه نه؟
جمهور وائى چې معتبربه نه وى[4] اوددې وجه دا ده چې آئنده دپاره به سدباب شى او هيڅ څوک هم دنبى ﷺ طرف ته څه غلطه خبره نه منسوب كړى اونه به دمنسوب كولوجرأت كوى
**فائده**: امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې دټولونه ړومبې دحضرت على رضى الله عنه حديث ذكركړې دې. كوم چې اصل مقصودباب دې، ددې نه پس ئې دحضرت زبير رضى الله عنه حديث نقل كړې دې كوم چې په دې خبرې باندې دال (دلالت كونكې) دې چې حضرات صحابه كرامو رضى الله عنهم به په حضوراكرم ﷺ باندې دروغ تړلونه ډيرزيات احترازكول. دريم نمبرباندې دحضرت انس رضى الله عنه حديث ئې راوړلې دې، په كوم كښې چې ددې خبرې تصريح ده چې حضرات صحابه كرامو به داكثار فى الرواية نه احترازكولو. كوم چې به مفضى الى الخطا وو، مطلق تحديث نه به ئې

---

[1] ) النساء ٤٨
[2] ) اوګورئ: الكفاية (ص١١٧و١١٨). وشروط الائمة الخمسة للحازمى (ص١٤٦. ضمن ثلاث رسائل فى علم مصطلح الحديث). وعلوم الحديث لابن الصلاح (ص١١٦). والتقييد والايضاح (ص ١٥٠. ١٥١). وفتح المغيث للعراقى (ص ١٦٤) وفتح المغيث للسخاوى (ج٢ص ٧١_٧٦) _
[3] ) اوګورئ: تقريب النووى بشرحه تدريب الراوى (ج١ص ٣٣٠). وشرح النووى لصحيح مسلم (ج١ص٨) المقدمة. باب تغليظ الكذب على رسول الله صلى الله عليه وسلم _
[4] ) قال ابو عبدالرحمن عبيدالله بن احمد الحلبى : سألت أحمد بن حنبل عن محدث كذب فى حديث واحد. ثم تاب ورجع. قال : توبته فيما بينه وبين الله تعالى. ولا يكتب حديثه أبدا. الكفاية (ص١١٧) _

احترازنه کولو. ددې نه پس دحضرت سلمه بن الاکوع رضی الله عنه حدیث ئې راوړې دې. په کوم کښې چې د.. قول،، تصریح موجود ده.. اوددې نه وړمبې حدیثونه د قول اوفعل دواړو نسبتونو ته عام دی
اوپه آخره کښې ئې دحضرت ابوهریره رضی الله عنه حدیث روړو. چې پکښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې په حضوراکرم صلی الله علیه وسلم باندې دورغ تړل په یوموقع باندې هم جائزنه دی. که دعوی دسماع په حالت دیقظه کښې وی اوکه په حالت دمنام کښې وی . [۱] والله اعلم وعلمه اتم واحکم
**فائده** دحضرت ابوهریره رضی الله عنه په دې حدیث کښې څلور اموردی ۱ـ تسموا باسمی-۲ـ ولاتکتنوا بکنیتی -۳ـ ومن رانی فی المنام فقد رانی، فان الشیطان لایتمثل فی صورتی ۴ـ ومن کذب علی متعمدا فلیتبوا مقعده من النار_ ددې امورو په مینځ کښې څه مناسبت دې ؟
علامه عینی رحمه الله فرمائی چې وړمبې جمله اودویمه جمله په مینځ کښې مناسبت بالکل ظاهردې چې په یوکښې تسمیه مذکوره ده اوپه بل کښې تکنیه. ددواړوتعلق هم دیوقبیل سره دې، په آخری دوؤ جملوکښې مناسبت داسې دې چې څنګه دبیدارئ په عالم کښې دحضور اکرم صلی الله علیه وسلم طرف ته د دروغوخبره منسوب کول حرام اوناجائزدی دغه شان که څا حضوراکرم صلی الله علیه وسلم په خوب کښې نه وی لیدلې اوددې نه باوجود هغه وائی چې ما حضوراکرم صلی الله علیه وسلم په خوب کښې لیدلې دې نودې هم ددې وعیدلاندې داخل دې البته ددواړو جملوتعلق آخری دوؤ جملوسره څنګه دې ؟ علامه عینی رحمه الله په دې مقام کښې بیاض پریخودې دې ممکنه ده چې روستوئې لیکل غوستل اوذهول ترې نه شوې وی ـ بیا هم غورکولوسره خبره په پوهه کښې راځی هغه داچې دا درې مختلف احادیث دی،یو ,, تسموا باسمی ولا تکتنوا بکنیتی،، دویم حدیث دې ,, من رانی..........،، دریم حدیث ,, من کذب علی متعمدا........
حضرت ابوهریره رضی الله عنه به دا حدیثونه بیل بیل هم روایت کول اوپه بعضې وختونوکښې به ئې تول په یوځائې باندې روایت کول دلته هم دا صورت دې چې تول احادیث ئې په یوځل روایت کړی دی ـ

## ۳۹ـ باب: کتابة العلم

**د سابقه باب سره مناسبت** په مذکوره باب اوباب سابق کښې مناسبت دادې چې په سابق باب کښې دحضوراکرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کولوکښې دکذب نه احترازکولوتاکیدووواوپه دې باب کښې ددې خبرې ترغیب دې چې دحضوراکرم صلی الله علیه وسلم کلام دضائع کولونه احتراز اوکړې شی ـ [۲]
حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله فرمائی چې په باب سابق کښې چونکه کذب علی النبی صلی الله علیه وسلم نه احترازکولوحکم وو، څکه عین امکان ووچې دبعضې خلقوهمتونو بالکل جواب

[۱] فتح الباری (ج۱ص۲۰۲و۲۰۳). وعمدة القاری (ج۲ص۱۵۷) ـ
[۲] عمدة القاری (ج۲ص۱۵۸)ـ

ورکړي وواوهغوى دمعللو نقل حديث نه احتراز کولو. ظاهره ده چې په دې کښې لونې نقصان وواوبه تعليم اوتبليغ کښې خلل پيدا کيدو. خکه مصنف رحمه الله ددې نه پس دا ترجمه قائمه کړه. چې تکښې ئې هغه طريقه اوښودله. چې ورسره نقل حديث هم جارى پاتې کيدې شى. اود علمائو نه هم بچ پاتې کيدې شى. هغه طريقه دکتابت حديث ده. چې اوريدلې شوى احاديث اوعلم لره اوليکلې شى اوبيا ئې بيان کړى [۱] والله اعلم

**مقصد ترجمة الباب** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چې دامام بخارى رحمه الله طرز په دې ابوابو کښې دفقهاء په مينځ کښې چې کوم مختلف فيه وى دا دې چې ترجمه على سبيل الاحتمال ذکر کوى. په دې کښې يوجانب ،طرف، جزم سره نه ذکرکوى. داترجمه هم داسې ده. خکه چې دسلفوپه دې کښې اختلاف پاتې شوې دې. بعضې حضرات دکتابت قائل وى اوبعضې حضرات دترک اگرچه روستوپه کتابت حديث باندې اجماع منعقده شوه. بلکه ددې په استحباب باندې اتفاق شوې دې. ددې نه زيات داسې ونيلې شى چې د چا په ذمه د علم تبليغ لازم او متعين وى او ده ته د هيرېدلو ويره وى نو ده باندې کتابت علم واجب دې [۲]

امام شاه ولى الله فرمائى چې د مصنف مطلب دا بيانول دى چې د حديث د کتابت اصل په حديث کښې موجود دې. اگرچې په زمانه د نبى عليه السلام کښې ددې ويرې چې حديث قرآن سره گډ نه شى يا خلق د حفظ حديث اهتمام نه کوى او په کتابت بهروسه شروع کړى. نو د کتابت حديث نه منع اوکړې شوه خو بيا روستو د کتابت اجازت ملاؤ شو. د حضرت عبدالله بن عمروبن العاص رضى الله عنه واقعات په دې باندې گواه دى [۳]

حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائى

د علم د حفاظت، بقاء او تبليغ واشاعت د پاره کتابت ضرورى آسان او فائده مند دې نو خکه يې باب کتابت العلم اولکولو چې د کتابت علم استحسان او د علمى کارونو د بقاء او حفاظت په غرض کتابت د حضورپاک صلى الله عليه وسلم د ارشاداتو نه ثابت کړى بلکه علماؤ ته په کتابت باندې د ترغيب ورکولو طرف ته اشاره هم معلوميږى [۴]

**د حديثو کتابت** د کتابت حديث په باره کښې د سلفو نه اختلاف راروان دې. حضرت ابن مسعود. حضرت زيدبن ثابت. حضرت ابوموسى. حضرت ابوسعيدخدرى رضى الله عنهم وغيره يو جماعت کتابت حديث ناخوښه گڼرلې دې. دغه شان بل جماعت ددې قائل دې چې هغې کښې حضرت عمر. حضرت على. حضرت حسن. حضرت جابر رضى الله عنهم وغيره شامل دى

په دې سلسله کښې دريم مذهب دا دې چې کتابت دې اوکړې شى خو د يادولو نه پس دې وران کړې شى

خو روستو دا ټول اختلاف ختم شواو اوس ددې په جواز او استحباب باندې د ټولو اتفاق

[۱] الکنزالمتوارى (۲ص۳۴۶)_
[۲] فتح البارى (۱/ ۲۰۴)
[۳] شرح تراجم ابواب البخارى (ص۱۵)
[۴] الابواب و التراجم (ص۵۵)-

اوشو[1] د حديث د جمع كيدو او په دې باندې د منكرين حديث د شبهاتو ترديد په تفصيل سره مقدمه كښې تير شوې دې فلينظر ثمه

[۱۱۱] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ قَالَ أَخْبَرَنَا وَكِيعٌ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ مُطَرِّفٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ قَالَ قُلْتُ لِعَلِيٍّ هَلْ عِنْدَكُمْ كِتَابٌ قَالَ لاَ، إِلاَّ كِتَابُ اللَّهِ، أَوْ فَهْمٌ أُعْطِيَهُ رَجُلٌ مُسْلِمٌ، أَوْ مَا فِي هَذِهِ الصَّحِيفَةِ. قَالَ قُلْتُ فَمَا فِي هَذِهِ الصَّحِيفَةِ قَالَ الْعَقْلُ، وَفَكَاكُ الأَسِيرِ، وَلاَ يُقْتَلُ مُسْلِمٌ بِكَافِرٍ [۲۸۸۲، ۶۵۰۷، ۶۵۱۷]

## رجال الحديث

① **محمد بن سلام** دا عبدالله محمد بن سلام البيكندى رحمه الله دې. ددوى حالات "كتاب الايمان باب قول النبى ﷺ انا اعلمكم بالله وان المعرفة فعل القلب" لاندې تير شوې دى.[2]

② **وكيع** دا مشهور امام وكيع ابن الجراح بن مليح الرواسى الكوفى رحمه الله دې ابوسفيان ددوى كنيت دې.[3]

د اصبهان په يو كلى كښې پيدا شو.[4]

دې د خپل پلار جراح بن مليح نه علاوه اسماعيل بن خالد. ايمن بن ناهل. عكرمه بن عمار. هشام بن عروه. امام اعمش. خالد بن دينار. ابن جريج. امام اوزاعى. امام مالك. اسامه بن زيد. سفيان ثورى، امام شعبه، فضيل بن غزوان. مالك بن معول. هشام الدستوانى او مبارك بن فضاله رحمهم الله وغيره نه هم روايت كوى

دده نه روايت كوونكو كښې سفيان ثورى (وهو من شيوخه) عبدالرحمن بن مهدى. ابوبكر بن ابى شيبه. عثمان بن ابى شيبه. ابو خيثمه زهير بن حرب. عبدالله بن مسلمه القعنبى. عبدالله بن مبارك. ابوكريب محمد بن العلاء. على بن خشرم. محمد بن سلام. نصربن على. يحيى بن يحيى نيسابورى او ابراهيم بن عبدالله العبسى رحمهم الله دى.[5]

امام حماد بن زيد رحمه الله فرمائى لوشنت قلت: هذا ارجح من سفيان.[6]

امام احمد رحمه الله فرمائى "ما رايت اوعى للعلم من وكيع ولا احفظ منه"[7] يعنى "ما د وكيع نه زيات حافظ او يادولو والا ليدلې نه دې.

[1] مقدمة اوجز المسالك (۱/۱٤)-
[2] كشف البخارى (۲/۹۳)-
[3] تهذيب الكمال (۳۰/٤۶۲)-
[4] حواله بالا
[5] تهذيب الكمال (۳۰/٤۶۳-٤۷۰)-
[6] تهذيب الكمال (۳۰/٤۷۰) و سير اعلام النبلاء (۹/۱٤۲)-
[7] -تهذيب الكمال (۳۰/٤۷۱) وسير اعلام النبلاء (۹/۱٤٤)-

بيا دوى فرمائى "كان وكيع مطبوع الحفظ و كان وكيع حافظا وكان احفظ من عبدالرحمن بن مهدى كثيرا كثيرا"[1] يعنى "د وكيع حافظه فطرى وه هغه واقعى حافظ وو او د عبدالرحمن بن مهدى په مقابله كښې د حفظ په اعتبار سره زيات قوى هم وو."

دغه شان امام احمد رحمه الله فرمائى "ما رايت رجلا قط مثل وكيع فى العلم والحفظ والاسناد والابواب مع خشوع وورع"[2] يعنى ما په علم حديث كښې د حفظ، سند او فقهى ابوابو په اعتبار سره د وكيع پشان څوک ليدلې نه دى. ورسره ورسره هغه كښې خشوع او تقوى هم وه.

بيا فرمائى "كان وكيع بن الجراح امام المسلمين فى وقته"[3]

امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائى "اثبت بالعراق وكيع"[4]

بل ځائى فرمائى "وكيع عندنا ثبت"[5]

دغه شان دا هم فرمائى "ما رايت افضل من وكيع قيل له ولا ابن مبارك؟ قال: قد كان لابن مبارك فضل ولكن ما رايت افضل من وكيع كان يستقبل القبلة ويحفظ حديثه ويقوم الليل ويسرد الصوم و يفتى بقول ابى حنيفة وكان قد سمع منه شيئا كثيرا قال وكان يحيى بن سعيد القطان يفتى بقوله ايضا"[6]

يعنى "ما د وكيع نه افضل څوک ليدلې نه دى هر كله چې دوى ته اووئيلې شو چې ابن مبارک هم افضل دې نو وې فرمائيل چې د ابن مبارک شرف او فضيلت په خپل ځائى خو ما د وكيع نه افضل څوک ليدلې نه دى هغه به قبلې طرف ته مخ كړو او حديث به يې يادولو چې د تعظيم حديث دليل دې او د امام ابوحنيفه په قول باندې نې فتوى وركوله هغوى د امام صاحب نه ډير حديثونه اوريدلې وو دغه شان امام يحيى القطان به هم د امام ابوحنيفه په قول باندې فتوې وركولې"

قبله ته مخ كول او حديث يادول، مطلب دادې چې د حديث د عزت او احترام د پاره به يې داسې كول او ظاهره ده چې دې سره تنهائى هم حاصليږى.

هغوى دا هم فرمائى چې "ما رايت احدا يحدث لله غير وكيع و ما رايت رجلا قط احفظ من وكيع، ووكيع فى زمانه كالاوزاعى فى زمانه"[7]

---

[1] تهذيب الكمال (۳۰/ ٤٧١)-
[2] تهذيب الكمال(۳۰/ ٤٧٣)-
[3] حواله بالا
[4] تهذيب الكمال(۳۰/ ٤٧٤)-
[5] حواله بالا
[6] تهذيب الكمال (۳۰/ ٤٧٤)-
[7] تهذيب الكمال (۳۰/ ٤٧٥)-

يعني ما د وكيع نه علاوه بل څوک اونه ليدل چې د الله د پاره حديث بيانوی. او ما د وكيع نه اوچت بل حافظ نه دې ليدلې. د وكيع حيثيت په خپله زمانه كښې داسې دې لكه د امام اوزاعی رحمه الله ته چې خپله زمانه كښې حاصل وو

امام يحيى ابن معين رحمه الله فرمائی

"رايت عند مروان بن معاوية لوحا فيه اسماء شيوخ: فلان رافضي وفلان كذا و فلان كذا، ووكيع رافضي، قال يحيى: فقلت له: وكيع خير منك، قال: مني؟ قلت: نعم، قال: فما قال لي شيئا، ولو قال لي شيئا لوثب اصحاب الحديث عليه، قال: فبلغ ذالك وكيعا، فقال: يحيى صاحبنا"[1]

يعني ما مروان بن معاويه سره يو تختئ اوليدله چې په هغې باندې د شيوخو نومونه كنده وو، اودا پې ليكلې وو چې فلانكې رافضی دې فلانكې داسې دې او فلانكې داسې دې او وكيع رافضي دې. يحيى فرمائی چې ما ورته اووئيل چې وكيع ستا نه خه دې هغه اوونيل چې خما نه؟ ما ورته وې او ستا نه. بيا ئی ماته هيڅ اونه وئيلې اوكه وئيلې وې نو محدثينو به راگير كړې وو، او وئيلې شوې دی چې هر كله دا خبره وكيع ته اورسيده نو وئې فرمائيل چې يحيى خمونږه دوست دې"

ابن عمار فرمائی "ما كان بالكوفة في زمان وكيع افقه ولا اعلم بالحديث منه كان وكيع جهبذا"[2] يعني "كوفه كښې د وكيع نه لوئې محدث او فقيه نه وو. وكيع ډير ماهر عالم وو"

امام ابونعيم رحمه الله فرمائی "ما دام هذا الشيخ _يعني وكيعا_ حيا ما يفلح احد معه"[3] يعني تر څو چې دا ثقه او ثبت سړې موجود وی دده نه څوک مخكښې نشی تلې"

امام عبد الرزاق رحمه الله فرمائی "رايت الثوري وابن عيينة ومعمرا ومالكا، ورايت، فما رات عيناى قط مثل وكيع"[4] يعني "ما ثوری، ابن عيينه معمر او مالک اوليدل او ما فلانكې فلانكې هم اوليدو خو خما سترگو د وكيع پشان او نه ليدلو"

امام محمد بن سعد فرمائی "وكان ثقة مامونا، عالما، رفيعا، كثيرا الحديث، حجة"[5]

امام عجلی رحمه الله فرمائی "كوفي، ثقة، عابد، صالح، اديب من حفاظ الحديث وكان يفتي"[6]

امام حبان رحمه الله ددوی ذکر په خپل كتاب "الثقات" كښې كړې دې او ليكلې دی "وكان حافظا متقنا"[7]

---

[1] تهذيب الكمال (۳۰/۴۷۶)-
[2] تهذيب الكمال(۳۰/۴۷۷)-
[3] تهذيب الكمال(۳۰/۴۷۸)-
[4] تهذيب الكمال (۳۰/۴۷۹)-
[5] الطبقات الكبرى (۶/۳۹۴)-
[6] تهذيب الكمال(۳۰/۴۸۲)-
[7] الثقات لابن حبان(۷/۵۶۲)-

امام نووى فرمائى اجمعوا على جلالته ووفور علمه وحفظه واتقانه وورعه وصلاحه وعبادته وتوثيقه واعتماده[1] يعنى ددوى جلالت شان، كثرت علم، حفظ او پوخوالي، ويره، تقوى او نيكو كارى، عبادت گذارى او ثقاهت باندې د ټولو علماؤ اتفاق دې

حافظ ذهبى فرمائى وكان من بحور العلم وائمة الحفظ[2] البته امام وكيع باندې څه كلام هم د محدثينو نه نقل شوې دې. امام ابن المدينى رحمه الله فرمائى كان وكيع يلحن[3] يعنى وكيع به بعضې وخت په روايت حديث كښې لفظى غلطى كوله.

دغه شان فرمائى كان فيه تشيع قليل[4]

د امام احمد رحمه الله نه چې كله تپوس اوكړې شو اذا اختلف وكيع وعبدالرحمن بن مهدى بقول من نأخذ؟ نو هغوى جواب وركړو عبدالرحمن يوافق اكثر وخاصة فى سفيان وعبدالرحمن يسلم منه السلف ويجتنب شرب السكر وكان لايرى ان تزرع ارض الفرات[5]

يعنى د امام احمد رحمه الله نه چې كله تپوس اوكړې شو چې كله د وكيع او عبدالرحمن اختلاف پيدا شى نو د چا روايت به قبليږى؟ نو امام احمد رحمه الله اوفرمائيل چې د عبدالرحمن اكثر روايات موافقت كوى خاصكر چې كله د ابوسفيان نه روايت كوى. بل د عبدالرحمن نه سلف حضرات هم محفوظ او په امن دى هغوى به د نشه كونكى څيز نه څكلو او دفرات په زمكه كښې د زراعت هم قائل نه دې

تر څو چې د لحن فى الحديث تعلق دې نو د لحن نه مراد نحوى غلطى ده[6] اگر چې د علم نحو اهميت منلې شوې دې خو چونكه نحو يو داسې علم دې چې په دې كښې انسان هغه وخت پورې ماهر كيدې نه شى تر څو چې خان بالكل دې د پاره وقف نه كړى خكه محدثينو به په قدر د ضرورت دا علم حاصلولو او په دې كښې به ډير مستغرق كيدل نه[7] دې وجه نه محدثين داسې غلطيانې عيب نه شميرى

---

[1] تهذيب الاسماء واللغات(۲/۱۴۵)-

[2] سير اعلام النبلاء(۹/۱۴۲)-

[3] ميزان الاعتدال( ۴/۳۳۶)-

[4] حواله بالا

[5] حواله بالا

[6] قال السخاوى "فاللحن..كما قال صاحب المقياس بسكون الحاء امالة الكلام عن جهته الصحيحة فى العربية "فتح المغيث (۳/۱۶۶) التسميع بقراة اللحان و المصحف)-

[7] "كذا نومر ان نتعلم القران ثم السنة ثم الفرائض ثم العربية:الحروف الثلاثة فسرها بالجر و الكسر والرفع والنصب وذالك التوغل فيه قد يعطل عليه ادراک هذا الفن الذى صرح ائمته بانه لا يعلق الا بمن قصر نفسه عليه و لم يضم غيره اليه وقد قال ابو احمد بن فارس فى جزء ذم الغيبة " ان غاية علم النحو وعلم ما يحتاج اليه ان يقرا فلا يلحن ويكتب فلا يلحن فاما ما عدا ذالک فمشغلة عن العلم... [بقيه حاشيه په راروانه صفحه..

امام نسائى فرمائى "انه لايعاب اللحن وقد كان اسماعيل بن ابى خالد يلحن وسفيان ومالك بن انس رحمهم الله وغيرهم من المحدثين"[1]

يعنى محدثينو د باره لحن څه غيب نه دي خکه به امام اسماعيل بن ابى خالد .سفيان او مالک بن انس په شان محدثينو به لحن کوو

امام سلفى رحمه الله فرمائى "وقد كان فى الرواية على هذا الوضع قوم واحتج بروايتهم فى الصحاح ولا يجوز تخطئتهم وتخطئة من اخذ عنه"[2] يعنى په راويانو کښې ډير حضرات داسې دى چې هغوى نه لحن صادريږى خو په صحاح کښې ددې رواياتو نه احتجاج اوکړې شو لهذا اوس دې ته نه غلطى ونيلې شو او نه ورته خطا

بله خبره چې دده په باره کښې بيان کړې شوې ده هغه داده چې ده کښې لږه قدرې تشيع وه.

امام احمد رحمه الله هم "وعبدالرحمن يسلم منه السلف" سره دې ته اشاره کړې ده. نو معلومه شوه چې د عبدالرحمن بن مهدى د طرف نه خو سلف محفوظ وو او امام وکيع نه سلف محفوظ نه وو خو روستو تاسو د امام يحيى بن معين په کلام کښې کتلى وو چې هغوى ددې ترديد کړې دې. دغه شان د امام احمد رحمه الله توثيق وتعديل کلمات روستو هم تير شوې دى او کتب رجال کښې ددې په شان ډير کلمات موجود دى

خو دا خبره هم په نظر کښې ساتل پکار دى چې د متقدمينو په نيز د تشيع اطلاق په هغه څه کيږى چې کله څوک حضرت على رضى الله عنه سره محبت شروع کړى او نورو صحابه کرامو باندې دوى ته اوچتوالې ورکړى که صرف په حضرت ابوبکر رضى الله عنه او حضرت عمر رضى الله عنه باندې هم فوقيت ورکړى نو بيا به هم غالى فى التشيع او رافضى ګڼړلې شى[3] ددې نه دا معلوميږى چې "كان فيه تشيع قليل" د کومې درجه کلام دې

دغه شان د امام احمد رحمه الله دا وينا چې امام عبدالرحمن به د نشې څيز نه څکلو او د فرات د زراعت هم قائل نه وو.نو اشاره دېته ده چې امام وکيع د دوارو څيزونو قائل وو

خو دا خبره هم واضحه نه ده اول دا چې ددې عيوبو باوجود امام احمد به دوى ثقه او معتبر ګڼړلو .دونمه خالص اجتهادى مسئله ده.امام وکيع د يو خاص قسم نبيذ د حلت قائل وو او هغه به يې څکلو چې هغه په مسکر باندې مشهور شو حالانکه هغه مسکر نه وو.صرف ددې

---

بقيه حاشيه د تيرمخ] وعن كل خير و ناهيک بهذل من مثله"
وقد قال ابو العيناء لمحمد بن يحيى الصولى:النحو فى العلوم كالملح فى القدر اذا اكثرت منه صار القدر زعاقا وعن الشافعى قال انما العلم علمان علم للدين وعلم للدنيا فاللذى للدين الفقه والاخر الطب وعلى ذالک يحتمل حال من وصف من الائمة باللحن كاسماعيل بن ابى خالد الاحمسى وعوف بن ابى جميلة وابى داود الطيالسى وهشيم والدراوردى"فتح المغيث للسخاوى(١٦٢/٣)-

[1]) الكفاية(١٨٧) باب ذكر الرواية عمن كان لا يرى تغيير اللحن فى الحديث)-

[2]) فتح المغيث للسخاوى (١٦٣/٣)-

[3]) هدى السارى مقدمة البارى(ص٤٥٩)فصل فى تمييز اسباب الطعن)-

وجه چې هغه به لږ ساعت پس مسکر کيدلو نو د مسکر په نوم باندې مشهور شو.نو ظاهره ده چې دا د يو مجتهد اجتهاد وو چې د هغې په غلطۍ باندې هم يو نيکى ده.او دا خبره د فرات د زمکې د کر باره کښې هم ونيلې شى چې دا د امام مجتهد اجتهاد وو

هم دغه وجه ده چې امام نووى يو فيصله کن خبره اوکړه اجمعوا على جلالته ووفور علمه وحفظه واتقانه وورعه وصلاحه وعبادته وتوثيقه واعتماده[1]

د امام وکيع رحمه الله ولادت په ١٢٨ه کښې شوې وو او وفات يې يوم عاشوره ١٩٧ه کښې اوشو رحمة الله تعالى واسعة

③ **سفيان** ددې نه سفيان ثورى رحمه الله مراد دې يا سفيان بن عيينه رحمه الله؟

علامه کرمانى رحمه الله فرمائى چې داوړه کېدې شى ځکه چې امام وکيع ته هم د سفيان ثورى نه سماع حاصله شوې ده اوهم د سفيان بن عيينه نه.دغه شان دا دواړه دمطرف نه روايت نقل کوى هغه فرمائى چې دې خبره کښې د التباس څه بده خبره نه ده ځکه چې دواړه امامان او حافظان دى. ضابط عادلان او مشهور دى او د امام بخارى رحمه الله د رجالو نه دى چې د هغوى نه دوى په کثرت سره د حديثو تخريج کړې دې.

خو امام ابومسعود غسانى دمشقى رحمه الله په كتاب التقييد کښې ليکلې دى چې دا حديث د ابن عيينه نه محفوظ دې اګرچې امام بخارى دا بيان نه کړو.

يزيدعدنى رحمه الله دا روايت د سفيان ثورى نه نقل کړې دې[2]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چې دلته د سفيان نه سفيان ثورى مراد دې ځکه چې امام وکيع اګرچې د دواړو نه نقل کړې دې خو بيا هم هغه د ثورى نه روايت زيات کوى او د ابن عيينه نه کم او دا قاعده ده چې کله يو کس دوه متفق الاسم شيوخو نه نقل کوى د اهمال نسبت په صورت کښې به په هغې محمول کيږى چاته چې څه خصوصيت يعنى اکثار حاصل وى لهذا دلته سفيان ثورى متعين دې[3]

علامه عينى د حافظ رحمه الله رد کړې دې او ليکلې دى چې دا خبره واضحه او ثابت شده ده چې وکيع ته دواړو نه سماع حاصله ده او بيا دواړو ته د مطرف نه سماع حاصله ده نوځکه د حافظ ذکر کرده خبره راجح نشى کيدلې خاص کر امام مسعود خو صفا ونيلې دى محفوظ د ابن عيينه روايت دې[4]

د سفيان ثورى رحمه الله حالات كتاب الايمان باب علامة المنافق کښې تير شوې دى[5]

---

[1] تهذيب الاسماء واللغات (١٤٥/٢)-
[2] شرح الكرمانى(١١٨/٢)-
[3] فتح البارى(٢٠٤/١)-
[4] عمدة القارى (١٥٨/٢)-
[5] كشف البارى (٣٧٨/٢)-

او د سفیان بن عیینه رحمه الله مختصرا حالات په بدء الوحی کښې تیر شوي دی[۱] او تفصیلا کتاب العلم باب قول المحدث حدثنا او اخبرنا و انبانا کښې تیر شوي دی[۲]

⊙مطرف دا مطرف بضم الميم و فتح الطاء المهملة وتشديد الراء المكسورة وبعدها فاء[۳] بن طریف بروزن عظیم[۴] حارثی رحمه الله دې بعضو ددوی نسبت خارفی لیکلې دې په دې دواړو کښې یو مصحف دې[۵]

د دوی کنیت ابوبکر یا ابوعبدالرحمن دې[۶]

دوی د اشعث نقاش، امام شعبی. ابواسحاق بیهقی. عبدالرحمن بن ابی لیله. حبیب ابن ثابت. سلمة بن کهیل. الحکم ابن عتیبه. امام اعمش او امام عاصم بن ابی النجود رحمهم الله نه روایت نقل کوی

ددوی نه روایت کونکو کښې سفیان ثوری.سفیان بن عیینه. ابوجعفر رازی. ابوحمزه سکری. ابو عوانه. محمدبن فضیل امام ابویوسف.هشیم بن بشیر او حریر بن عبدالحمید رحمهم الله وغیره دی[۷]

امام احمد بن حنبل او امام ابوحاتم رحمهماالله فرمائی ثقة[۸]

امام شافعی رحمه الله فرمائی "ما كان ابن عيينة بأحد اشد اعجابا منه بمطرف"[۹] یعنی ابن عیینه ته چې څومره مطرف خوښ وو داسې ورته بل څوک خوښ نه وو.

ذواد بن علبه رحمه الله فرمائی چې "ما اعرف عربيا ولا عجميا افضل من مطرف بن طريف"[۱۰]

امام یحیی ابن معین فرمائی "ثقة"[۱۱]

امام عجلی رحمه الله فرمائی "صالح في الكتاب ثقة في الحديث ما ينكر عنه الا غلوه في المذهب"[۱۲]

امام یعقوب بن سفیان رحمه الله فرمائی "ثقة"[۱۳]

---

۱) کشف الباری(۲/۲۳۸)-
۲) کشف الباری (۲/۸۶)-
۳) تقریب التهذیب (ص۵۳۵) رقم (۶۷۰۵)-
۴) المغنی فی ضبط اسماء الرجال(ص۴۹)-
۵) سیراعلام النبلاء (۲/۱۲۷) وتهذیب الکمال (۲۸/۶۲)_
۶) حواله بالا
۷) تهذیب الکمال (۲۸/۶۲)-
۸) تهذیب الکمال (۲۸/۶۴)-
۹) تهذیب الکمال (۲۸/۶۵) وشیر اعلام النبلاء(۶/۱۲۷)-
۱۰) تعلیقات الکمال (۲۸/۶۵) وسیر اعلام النبلاء(۶/۱۲۸)-
۱۱) تعلیقات التهذیب (۲۸/۱۷۳)-
۱۲) تهذیب التهذریب (۱۰/۱۷۳)-
۱۳) تعلیقات تهذیب الکمال (۲۸/۶۷) نقلا عن المعرفة و التاریخ(۳/۹۴)-

امام يعقوب بن شيبه رحمه الله فرمائي "ثقة ثبت"[1]
حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي "الامام المحدث القدوة"[2]
بيا فرمائي "ثقة امام عابد"[3]
حافظ ابن حجر فرمائي "ثقة فاضل"[4]
ابن حبان ددوى ذكر خپل كتاب "الثقات" كښې كړې دې[5]
ددوى وفات ۱۴۳ كښې شوې وو[6] رحمه الله تعالىٰ رحمة واسعة

⑤ **الشعبي** دا مشهور امام ابوعمرو عامر بن شراحيل الشعبي الكوفي رحمه الله دې ددوى مختصر حالات په "كتاب الايمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده" لاندې تير شوې دى[7]
دلته لږ په تفصيل سره ددوى حالات ذكر كيږى
د امام شعبي رحمه الله ولادت د حضرت عمر رضي الله عنه د وفات نه شپږ كاله پس شوې وو[8]
په اوچتو تابعينو كښې ددوى شمير كيږى تقريبا پنځه سوه صحابه كرامو سره ددوى ملاقات شوې دې[9]
دوى د حضرت على. حضرت سعد. حضرت سعيد بن زيد. زيد بن ثابت. عباده بن الصامت. ابوموسى اشعرى. ابومسعود انصارى. ابوهريره. مغيره بن شعبه. ابوجحيفه. جابر بن سمره. جابر بن عبدبن عبدالله. عبادله اربعه. ابوسعيد خدرى. انس رضي الله عنهم. عائشه. ام سلمه. ميمونه بن الحارث او اسماء بنت عميس رضي الله عنهن نه نقل كوى.
په تابعينو كښې د حارث اعور. خارجه بن الصلت. زر بن حبيش. قاضى شريح. عبد الرحمن بن ابى ليلى. عروة بن مغيره. عمرو بن ميمون. مسروق بن الاجدع او ابو برده بن ابى موسى اشعرى رحمه الله نه روايت كوى.
او ددوى نه روايت كونكو كښې ابواسحاق. اسماعيل بن ابى خالد. بيان بن بشر. زكريا بن ابى زائده. سلمة بن كهيل. سماك بن حرب. عاصم الاحول. قتاده. مطرف بن طريف. مغيره بن مقسم. مكحول شامى. منصور بن المعتمر. امام ابوحنيفه. او يونس بن ابى اسحاق

---

[1] تهذيب التهذيب(۱۰/۱۷۳)-
[2] سير اعلام النبلاء(۶/۱۲۷)-
[3] الكاشف للذهبي(۲/۲۶۹) رقم (۵٤۷۷)-
[4] تقريب التهذيب(ص ۵۳٤)رقم (۶۷۰۵)-
[5] الثقات لابن حبان(۷/٤۹۳)-
[6] الكاشف للذهبي(۲/۲۶۹) رقم (۵٤۷۷)-
[7] كشف البارى (۱/۶۷۹)-
[8] تهذيب الكمال (۱٤/۲۸)-
[9] الكاشف للذهبي(۱/۵۲۲)رقم(۲۵۳۱)

وغیره شامل دی.[1]

ابو مجلز رحمه الله فرمائی "ما رایت فیهم افقه من الشعبی"[2]

حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی "کان والله کبیر العلم عظیم الحلم قدیم السلم من الاسلام بمکان"[3]

امام مکحول رحمه الله فرمائی "ما رایت افقه من الشعبی"[4]

امام یحیی بن معین او امام ابوزرعه وغیره فرمائی "ثقة"[5]

امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی "اذا حدث الشعبی عن رجل فسماه، فهو ثقة یحتج بحدیثه"[6]

امام عجلی رحمه الله فرمائی "و مرسل الشعبی صحیح لایکاد یرسل الا صحیحا"[7]

امام سفیان بن عیینه فرمائی "کانت الناس تقول بعد الصحابة: ابن عباس فی زمانه والشعبی فی زمانه والثوری فی زمانه"[8]

ابوحصین رحمه الله فرمائی "ما رایت اعلم من الشعبی"[9]

ابو اسحاق الحبال رحمه الله فرمائی "کان واحد زمانه فی فنون العلم"[10]

عاصم بن سلیمان فرمائی "ما رایت احدا بحدیث اهل الکوفة و البصرة والحجاز والآفاق من الشعبی"[11] یعنی ما د اهل کوفه.بصره. حجاز او د ټولو اطرافو د احادیثو د شعبی نه غټ بل عالم او نه لیدلو"

امام شعبی رحمه الله عبدالرحمن بن الاشعث کندی رحمه الله سره ملګرے شو او د حجاج بن یوسف خلاف یې خروج کړے وو خو بیا روستو معافی تلافی اوشوه او دغه شان دوی د حجاج د ګرفتارئ نه بچ شول[12]

---

[1] ) تهذیب الکمال (۱۴/۲۹) و تهذیب التهذیب (۵/۶۵)
[2] ) تهذیب الکمال (۱۴/۳۴)-
[3] ) حواله بالا
[4] ) تهذیب الکمال (۱۴/۳۵)-
[5] ) حواله بالا
[6] ) حواله بالا
[7] ) تهذیب الکمال (۱۴ ۳۶)-
[8] ) تهذیب التهذیب (۵ ۶۷)
[9] ) تهذیب التهذیب (۵ ۶۹)
[10] ) حواله بالا
[11] ) سیر اعلام النبلاء (۴ ۳۰۲۹)
[12] ) سیر اعلام النبلاء (۴/۳۰۴)-

په طبيعت کښې د خنده ماده ډيره وه فرمائي چې يو خل ماته يو کس راغلو دغه وخت ماسره يوه زنانه ناسته وه دغه کس د راتلوسره تپوس اوکړو ايکما الشعبي نو ما ورته اونيلې هذه.[1]
د امام شعبي وفات په ۱۰۳ه يا ۱۰۴ه کښې اوشو.[2]

⑥ **ابوجحيفه**: دا حضرت ابوجحيفه وهب بن عبدالله السوائي ﷜ دې ددوی شمير په صغارصحابه کرامو کښې کيږي خکه چې کله حضورپاک ﷺ وفات شو نو دوی دغه وخت بلوغت ته رسيدلی نه وو.[3]

دوی حضورپاک ﷺ نه علاوه د حضرت علی او حضرت براء بن عازب ﷜ نه هم روايت کوی. ددوی نه روايت کونکو کښې ابواسحق سبيعي، سلمة بن کهيل، عامر شعبي، علي بن الاقمر، عون بن ابي جحيفه، زياد بن زيد، حکم بن عتيبه او اسماعيل بن ابي خالد ﷭ شامل دی.[4]

حضرت علی ﷜ سره ددوی خاص تعلق ووهغوی چې به کله خطبه ورکوله نو دوی به لاندې ولاړ وو.[5]

حضرت علی ﷜ دوی ته د پوليس ذمه داری ورکړې وه. دوی د حضرت علی ﷜ په ټولو مشاهداتو کښې شرکت کړې وو.[6]

حضرت علی ﷜ دوی ته وهب الخير لقب ورکړې وو.[7]

حضرت ابو جحيفه ﷜ نه ټول پنځه څلويښت احاديث مروی دی په دې کښې متفق عليه دوه حديثونه دی او امام بخاری په دوه احاديثو کښې او امام مسلم په دريو احاديثو کښې متفرد دې[8] دصحيح قول په اعتبار سره د دوی وفات په ۷۴هـ کښې شوې دې[9] رضي الله عنه وارضاه

⑦ **حضرت علی** ﷜: د حضرت علی ﷜ حالات روستنی باب باب اثم من كذب على النبي ﷺ کښې تير شوی دی.

**قوله**: هل عندكم كتاب؟: آيا تاسره يو کتاب شته؟

حضرت ابوجحيفه ﷜ فرمائي چې ما د حضرت علی ﷜ نه تپوس اوکړو چې آيا تاسره داسې څه شته چې حضورپاک ﷺ د وحی نه صرف تاته درکړې وی او ددې دليل دادې چې امام

---

[1] سيراعلام النبلاء (۳۱۱/٤)-
[2] الكاشف (۵۲۲/۱) رقم (۲۵۳۱)-
[3] الاصابة (٦٤٢/۳) وتهذيب الكمال (۱۳۲/۳۱)-
[4] تهذيب الكمال (۱۳۳/۳۱)-
[5] سيراعلام النبلاء (۲۰۳/۳)-
[6] سيراعلام النبلاء (۲۰۳/۳) وعمدة القاری (۱۵۹/۲)-
[7] الاصابة (٦٤٢/۳)
[8] تهذيب الاسماء واللغات (۲۰۲/۲) وخلاصة الخزرجي (ص٤١٨)-
[9] سيراعلام النبلاء (۲۰۳/۳)-

بخاری په کتاب الجهاد کښې روایت نقل کړې دې "هل عندکم شیء من الوحی الا ما فی کتاب الله"[1]،
په مسند اسحاق بن راهویه کښې دی "هل علمت شیئا من الوحی"[2]،
ددې سوال مطلب دادې چې د اهل بیتو او خاصکر د حضرت علی رضي الله عنه د پاره خصوصی هدایات شوې دی چې د هغې نه نور څوک خبر شوې نه دی[3]،

**قوله: قال: لا الا کتاب الله اوفهم اعطیه رجل مسلم اوما فی هذه الصحیفة:** ونې فرمائیل چې نا سوا د کتاب الله نه یا هغه چې یو مسلمان ته ورکړې کیږی یا څه چې دې صحیفه کښې دی

یعنی ما سره مخصوص وحی نشته سوا د کتاب الله یا هغه علم چې یو انسان په خپل قوت عاقله او فهم سره حاصلوی یا څه چې دې صحیفه کښې دی

علامه ابن قیم رحمه الله فرمائی چې دې نه مراد علم لدنی دې چې د عبادت. تابعدارئی، په عمل کښې د اخلاص او د کتاب او سنت نه د علم حاصلولو نتیجه ده.

علامه ابن قیم د خبرې نه دا معلومیږی چې د علم لدنی د پاره درې شرطونه دی اول دا چې انسان عمل اوکړی او بندګی اوکړی دویم دا چې دې کښې اخلاص وی او دریم دا چې د کتاب اوسنت مطابق اوکړې شی او یو څلورم څیز دادې چې د حضورپاک صلی الله علیه وسلم متابعت پکښې هم وی.

بعضې وخت علم د کتاب وسنت مطابق وی خو متابعت پکښې نه وی او متابعت خو دا غواړی چې نیت صحیح وی او افعالو کښې د امام پسې تګ وی اوس که څوک په ظاهره د امام مشابهت اختیار کړی خو په نیت او اراده کښې مخالفت کوی نو دا سړې تابعدار نه دې مثلا حضورپاک صلی الله علیه وسلم حدود قائم کړل قصاص یې واخستلو چې د معاشرې نه د جرائمو ختمیدنه اوشی، اوس که څوک قصاص اخلی او په زړه کښې یې ذاتی د انتقام جذبه وی نو دده ظاهری کار خو د سنت مطابق دې خو په باطن کښې مخالف دې، لهذا د کتاب او سنت نه علم حاصلولو نه پس پکار دی چې د حضورپاک صلی الله علیه وسلم په طریقه یې اوکړې شی والله اعلم

**ایا د فهم نه مراد څه لیکونکې څیز دې؟** دلته چې حضرت علی رضي الله عنه د کوم فهم ذکر کړې دې یا دا څه لیکونکې څیز وو یا نا؟

علامه ابن منیر رحمه الله فرمائی چې دا لیکلې شوې څیز وو[4]،

علامه سندهی هم احتمالا ددې ذکر کړې دې[5]، والله اعلم

---

[1] صحیح البخاری(۴۲۸/۱) کتاب الجهاد والسیر باب فکاک الاسیر (رقم ۳۰۴۸)-
[2] فتح الباری(۲۰۴/۱)-
[3] شرح الکرمانی(۱۱۹/۲)-
[4] فتح الباری(۲۰۴۹/۱)-
[5] حاشیة السندی علی صحیح البخاری(۵۵/۱)-

**قوله: اوما في هذه الصحيفة:** او يا څه چې دې صحيفه کښې دى
دا يو صحيفه وه چې د تورې په ميان کې پرته وه او د هغې کښې څه خاص مسائل وو چې د هغې ذکر روستو راروان دې.
ددې نه دا معلوميږى چې حضرت على ﷺ سره دې نه علاوه بل څه نه وو چې وحى سره يې تعلق ساتلو
د صحيح مسلم يو روايت کښې دى من زعم ان عندنا شيئا نقراه الا کتاب الله و هذه الصحيفة قال: وصحيفة معلقة فى قراب سيفه ـ فقد کذب [1]
يعنى څوک چې دا دعوى کوى چې ما سره کتاب الله او دې صحيفې نه علاوه بل څه هم دى چې هغه مونږه وايوو نو هغه دروغژن دې او فرمائيلې شوې دى چې ددوى د تورې په نيام کښې يو صحيفه هم وه.
دغه شان صحيح بخارى کښې دى "والله ماعندنا من کتاب يقرا الا کتاب الله و ما فى هذه الصحيفة" [2]
**قوله: قال قلت فما في هذه الصحيفة؟:** ابو جحيفه فرمائى چې ما ترې تپوس اوکړو چې دې صحيفه کښې څه دى؟
**قوله: قال العقل:** حضرت على ﷺ اوفرمائيل چې د هغې کښې عقل دې
عقل ديت ته وئيلې شى [3]
اصل کښې به د ديت اوښان ولى الدم دروازې سره تړلې شول نو خکه دې ته يې عقل اووئې او دې نه پس بيا هر ديت ته عقل اووئيلې شو [4]
**قوله: وفکاك الاسير:** او قيديان پريښودل
يعنى په دې کښې د قيديانو د خلاصيدو احکام او د هغې ترغيب ورکول وو [5]
**قوله: ولا يقتل مسلم بکافر:** او دا چې يو مسلمان به د کافر په بدله کښې نه قتل کيږى
دا مسئله د کتاب الديات ده خو بيا هم لږ تفصيل دلته بيانوو
**ايا يو مسلمان به د کافر بدله کښې قصاصا قتل کولې شى که نه؟** ائمه ثلاثه او جمهور فرمائى چې مسلمان د کافر بدله کښې قصاصا قتل کولې نه شى

---

[1]) صحيح المسلم کتاب الحج باب فضل المدينة رقم(۳۳۲۸)-
[2]) صحيح البخارى (۲/۱۰۸٤) کتاب الاعتصام بالکتاب و السنة باب ما يکره من العمق والتنازع فى العلم والعلو فى الدين و البدع(رقم ۷۳۰۰)-
[3]) معجم مقاييس اللغة رقم(٤/۷۰)
[4]) سميت الدية عقلا لان الابل التى کانت توخذ فى الديات کانت تجمع فتعقل بفناء المقتول فسميت الدية عقلا وان کانت دراهم ودنانير.وقيل سميت عقلا لانها تمسک الدم مجم مقايس اللغة(٤/۷۰)-
[5]) فتح البارى(۱/۲۰۵)-

امام ابوحنيفه، امام ابويوسف، امام محمد، سعيد بن المسيب او ابراهيم نخعي رحمهم الله فرمائي كه يو مسلمان يو ذمي كس قتل كړو نو دې بدله كښې به دا مسلمان قتل كولې شي البته د حربي كافر بدله كښې به قتلولې نشي.[1]

**د ائمه ثلاثه دليل**: دائمه ثلاثه دليل د حضرت على رضي الله عنه حديث باب دې چې په هغې كښې ښكاره ده "لايقتل مسلم بكافر".

**د ائمه ثلاثه د دليل جواب**: احنافو ددې ډير جوابونه وركړې دى، يو جواب چې ډير مشهور دې هغه دا چې دلته كافر نه مراد حربى كافر دې او ددې دليل دا روايت دې "الالايقتل مومن بكافر ولا ذوعهد فى عهده" (اللفظ لابى داود)

دا حديث امام نسائي او امام ابوداود په خپل سنن او امام طحاوي په شرح معانى الاثار كښې دحضرت على رضي الله عنه نه روايت كړې دې.[2]

حافظ ابن عبد الهادى رحمه الله فرمائى "سنده صحيح".[3]

حافظ ابن حجر فرمائى "اسناده صحيح".[4]

دغه شان دا روايت امام احمد او امام ابوداود رحمهما الله "عمروبن شعيب عن ابيه عن جده" په طريقې سره نقل كړې دې[5] ابن عبد الهادى رحمه الله فرمائى "اسناده حسن".[6]

دا حديث دې طريقې سره د نورو حضراتو نه هم مروى دې[7]

ددې حديث نه استدلال داسې كيږى چې په دې كښې "ولا ذوعهد فى عهده" په "مومن" باندې عطف دې اوس مطلب دا شو چې "لايقتل مومن ولا ذوعهد فى عهده بكافر" يعنى يو مومن يا ذوعهد ذمى به د كافر بدله كښې نشى قتلولې او ذمى چې د كوم كافر بدله كښې قتل كولې نشى هغه كافر حربى دې او دا قاعده ده چې د معطوف او د معطوف عليه حكم يو وى هركله چې ذمى د كافر ذمى بدله كښې قتلولې شى او كافرحربى بدله كښې نشى قتلولې نو هم دغه شان دا حكم د مسلمان هم دې[8]

---

[1]) عمدة القارى(۲/۱۶۱)-

[2]) كتاب سنن النسائى باب سقوط القود من المسلم للكافر رقم(۴۷۴۹) وسنن ابى داود كتاب الديات باب ايقاد المسلم من الكافر رقم(۴۵۳۰)وشرح معانى الآثار(۲/۱۲۴)-

[3]) نصب الراية(۴/۳۳۵) كتاب الجنايات باب ما يوجب القصاص رقم (۷۷۳۱)-

[4]) الدراية فى تخريج احاديث الهداية(۲/۲۶۲) كتاب الجنايات رقم(۱۰۰۸)-

[5]) مسند احمد(۲/۱۸۰) وسنن ابى داود كتاب الديات باب ايقاد المسلم من الكافر رقم(۴۵۳۱)-

[6]) نصب الراية(۴/۳۳۵) كتاب الجنايات باب ما يوجب القصاص رقم(۷۷۳۲)-

[7]) رواه ابن ماجه فى سننه فى كتاب الديات باب لا يقتل مسلم بكافر رقم (۲۶۶۰) من حديث عبدالله بن عباس رواه البخارى فى تاريخه الكبر من عائشه كما فى نصب الراية (۴/۳۳۵)-

[8]) شرح معانى الآثار(۲/۱۲۴)-

امام شافعی رحمه الله فرمائی چې دې حدیث کښې دوه حکمونه جدا جدا بیان شوې دی اول حکم "لایقتل مومن بکافر" دې ددې تعلق قصاص سره دې او بل حکم "ولا ذوعهد فی عهده" چې ذمی تر څو عهد ذمه کښې وی هغه به قتلولې نشی

امام طحاوی ددې ① جواب دا ورکړې دې چې دا دواړه خبرې جدا جدا کول صحیح نه دی ـ ځکه چې ددې حدیث تعلق "الدماء المسفوك بعضها ببعض" سره دې ځکه چې د حضورپاک ﷺ ارشاد دې "المسلمون ید علی من سواهم یتکافو دماؤهم و یسعی بذمتهم ادناهم" دې نه پس یې اوفرمائیل "لایقتل مومن بکافر ولا ذوعهد فی عهده" معلومه شوه چې ددې حدیث تعلق هغه وینې سره دې چې قصاصا اوبهیدلې شی د عهد ذمه د وجه نه. د حرمت دم متعلق نه ده([1])

② دویم جواب دادې چې ددې حدیث تعلق زمانه جاهلیت سره دې یعنې دغه زمانه کښې که یو کس یو کافر مړ کړې وو او بیا قاتل مسلمان شو نو دغه مسلمان به د دغه کافر بدله کښې قتل کولې نشی.

ددې قرینه دا ده چې "لایقتل مومن بکافر" دوه موقع باندې نازل شوې دې اول هغه موقع چې حضورپاک ﷺ مدینه منوره ته تشریف راوړو او اهل ایمان او ددې ځائې اوسیدونکو سره دا معاهده اوشوه کومه چې امام ابوعبیدالقاسم بن سلام رحمه الله په "کتاب الاموال" کښې ذکر کړې ده چې د هغې سند دا دې "حدثنی یحیی بن عبدالله بن بکیر و عبدالله بن صالح قالا: حدثنا اللیث بن سعد قال: حدثنی عقیل بن خالد عن ابن شهاب انه قال: بلغنی ان رسول الله ﷺ کتب بهذا الکتاب"([2])

مخکښې د اوږدې معاهدې الفاظ دی([3])

چې په هغې کښې ذکر دی "وان المومنین المتقین ایدیهم علی کل من بغی و ابتغی منهم دسیعة ظلم او اثم او عدوان او فساد بین المومنین وان ایدیهم علیهم جمیعه و لو کان ولد احدهم لا یقتل مومن فی کافر ولا ینصر کافر اهل مومن"([4])

یعنې د ایمان او اهل تقوی لاس په هغه چا دې چې ظلم کوی اهل ایمان سره، پکار دی چې ظلم، ګناه او د اهل ایمان په مینځ کښې فساد ختم کړی او په یو ځائې د ظالم مخ نیوې اوکړی اګرچې ددوی د اولاد نه دا ظالم ولې نه وی یو مومن به بل مومن د کافر بدله کښې نه قتلوی او نه به د مومن مقابله کښې د کافر مدد کوی.

د علامه ظفراحمد عثمانی رحمه الله په نیز دا مرسل صحیح دې او په دې کښې شک نشته چې دې نه مراد کافر حربی دې نه چې ذمی. د اهل عرب دا عادت وو چې د مقتول بدله به یې د قاتل

[1]) شرح معانی الآثار(۲/ ۱۲٤)-
[2]) کتاب الاموال لابی عبید(ص۲۰۲)کتاب رسول الله بین المومنین و اهل یثرب و موادعته یهودها مقدمة المدینة)
[3]) کتاب الاموال(ص۲۰۲)-
[4]) کتاب الاموال(۲۰۳)-

د اولاد نه اخستله خکه حضورپاک ﷺ دې نه منع اوفرمائیله او ارشاد یې اوکړو چې د یو مومن د پاره دا جائز نه دی چې بل مومن په دې بنیاد قتل کړی چې ده د جاهلیت زمانه کښې یو کافر قتل کړې وو[1]

امام ابوعبید رحمه الله دې حدیث نقل کولو نه پس فرمائی "وانما کان هذا الکتاب فیما نری حدثان مقدم رسول الله قبل ان یظهر الاسلام ویقوی وقبل ان یومر باخذ الجزیة من اهل الکتاب"[2] یعنی دا مکتوب خمونږ په رائې کښې د هغه وخت دې چې کله حضورپاک ﷺ نوې نوې راغلې وو اسلام ته لا غلبه او مضبوطیا حاصله نه وه او په دې قرینه داده چې په دې معاهده کښې "للیهود دینهم وللمومنین دینهم" الفاظ موجود دی[3] چې په دې خبره دلیل دې چې حضورپاک ﷺ مدینې ته راتلو سره دا معاهده کړې وه.

په بله موقع کښې چې دا اوفرمائیل "لا یقتل مومن بکافر" نو دا د فتح مکه موقع وه چې حضورپاک ﷺ په خطبه کښې دا اعلان اوفرمائیل، امام بیهقی د عطاء، طاوس مجاهد او حسن بصری رحمهم الله نه نقل کړې دی "ان رسول الله ﷺ قال یوم الفتح لا یقتل مومن بکافر"[4]

امام بیهقی رحمه الله فرمائی "قال الشافعی وهذا عند اهل المغازی ان رسول الله تکلم به فی خطبته یوم الفتح وهو یروی عن النبی ﷺ مسندا من حدیث عمرو بن شعیب وحدیث عمران بن حصین"[5]

امام شافعی رحمه الله فرمائې چې دا خبره اهل مغازی ته ښکاره ده چې حضورپاک ﷺ دا فتح مکه موقع کښې فرمائیلې وه دا د عمرو بن شعیب او عمران بن حصین نه مسندا هم مروی ده.

دې نه دا معلومه شوه چې حضورپاک ﷺ کوم اعلان فرمائیلې وو چې "الا کل ماثرة او دم او مال یدعی فهو تحت قدمی هاتین" سیرة ابن هشام (۴۱۲/۲) وزاد المعاد (۴۰۷/۳)- یعنی هر قسم انتقامی کاروائی قصاص یا د مال دعوی کیږی هغه ټول خما د خپو لاندې دی" دلته د دم نه په جاهلیت کښې توی شوې وینه مراد ده.

ددې وجه داده چې اهل مغازی او سیر ذکر کړې دی چې دعهد ذمه ذکر د فتح مکه نه پس شروع شوې دې، دې نه مخکښې د دوی او د مشرکینو په مینځ کښې یو تاکلې مودې پورې مصالحت شوې وو خو دا مطلب ئې نه وو چې کافر د اسلام په ذمه کښې داخل شو[6] نو د فتح مکه موقع کښې دا فرمائیل "لا یقتل مومن بکافر" د هغه کافرو باره کښې وو چاسره چې

[1] اعلاء السنن (۱۰۲/۱۸) کتاب الجنایات باب قتل المسلم بکافر)-
[2] کتاب الاموال (ص ۲۰۷)
[3] کتاب الاموال (ص ۲۰٤)-
[4] السنن الکبری للبیهقی (۲۹/۸) کتاب الجنایات باب فیمن لا قصاص بینه باختلاف الدینین)-
[5] حواله بالا
[6] اعلاء السنن (۱۰۲/۱۸)-

مصالحت شوې وو ځکه چې هغه وخت د اهل ذمه وجود د سره وو نه، او په دې قرينه داحديث دې "ولا ذو عهد في عهده" او د الله تعالى ارشاد دې "فأتموا إليهم عهدهم إلى مدتهم"[1]
حاصله دا شوه چې د غه وخت د کفارو دوه قسمونه وو، يو هغه اهل حرب وو چاسره چې معاهده نه وه شوې او بله هغه چا سره چې يو نيټې مقرر پورې مصالحت شوې وو، ذمي څوک هم نه وو لهذا د "لايقتل مؤمن بكافر" نه صرف دا دوه قسم مراد دى نو اوس به د قصاص نفې دا حکم د حربي معاهد باندې منحصر وى په دې کښې د ذمى د داخليدو هيڅ تصور نشته[2]
مذکوره جواب باندې اشکال او د هغې جواب په دې دا اشکال دې چې بيا خو دې حديث کښې صرف دجاهليت د زمانې ذکر دې د اسلام د زمانې حکم خو ذکر نه دې.
ددې جواب دادې چې الله تعالى حضورپاک ﷺ ته جوامع الکلم ورکړې وو هغوى به په مختصر کلمه کښې ډير مسائل بيان کول دلته هم اګر چې "لايقتل مسلم بكافر" د جاهليت په زمانه رنړا اچوى خو ورسره د اسلام د زمانې هم حکم بيانوى، او دا بله خبره ده چې د نورو دلائلو په رنړا کښې دلته د کافر نه حربي کافر مراد دې ذمى مراد نه دې.والله اعلم
③ علامه انور شاه کشميرى رحمه الله فرمائى "لايقتل مسلم بكافر ولا ذو عهد في عهده" په تشريح کښې د علماؤ اختلاف دې چې آيا دا دواړه خبرې د قصاص متعلق دى څنګه چې احناف فرمائى يا رومبۍ جمله "لا يقتل مسلم بكافر" د قصاص متعلق او دويمه "ولا ذو عهد في عهده" حرمت دم متعلق ده؟ څنګه چې جمهور فرمائى
اوس که مونږ د جمهور موافقت اوکړو او اومنو چې د "ولا ذو عهد في عهده" تعلق حرمت دم سره دې قصاص سره نه دې نو بيا هم د ذمى حکم دادې چې دده په قتل به مسلمان قتلولې شى ددې وجه داده چې د ذمى بدله کښې د مسلمان قتلولو مسئله د عقد ذمه نه ماخوذ ده. اهل ذمه خپل مالونه ځکه خرچ کړل چې ددوى جان او مال د مسلمانانو پشان محفوظ شى، نو که څوک د هغوى په جان باندې زياتې کوى نو د هغه نه به بدله اخستلې شى څنګه چې د مسلمان د زياتى بدل اخستلې کيږى.
داسې اوګنړه چې د يو ذمى مال دارالاسلام کښې څوک پټ کړى نو غل که مسلمان وى او که کافر خو لاس به ترې کټکولې شى دغه شان که ذمى څوک قتل کړى نو قصاصا به قتلولې شى اګرچې مسلمان وى يا کافر يا ذمى، او حديث "لايقتل مسلم بكافر" کښې د کافر نه مراد کافر حربي دې ځکه چې ذمى د مسلمان په حکم کښې دې نو د حديث مطلب دا شو "ولايقتل مسلم و ذمي بكافر" يو مسلمان او ذمى به د کافر په بدله کښې نشى قتلولې ځکه چې ذمى په مال خرچ کولو سره د مسلمان په حکم کښې راغلې دې نو څنګه چې مسلمان د کافر بدله

[1] التوبة/٤)-
[2] اعلاء السنن (١٨/١٠٢)-

كښې قتلولې نشى دغه شان به ذمي هم نه شى قتل كولې، معلومه شوه چې دلته عبارت پټ نه دې بلكه مطلب بيان كولې شى.[1]

**د احنافو دلائل** د احنافو استدلال ددې باب د عام نصوص نه دې يا ايها الذين آمنو كتب عليكم القصاص فى القتلى.[2] دې آيت نه معلومه شوه چې د هر هغه قاتل نه به قصاص اخستلې شى چا چې په تيرۀ څيز سره په قصد سره قتل كړې وى البته كه د تخصيص څه دليل وى نو تخصيص به وى كنى نه به وى. اګرچې مقتول ذمى وى يا غلام،مذكر وى يا مونث خكه چې د قتلى لفظ ټولو ته شامل دې[3]

دلته څه اشكال ندې پكار چې په آيت كښې خطاب اهل ايمان ته دې نو د قتلى تعلق به هم اهل ايمان سره وى، ددې وجه داده چې تر سو دليل مخصوص نه وى راغلې هغې پورې په عموم لفظ باندې عمل په مونږ باندې لازم دى او دې آيت كښې داسې څيز نشته چې د بعضې د پاره موجب د قتل وى او د بعضې د پاره نه وى.

مخكښې "فمن عفى له من اخيه شئ" نه هم اشكال ندې پكار چې دلته اخيه وئيلې شوې دې او دا ښكاره ده چې كافر دمسلمان رور نشى كيدې نو خكه د آيت د راوړلو مراد دا شو چې دلته د قتلى نه "قتلى المومنين" مراد دې

دا اشكال دلته صحيح نه دې خكه چې كله په يو نص كښې عموم وى او روستو د خصوص الفاظو سره چې په دې باندې عطف وى نو په دې سره په عموم كښې تخصيص نه پيدا كيږى. خنګه چې دا ايت "و المطلقت يتربصن بانفسهن ثلاثة قروء" [4]دا مطلقه ثلاث ته هم شامل دې. مخكښې ارشاد دې "واذا طلقتم النساء فبلغن اجلهن فامسكوهن بمعروف او سرحوهن بمعروف"[5] بل خائى ارشاد دې "وبعولتهن احق بردهن فى ذالك"[6] ظاهر ده چې ددې دواړو آيتونو تعلق "مادون الثلاث" مطلقه سره دې ددې باوجود "والمطلقات يتربصن بانفسهن ثلاثة قروء" په عموم كښې څه تخصيص ندې شوى . دلته احتمال نسبى رورولئ دې نه چې د دينى رورولئ خنګه چې فرمائيلې دى "والى عاد اخاهم هود"[7]

---

[1] فيض البارى(١/ ٢١٠)-
[2] البقرة/١٧٨)-
[3] احكام القران للجصاص(١/ ١٣٣)-
[4] البقرة/ ٢٢٨)-
[5] البقره ٢٣١)-
[6] البقرة ٢٢٨)-
[7] الاعراف/ ٦٥)-

دويم آيت چې احنافودهغې نه استدلال کړې دې هغه دادې "وكتبنا عليهم فيها ان النفس بالنفس" [1] ددې عموم هم دا تقاضا کوی چې د کافر په بدله کښې دې مسلمان قتل کړې شی.
دغه شان ارشادباری تعالى دې "ومن قتل مظلوما فقد جعلنا لوليه سلطانا" [2] نه دا هم معلومه شوه چې د مسلمان يا کافر تخصيص نشته خکه چې د سلطان په مفهوم کښې "قود" يعنى قصاص شامل دې او په دې کښې تخصيص نشته [3]
علامه ظفرعثمانی رحمه الله فرمائی چې د قصاص باره کښې د امام ابوحنيفه كلى قاعده دا ده چې د کوم سړی وينا عصمت مقومه سره على التابيد معصوم وى او هغه په قصد سره قتل کړې شی او قصاص اخستل مشکل نه وى نو اخستل ئې واجب دى په دې کښې يو قيد يا شرط نه وى نو قصاص به نه وى [4]
دغه شان د امام صاحب په نيز يو قانون دادې چې کله يو نص د اصل کلى مقابل وى نو کتلې به شى چې نص د تاويل احتمال لرى که نه؟ که لرى نو په دې اصل کلى کښې به د نص د وجه تاويل کيږى خکه چې په يو وخت په دواړو عمل نشى کيدلې.
او که په نص کښې د تاويل احتمال وى نو تاويل به کيږى چې دواړو دليلونو باندې عمل اوکړې شى، خکه چې په دواړو عمل کول په يو د عمل کولو نه بهتر دې [5]
علامه ظفرعثمانی رحمه الله فرمائی چې څوک په امام صاحب باندې کلام کول غواړی نو اول دې په دې اصول کليه باندې کلام اوکړى يا په حديث "لايقتل مومن بكافر" کښې چې کوم تاويل شوې دې په هغې دې کلام اوکړى خو حقيقت دادې چې نه په دې اصول کليه کلام کيدې شى خکه چې د اصول پسند سړی په نيز دا بالکل صحيح دى، دغه شان په نص کښې چې کوم تاويل شوې دې په هغې کښې هم تاويل نشى کيدلې خکه چې د ذمی دپاره قصاص اخستلې شى او د مسلمان نه قصاص اخستلې شى او قصاص اخستل متعذر هم نه دى نو د قصاص پريښودلو هيڅ عذر پاتې نه شو، دغه شان دا لازمه شوه چې حديث کښې د "کافر" نه مراد "کافرحربی" واخستلې شى او مطلب به وى چې يو مومن به د کافر حربی بدله کښې قتل کولې نشى خکه چې کافر حربی غير مستامن مطلقا محقون الدم نه دې او که کافر مستامن وى نو هغه على التابيد مستامن نه دې دغه شان دا حديث د اصل کلى موافق گرزی [6]
د احنافو اصل استدلال د دې ذکرشوې نصوصو نه دې او د دې په رنړا کښې امام صاحب دا اصول ذکر کړې دى خو بيا هم د احنافو په تائيد کښې څه روايات هم شته چې هغه مونږ په

---

[1] المائدة/٤٥)-
[2] الاسراء/٣٣)-
[3] احكام القران للجصاص (١/١٣٤) واحكام القران للعلامة ظفراحمد عثمانى(١١٤٨)-
[4] اعلاء السنن(١٨/١٠٠) كتاب الجنايات باب قتل المسلم بكافر)-
[5] حواله بالا
[6] حواله بالا

تفصیل سره ذکر کوو

① امام محمد رحمه الله په کتاب الاثار کښې نقل کړې دی "بلغنا عن النبی ﷺ انه قتل مسلم بمعاهد وقال: انا احق من وفی بذمته" [۱]

یعنی "مونږ ته دا خبره د حضورپاک ﷺ نه رارسیدلې ده چې هغوی یو مسلمان د ذمی بدله کښې قتل کړو او ونې فرمائیل چې زه د ذمی حق ادا کولو زیات حقدار یم"

دا روایت امام شافعی رحمه الله خپل مسند کښې مسندا ذکر کړې دې فرمائی:

"اخبرنا محمد بن الحسن اخبرنا ابراهیم بن محمد بن محمد بن المنکدر عن عبدالرحمن بن البیلمانی: ان رجلا من المسلمین قتل رجلا من اهل الذمة فرفع ذالك الی رسول الله ﷺ فقال: انا احق بذمته ثم امر به فقتل" [۲]

یعنی یو مسلمان یو ذمی قتل کړو نو مقدمه حضورپاک ﷺ ته راغله نو هغوی اوفرمائیل چې زه دده د ذمی د حق ادا کولو زیات حقدار یم هغې نه پس نی د مسلمان د قتل حکم اوکړو نو هغه قتل کړې شو"

دې روایت باندې دا اعتراض اوشو چې دې کښې ابراهیم بن محمد راوی متروک دې او علماء د جرح او تعدیل په دې باندې سخت تنقید کړې دې [۳]

حقیقت دادې چې واقعی ابراهیم بن محمد باره کښې علماؤ سخت الفاظ استعمال کړې دی خو بیا هم دا بالکل متروک کول صحیح نه دی،

ددې یو وجه دا ده چې اکثر حضراتو په ده باندې د عقائدو د وجه نه کلام کړې دې او دې نې معتزلی، قدری، جهمی او رافضی گرځولې دې خو بیا هم ده ته چا عالیه فی العقیده او داعیه نه دی وئیلې لهذا د عقائد په بنیاد ده باندې کلام ښکار نه دې.

دویمه وجه دا ده چې چا ده باندې کلام کړې دې هغوی هم د ده د وسیع علم گواهی ورکوی، حافظ ذهبی رحمه الله په "تاریخ الاسلام" کښې په "الفقیه المدنی احد الاعلام" ښشان الفاظو سره دده ذکر کړې دې.

امام ابن حبان رحمه الله په کتاب المجروحین کښې نقل کړې دی چې رشدین بن سعد، ابراهیم بن ابی یحیی له په څادر کښې څه کتابونه راوړل او ونې وئیل "هذه کتبك واحادیثك اروبها عنك؟" هغوی اجازت ورکړو او ونې وئیل چې "نعم" بیا رشدین اووئیل "بلغنی انك رجل سوء فاتق الله وتب الیه" ماته معلومه ده چې ته یو خراب سړې نې د الله نه ویریږه او توبه اوباسه" ابراهیم تړې تپوس اوکړو چې زه خراب سړې یم نو څما نه حدیث ولې اخلې نو رشدین اووئیل "الم یبلغك ان الله یذهب العلم ویبقی منه فی اوعیة سوء فانت من الاوعیة السوء" یعنی تا اوریدلې نه دی چې علم به اوچت

[۱] کتاب الاثار (ص ۱۴۲) باب الدیات باب المعاهد رقم (۵۹)-

[۲] انظر اعلاء السنن (۱۸/۹۵) کتاب الجنایات باب قتل المسلم بکافر)-

[۳] میزان الاعتدال (۱/۵۷) رقم (۱۸۹)-

شي خو يو څو خرابو لوښو کښې به پاتې شي،ته هم هغه خرابو لوښو کښې يې دي واقعه نه د هغه د زيات علم اندازه کيدلې شي
دريمه وجه داده چې دده تعلق امام مالک رحمه الله سره ټهيک نه وو يو ځل ئې نااشنا کس ته ديرش احاديث واورول او ورته ئې اوئيل "حدثتك ثلاثين حديثا ولو ذهبت الى ذالك الحمار فحدثك بثلاثة احاديث لفرحت بها" يعني مالكا.
يعني "ما تاته ديرش احاديث واورول او که دې خر نه درې احاديث واورې نو خوشحاله به شې،اشاره ئې امام مالک رحمه الله ته وه"
څلورمه وجه دا وه چې دا د امام شافعي استاد وو هغه خپل استاد خه اولتولو او بيا ئې دهغه توثيق اوکړو او صرف امام شافعي نا بلکه حمدان بن الاصبهاني هم دده توثيق کوی. دغه شان ابن عقده رحمه الله فرمائي "نظرت فى حديث ابراهيم بن يحيى كثيرا وليس بمنكر الحديث" ابن عدی رحمه الله د ابن عقده په مرسته کښې ليکي:
"وهذا الذى قاله كما قال وقد نظرت انا فى حديثه الكثير فلم اجد فيه منكرا الا عن شيوخ يحتملون وقد نظرت انا فى احاديثه وتبحرتها وفتشت الكل منها فليس فيها حديث منكرا وانما يروى المنكر من قبل الراوى عنه او من قبل شيخه لا من قبله وهو فى جملة من يكتب حديثه وقد وثقه الشافعى وابن الاصبهانى وغيرهما"[1]
يعنى "خبره داده چې ابن عقد ئې کوی،ما دده په ډيرو احاديثو کښې غور اوکړو نو يو حديث منکر ميلاؤ نه شو البته بعضې شيوخو نه څه داسې منکر روايات دی چې هغه قبليدلې شي. ما د هغه احاديث کښې غور اوکړلو تحقيق او لټونه مې اوکړه خو يو حديث پکښې هم منکر نشته که دې کښې څه خرابي وی نو دده نه روايت کونکې راوی طرف نه به وی يا د هغه دشيخ طرف نه به وی،پخپله به د ده طرف نه نه وی،ځکه چې خپله هغه راويانو نه دې د چا چې حديث ليکلې شی امام شافعي او ابن الاصبهانی وغيره دده توثيق کړې دې"
که مونږ ابراهيم بن محمد متروک راوی اوګڼو بيا هم دې روايت نه استدلال کيدې شی ځکه چې دا په ډيرو طرقو سره مروی دې او په بعضې طرقو کښې دده ذکر نشته امام طحاوی يو طريق "سليمان بن شعيب،عن يحيى بن سلام،عن محمد بن حميد عن محمد بن المنكدر" نقل کړې دې په هغې کښې د ابراهيم بن محمد واسطه نشته[2]
دغه شان يو طريق "سليمان بن بلال عن ربيعة بن ابى عبدالرحمن عن عبدالرحمن بن البيلمانى" نه هم نقل دې[3] په دې کښې هم دده واسطه نشته دې،ده باندې امام بيهقى رحمه الله اعتراض کړې دې چې په دې کښې دده واسطه شته ځکه چې ابوعبيده نقل کړې دی "بلغنى عن ابن ابى يحيى انه قال انا

---

[1] تهذيب الكمال وتعليقاته (۲/۱۸۶)-
[2] شرح معانى الآثار(۲/۱۲۶)كتاب الجنايات باب المومن يقتل الكافر متعمدا)-
[3] شرح معنى الآثار(۲/۱۲۵)-

حدثت ربيعة به"(۱)

علامه ابن الترکمانی ددې جواب ورکړې دې چې "من بلغ ابا عبيد هذا؟"(۲) مطلب دادې چې ابوعبيده د بلاغ په توګه څه نقل کړې دی د هغې سند څه دې؟ دا بې سنده خبره ده

بيا امام ابوداود رحمه الله په "مراسيل" کښې "عن ربيعة عن عبدالرحمن بن البيلمانی" په طريق سره نقل کړې دې (۳) ددې د سند رجال ثقات دي (۴) دې نه معلومه شوه چې ابن ابی يحيی د حديث مدار نه دې څنګه چې امام بيهقی د باور ورکولو کوشش کړې دې.

که مونږ دا تسليم هم کړو چې ربيعه دا حديث د ابراهيم نه اخستلې دې بيا هم دا ونيل صحيح نه دی چې ددې حديث مدار ابراهيم دې څکه چې دې صورت کښې به سند څه دا رنګې وی "ربيعة عن ابراهيم بن ابی يحيی عن محمد بن المنکدر عن عبدالرحمن بن البيلمانی" ابراهيم دې کښې متفرد نه دې روستو مونږ امام طحاوی حوالې سره ذکر کړې دی چې د ابراهيم متابعت محمد بن حميد کړې دې چې ابن المنکدر نه نقل کوی (۵)

بيا امام دارقطنی رحمه الله دا روايت "عمار بن مطر عن ابراهيم بن محمد عن ربيعة بن ابی عبدالرحمن عن ابی البيلمانی عن ابن عمر" په طريقې سره مرفوعا او موصولا ذکر کړې دې (۶)

امام دارقطنی په دې سند يو د ابراهيم بن محمد د وجه نه کلام کړې دې فرمائی چې "وهو متروك الحديث" (۷)

دې نه علاوه دې حديث ته ئې مرسلا صحيح ونيلې دی او فرمائی چې دې کښې د ابن عمر رضی الله عنهما واسطه نشته (۸)

دغه شان فرمائی "وابن البيلمانی ضعيف لا تقوم به حجة اذا وصل الحديث فكيف بما يرسله" (۹)

يعنی ابن البيلمانی ضعيف دې که هغه حديث موصولا نقل کړی هم حجت نه دې نو مرسلا خو لرې خبره ده.

تر څو چې د ابراهيم بن محمد په باره کښې د کلام تعلق دې نو دهغه باره کښې مونږ په تحقيق سره واضحه کړې ده چې هغه ته بالکل متروک ونيل صحيح نه دی.

---

(۱) السنن الکبری للبيهقی (۳۱/۸) کتاب الجنايات باب بيان ضعف الخبر الذی روی فی قتل المومن بالکافر)-
(۲) الجوهر النقی (۳۳/۸)-
(۳) المراسيل لابی داود (ص ۱۲)-
(۴) اعلاء السنن (۹۵/۱۸)-
(۵) اعلاء السنن ۹۶/۱۸)-
(۶) سنن الدارقطنی (۱۳۵/۳) کتاب الحدود والديات رقم (۱٦۵)-
(۷) حواله بالا
(۸) حواله بالا
(۹) حواله بالا

او څو چې د ابن البيلماني د ضعف تعلق دې نو هغه مونږ منو چې بعض محدثينو دې کمزورې ګنړلې دې[1] خو ابن حبان نه صرف دې کتاب الثقات کښې ذکر کړې دی بلکه ښکاره کړې هم ده چې که دده نه روايت کونکو کښې دده ځوئې محمد وى نو د هغه د رواياتو هيڅ اعتبار نشته ځکه چې دده ځوئې ده نه عجيبه عجيبه روايات نقل کوى[2] بيا د سنن اربعه مؤلفينو دده روايات قبول کړې هم دى[3]

بيا ابن البيلماني متابعت عبدالله بن عبدالعزيز بن صالح حضرمى کړې دې، امام ابوداود په مراسيل کښې د "ابن وهب عن عبدالله بن يعقوب عن عبدالله بن عبدالعزيز بن صالح الحضرمى" په طريق سره نقل کړې دې قتل رسول الله ﷺ يوم حنين مسلما بکافر قتله غيلة وقال: انا اولى او احق من اوفى بذمته"[4]

يعنى "حضورپاک ﷺ د حنين په موقع يو مسلمان د کافر بدله کښې قتل کړو چې بې خبرئ کښې قتل شوې وو، نو حضورپاک ﷺ اوفرمائيل چه څه د ذمى حق ادا کولو ټولو نه زيات حقدار يم"

دې روايت کښې عبدالله بن يعقوب او عبدالله بن عبدالعزيز ته ابن قطان رحمه الله مجهول وئيلې دى ځکه دا فى الجمله ضعيف دې خو بيا هم د بل ضعيف د پاره د شاهد کيدلو صلاحيت لرى نو دلته د ابن البيلماني دا روايت بالکل ساقط نه دې بلکه مرسل حسن لعينه يا لغيره دې[5] بيا امام بيهقى رحمه الله په دې روايت باندې د عمار بن عطر د وجه نه کلام کړې دې او وئيلې دى "کان يقلب الاسانيد ويسرق الاحاديث"[6]

خو ښکاره دې وى چې بعضې حضراتو دده توثيق کړې او بعضو خو ده ته د "حافظ" صفت هم ورکړې دې، عبدالله بن سالم فرمائى "حدثنا ابوعثمان بن مطر الرهاوى وکان حافظا للحديث"[7]

دغه شان يوسف بن الحجاج فرمائى "حدثنا محمد بن الخضر بن على بالرقة، حدثنا عمار بن مطر: ثقة لسان الميزان ۳/۲۷۶۔

معلومه شوه چې عمار بن مطر يو مختلف فيه راوى دې دده حديثونه قابل احتجاج دى کم از کم استشهاد خو دده نه ضرور کيدې شى[8]

---

[1] قال ابوالحاتم: لين. تهذيب الكمال (۹/۱۸)-
[2] الثقات لابن حبان (۹۱/۵)-
[3] تهذيب الكمال (۱۰/۱۷)-
[4] المراسيل لابى داود (ص ۱۲)-
[5] اعلاء السنن (۹۶/۱۸)-
[6] السنن الكبرى للبيهقى (۳۰/۸)-
[7] ميزان الاعتدال (۱۶۹/۳) رقم (۶۰۴۹)-
[8] اعلاء السنن (۱۰۱/۱۸)-

بيا د ابن البيلماني دا حديث د امام ابوحنيفه. امام مالک او امام سفيان ثوري رحمهم الله نه هم راوي دي دا درې واړه ربيعة الرآى نه روايت كوي "وكفى بهؤلاء الائمة قدوة" روستو مونږ. اوونيل چې د ابن المنكدر او عبدالله بن عبدالعزيز مرسل روايتونه بطور متابع موجود دي نو ځکه د ابن البيلماني دا روايت حجت دې اګرچې مرسل دې خو کله چې مرسل مختلف طريقو سره ثابت شي نو ددې نه احتجاج كولې شي.[1]

خاصکر دا حديث حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه مرفوعا هم مروي دې او کله چې مرسل موصولا ذکر شي نو اګرچې د موصول طريق ضعيف ولې نه وي خو بيا هم د ټولو په نيز خاصکر د امام شافعي رحمه الله په نيز حجت دې.[2]

حاصل د خبرې دادې چې دا ابن البيلماني په دې روايت باندې مخالفينو ډير اعتراضات کړي دی. يو خو دا دې چې دا مرسل دې او ضعيف دې، نو ددې جواب خو مخکښې تير شو.

دويم اعتراض دادې چې د ابن البيلماني دا روايت "لايقتل مومن بكافر" سره منسوخ شوې دې ځکه چې دا حضور پاک ﷺ فتح مكه موقع باندې فرمائيلې وو

ددې جواب دادې چې د ابن البيلماني په دې روايت كښې داسې قرينه نشته چې هغې نه دا معلومه شي چې ددې تعلق فتح مكه نه مخکښې دې بلکه د عبدالله بن عبدالعزيز په روايت كښې ښكاره ده چې دا واقعه د غزوه حنين وه او غزوه حنين د فتح مكه نه پس وه

دريم اعتراض دا اوشو خراش بن اميه د قبيله هذيل يو كس د فتح مكه په موقع كښې قتل کړې وو په دې موقع حضور پاک ﷺ اوفرمائيل "لوكنت مومنا بكافر لقتلت خراشا بالهذلي".[3]

د معترضينو دا وينا ده چې اګرچې ددې سند واهی دې خو بيا هم ابن البيلماني په مقابله كښې بهتر دې.

ددې جواب دا دې چې په دې روايت كښې او د ابن البيلماني په روايت كښې تعارض نشته ځکه چې هذلي د اهل ذمه نه نه وه او د يو ښار فتح كولو سره او د قتل نه د بنديدلو د وجه نه دا لازم نه دی چې دغه خلق به ذميان وي، او كه ابن البيلماني روايت تعلق هم د حنين واقع سره وي ځكه چې د حضرمي د روايت نه معلوميږي نو د ابن البيلماني دا روايت د فتح مكه په واسطه سره ناسخ به جوړ شي.[4]

(۲)..د احنافو تائيد د حضرت عمر رضي الله عنه د فيصلې نه هم كيږي كومه چې امام محمد رحمه الله په كتاب الاثار كښې نقل كړې ده:

"محمد قال: اخبرنا ابوحنيفة عن حماد عن ابراهيم ان رجلا من بكر بن وائل قتل رجلا من اهل الحيرة فكتب

[1]) عقود الجواهر المنفية (۱۳۱/۲) بيان خبرالدال على قتل المسلم بالذمى)-

[2]) وقال الشافعي: يقبل ان اعتصد بمجيئه من وجه آخر يباين الطريق الاولى مسندا كان اومرسلا وسواء كان الثاني صحيحا او حسنا او ضعيفا انظر شرح شرح نخبة الفكر فى مصطلحات اهل الاثر (ص۴۰۷)-

[3]) السنن الكبرى (۲۹/۸) كتاب الجنايات باب فيمن لا قصاص بينه باختلاف الدينين)-

[4]) اعلاء السنن (۹۸/۱۸)-

فيه عمر بن الخطاب ان يدفع الى اولياء القتيل فان شاءوا قتلوا، وان شاءوا عفوا فدفع الرجل الى ولى المقتول الى رجل يقال له حنين من اهل الحيرة فقتله فكتب فيه عمر بعد ذالك ان كان الرجل لم يقتل فلا تقتلوه فرأوا ان عمر اراد ان يرضيهم بالدية"[1]

يعنى "د بكربن وائل يو سړى د اهل حيره يو كس قتل كړو دهغه باره كښې عمرفاروق دا فيصله اوكړه چې دې اوليائې مقتول ته حواله كړئ كه معاف كوى اوكه قتل كوى ئې. ولى مقتول حنين نومى يو كس چې اهل حيره سره ئې تعلق وو. هغه ته قاتل وركړې شو نو هغه قتل كړو. بيا روستو حضرت عمرؓ د هغه باره كښې اوليكل كه چرې اوڅه پورې ئې هغه قتل كړې نه وى نو اوس دې قتلوى نا، خلقو دا اوګڼړله حضرت عمرؓ جوړ د مقتول اولياء په ديت باندې راضى كول غواړى"

په دې باندې دا اعتراض دې چې دا منقطع دې ځكه چې د ابراهيم نخعى او حضرت عمرؓ په مينځ كښې انقطاع دے[2]

ددې جواب دادې چې دا مرسل دې او مرسل خمونږ په نيز حجت دې خصوصا د شافعىؒ مراسيل حجت دى[3]

علامه ابن التركمانىؒ فرمائى چې ددې روايت ډير طرق دى "والمنقطع اذا روى من وجه آخر منقطعا كان حجة عند الشافعى"[4]

يعنى "منقطع كه په بل منقطع طريق سره ذكر شى نو د امام شافعىؒ په نيز حجت دې"

دويم اعتراض دادې چې په دې كښې ذكر دى چې حضرت عمرؓ د قتل د فيصلې نه بيا رجوع كړې وه او د مقتول اولياء ئې په ديت باندې د راضى كولو كوشش كړې وو[5]

ددې جواب دادې چې مونږ نه منو چې هغوى د جواز قتل مسلم بالذمى نه رجوع كړې وه بلكه هغوى امر بالقتل نه رجوع كړې وه ځكه چې هغه ته دويمه لار ښكاره شوه چې په ديت باندې ولى راضى كړې شى، كه هغه ديت قبول كړو نو ښه ده ګنى بيا به ئى د قتل حكم وركړې وو، او په ديت وركولو سره راضى كول د وجوب قتل د پاره منافى نه دى ځكه چې وجوب قتل نه باوجود ولى ته دمعاف كولو او ديت اخستلو اختيار شته[6]

امام شافعىؒ دا هم فرمائيلې دى چې حضرت عمرؓ صرف يرولې وو او دهمكى ئى وركړې وه د قتل اجازت ئى مقصود نه وو[7]

---

[1]) كتاب الاثار (ص١٤١) كتاب الديات باب دية المعاهد. رقم (٥٩٠)-

[2]) السنن الكبرى(٣٢/٨)-

[3]) اعلاء السنن(٩٨/١٨)-

[4]) الجواهر النقى(٣٣/٨)-

[5]) السنن الكبرى (٣١/٨)-

[6]) عقود الجواهر المنفية (١٣٣/٢) واعلاء السنن (٩٨/١٨)-

[7]) السنن الكبرى (٣٢/٨)-

خو دلته دا ممکنه ده خکه چې د حضرت عمر ﷺ د ارشاد نه د وجوب قتل نه روستو کیدل مستفاد نه دی نو بیا به د حضرت عمر ﷺ باره کښې څنګه دا تصور اوکړی شی چې د قتل یا د معافی اختیار ورکولو سره د هغوی مقصد صرف ویرول وو او که فرض کړه هم دغه وی نو اولیاؤ ته به دا مراد څنګه معلوم کیدو؟ بلکه ددې اختیار د وجه خو هغوی اباحت د قتل اوګنړلو او هغه کس نی قتل هم کړو.[1]

دلته د ابن جریر په روایت سره اشکال کیدې شی هغوی دا قصه نزال بن سبره ﷺ نه نقل کړې ده چې د هغې الفاظ دادی:

"ان رجلا من المسلمين قتل رجلا من اهل الحيرة نصرانيا عمدا فكتب يحيى بن سعيد فى ذالك الى عمر فكتب ان اليدوه فيه وكان يقال له اقتله: فيقول حتى يجئ الغيظ حتى يجئ الغضب فبينما هم كذالك اذ كتاب من عند عمر ان لا تقتلوه فانه لا يقتل مومن بكافر وليعط الدية".[2]

یعنی "یو مسلمان د حیره یو عیسائی عمدا قتل کړو دې باره کښې یحیی بن سعید حضرت عمر ته خبر ورکړو نو هغوی اوفرمائیل چې دوی ته قصاص ورکړنی چې ولې ته به اوونیلې شو چې دې قتل کړه نو وونیل به ئی صبر چې ماته غصه راشی. خلق په دې شش وپنج کښې وو چې حضرت عمر ﷺ نه خط رالو چې دې مه قتل کونی خکه مومن د کافر بدله کښې نشی قتل کیدلې او صرف دیت دې ورکړې شی"

ددې نه دا معلومه شوه چې دحضرت عمر ﷺ د قتل نه منع کول د جواز قتل مسلم د رجوع د وجه نه وو.

ددې جواب دادې چې دا قصه جصاص په خپل سند سره ذکر کړې ده[3]

او ابن شیبه هم[4] په دې کښې یو روایت کښې هم "انه لا يقتل مومن بكافر" موجود نه دې معلومیږی چې د ابن جریر دې روایت کښې یو راوی د خان نه تصرف کړې دې او دې بنیاد باندې دا تصرف کړې دې چې د نهی مبنی "لا يقتل مومن بكافر" ده.

ددې دا قرینه ده چې د ابراهیم نخعی روایت کښې دی "فراوا ان عمر اراد ان يرضيهم بالدية" یعنی د خلقو رائې دا ده حضرت عمر ﷺ اولیاؤ لره په دیت سره راضی کول غوښتل. که حضرت عمر ﷺ د علت تنصیص "لا يقتل مومن بكافر" سره کړې وې نو خلقو ته دا موقع څنګه میلاؤ شوه چې دخپله خانه رائې قایمه کړی نولهذا دابن جریر دې روایت هیڅ اعتبار نشی کیدلې[5]

دا خبره یاد ساتنی چې دې روایت سره د حضرت عمر ﷺ دیر واقعات او فیصلې ترلې دی

---

[1] عقود الجواهر المنيفة (۲/۱۳۳) واعلاء السنن (۱۸/۱۰۱)-

[2] اعلاء السنن(۱۸/۹۸)-

[3] احكام القران للجصاص(۱/۱٤۱)-

[4] المصنف لابن شيبة (۵/٤۰۸) كتاب باب من قال اذا قتل الذمى المسلم قتل به، رقم(۲۷٤۵٤)-

[5] اعلاء السنن(۱۸/۹۸)

چې په هغې كښې څه اختلافات هم دى خو بيا هم په دې كښې رواية او دراية هغه روايت د تولو نه بهتر دې چې كوم دابراهيم نخعى نه منقول دې ځكه امام ابوحنيفه رحمه الله هم دا خوښ كړې دې[1]

③ د احنافو استدلال د حضرت عثمان رضي الله عنه د واقعه نه هم كيږى، امام شافعى رحمه الله فرمائى:

"اخبرنا محمد بن الحسن اخبرنا محمد بن يزيد اخبرنا سفيان بن حسين عن الزهرى ان ابن شاس الجذامى قتل رجلا من انباط الشام فرفع الى عثمان رضي الله عنه فامر بقتله فكلمه الزبير رضي الله عنه وناس من اصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم فنهوه عن قتله قال: فجعل ديته الف دينار"[2]

يعنى ابن شاس جذامى د شام په نبطيانو كښې يو كس قتل كړو نو حضرت عثمان رضي الله عنه ته مقدمه اورسيده نو هغوى د قتل حكم وركړو حضرت زبير او نورو صحابه رضي الله عنهم ورسره دې باره كښې خبره اوكړه نو هغوى د قتل نه منع اوفرمائيله او زر دينار ئى ددې ديت مقرر كړو.

په دې روايت كې دحضرت عثمان رضي الله عنه د قصاص حكم ددې خبره دليل دې چې اصل موجب هم دادې خوبيا هم يو مسلمان د كافر په بدله كښې د قتل كولو معامله وه ځكه صحابه كرامو ورسره خبره اوكړه چې په څه طريقه د مقتول اولياء په ديت باندې راضى كړى او حضرت عثمان رضي الله عنه هم په دغه باندې راضى شو او مسلمان ئى دقتل نه بچ كړو، د قصاص نه ديت طرف ته رجوع كول دا په دې بنياد نه ده چې ولى مقتول ته د قاتل د رضامندئى نه بغير اختيار دې بلكه اصل موجب قصاص دې خو بيا هم چونكه د قاتل رضامندى موجود ده ځكه په ديت سره ئى د مقتول ولى راضى كړو.

ددې په سند كښې امام شافعى رحمه الله دا اعتراض كوى چې په دې كښې مجهولين دى[3]

خو دا اعتراض صحيح نه دې ځكه چې په دې كښې امام محمد، محمد بن يزيد او محمد بن يزيد كلاعى مولاخولان شامل دى دا ثقه ثبت او عابد راويان دى[4]

دريم راوى سفيان بن حسين دې دا هم ستائيلې راوى دې امام بخارى ده نه په تاريخ كښې امام مسلم په مقدمه كښې او سنن اربعه مولفينو خپل كتابونو كښې دده نه روايات اخستې دى[5] په دې روايت كښې يو هم مجهول راوى نشته.

البته د سفيان او زهرى په مينځ كښې د انقطاع اعتراض كيدې شى خو اول خو انقطاع نقصانى نه ده او بل دا چې د نورو شواهدو په موجودګئى كښې منقطع هم د احتجاج قابل شى[6]

---

[1]) حواله بالا

[2]) السنن الكبرى (٨/٣٣)-

[3]) حواله بالا

[4]) قال الحافظ فى التقريب "ثقة ثبت عابد"(ص ٥١٤) رقم (٦٤٠٣) وقال الذهبى فى الكاشف "حجة يعد من الابدال(٢/٢٣١) رقم (٥٢٢٤)-

[5]) عقود الجواهر المنيفة (٢/١٣٤) وتقريب التهذيب(ص ٢٤٤) والكاشف (١/٤٤٨) حاشية سبط ابن العجمى على الكاشف للذهبى)-

[6]) اعلاء السنن (١٨/٩٧)-

④ د احنافو تائيد د حضرت علی رضی الله عنه د فيصلې نه هم كيږي امام شافعي رحمه الله نقل كړي دي:

"انا محمد بن الحسن انا قيس بن الربيع الاسدی عن ابان بن تغلب عن الحسن بن ميمون عن عبدالله بن عبدالله مولی بنی هاشم عن ابی الجنوب الاسدی قال: اتی علی بن ابی طالب رضی الله عنه برجل من المسلمين قتل رجلا من اهل الذمة قال :فقامت عليه البينة فامر بقتله فجاء اخوه فقال: انی قد عفوت قال: فلعلهم هددوك، وفرقوك وفزعوك؟ قال: لا ولكن قتله لا يرد علی اخی وعوضونی فرضيت قال انت اعلم من كانت له ذمتنا فدمه كدمنا وديته كديتنا" (۱)

يعنې د حضرت علی رضی الله عنه په خدمت كښې يو مسلمان حاضر كړې شو چې يو ذمی ئې قتل كړې وو، د ګواهانو نه قتل ثابت شو نو هغوی د قصاص حكم وركړو دې نه پس د مقتول رور راغلو او وئې وئيل چې ما معاف كړې دې نو حضرت علی رضی الله عنه ورته اوفرمائيل چې معلوميږي چې تا ته هغوی څه دهمكی دركړې وی هغه ونې نا .اصل خبره داده چې دده په قتل سره به ما ته خپل رور ميلاؤ نه شی ده ماله عوض راكړې دې ځكه ئې خه معاف كوم نو وئې فرمائيل چه ستا خوښه ده؛ د چا ذمه چې مونږ اخستې ده نو د هغه وينه څمونږ د وينې په شان ده او د هغه ديت څمونږ د ديت په شان دې.

په دې روايت امام دار القطنی اعتراض كړې دې چې ابو الجنوب ضعيف الحديث دې (۲)

ددې دا جواب دې چې د ابو الجنوب ضعيف كيدل دلته نقصانی نه دی ځكه چې مونږ د هغه روايت نه مستقلا استدلال نه كوو بلكه په دې خبره تائيد حاصلوو چې د حضور پاک صلی الله عليه وسلم ارشاد "لا يقتل مومن بكافر" كښې به د كافر نه مراد كافر حربی وی كله چې د مجتهد په اجتهاد سره د تاويل ګنجائش شته نو په ضعيف اثارو كښې به ولې نه وی (۳)

⑤ د احنافو تائيد د حضرت علی او حضرت ابن مسعود رضی الله عنهما د روايت نه هم كيږي فرمائی "من قتل يهوديا او نصرانيا قتل به" (۴)

ابن حزم فرمائی دا مرسل دې (۵)

⑥ د حضرت عمربن عبدالعزيز د حكم نامې نه هم د احنافو تائيد كيدې شی عمروبن ميمون فرمائی "شهدت كتاب عمربن عبدالعزيز الی بعض امرائه فی مسلم قتل ذميا، فامره ان يدفعه الی وليه فان شاء قتله وان شاء عفا عنه" يقول الميمون "فدفع اليه فضرب عنقه وانا انظر" (۶)

---

(۱) السنن الكبری للبيهقی (۸/۳۳)-
(۲) سنن الدار قطنی (۱/۲۳۱) باب الامر بتعليم الصلوات والضرب عليها وحد العورة التی يجب سترها رقم (۴)
(۳) اعلاء السنن (۱۸/۹۷)_
(۴) المحلی لابن حزم (۱۰/۲۲۱) كتاب الدماء)-
(۵) حواله بالا
(۶) حواله بالا

يعنى ما دحضرت عمرؓ فرمان اوكتلو چې هغوى د يو مسلمان باره كښې خو امراؤ ته ليكلې وو هغې كښې دا حكم وو چې ولى دې مقتول ته حواله كړې شى كه خوښه ئې وى نو معاف دې كړى گنى قتل دې كړى.هغې نه پس قاتل حواله كړې شو او ما اوليدلو چې هغه قتل كړې شو.

⑥ داحنافو د مذهب تائيد د مدينه منوره فقيه ابان بن عثمان د فيصلې نه هم كيږى.ابن ابى شيبه په سند صحيح سره نقل كړې ده:

"ان رجلا من النبطى عدا عليه رجل من اهل المدينة فقتله قتل غيلة فاتى به ابان بن عثمان وهو اذ ذاك على المدينة فامر بالمسلم الذى قتل الذمى ان يقتل".[1]

يعنى په يو نبطى سړى باندې يو كس حمله اوكړه او مړ ئې كړلو ابان ابن عثمان دغه وخت د مدينه گورنر وو ده ته راوستلې شو نو هغه ددې قاتل مسلمان د قتل حكم وركړلو.

**څه اشكالات او دهغې جوابونه** يو اشكال د احنافو په مذهب كيږى چې "الحدود تدرأ بالشبهات" يو منلې شوې قاعده ده.دلته ارشاد پاک دې "لايقتل مومن بكافر" دې حديث سره شک پيدا شو ددې شک د وجه نه قتل مسلم ولې نه ساقط كيږى؟

ددې جواب دادې چې مونږ اووئيل چې دلته د كافر نه مراد كافر حربى دې نو اوس هيڅ شبه پاتې نه شوه.

كه دا نهى شبه اوگنړلې شى نو دا سوال دې چې كه چرې ذمى يو ذمى قتل كړلو او بيا قاتل مسلمان شونو دا ذمى ولې قتلولې شى حالانكه "لايقتل مومن بكافر" خو دلته هم صادق راځى؟

بعضې حضراتو دا وئيلې دى چې دلته "مسلم" د صفت صيغه ده او حكم بيانولو موقع كښې صيغه د صفت ذكر كول ددې خبرې دليل دې چې ددې ماخذ علت دې نو مطلب به دا شى چې دا حكم په دې بنياد دې چې مسلمان ته د اسلام د وجه اوچتوالې حاصل دې څكه به دې د كافر بدله كښې قتلولې نشى.

ددې جواب دادې كه چرې د "مسلم" مبدا د اشتقاق علت اوگرځولې شى نو مطلب به دا شى "المسلم لكونه مسلما لايقتل بكافر لكونه كافرا" چې مونږ ددې خبرې منونكې نه يو مونږ خو دا وايو "المسلم لكونه قاتلا يقتل بكافر لكونه محقون الدم على التابيد بعقد الذمة" نو دا شبه هم رانغله.

يو اشكال دا هم كيږى چې مسلمان د ذمى مقابله كښې اشرف دې او ذمى اخس. نو به اشرف د اخس مقابله كښې څنگه قتل كولې شى؟

ددې جواب دادې چې دقصاص په باب كښې د "شرافت" معنى هدر ده.ددې اعتبار نشى كيدې.اوگوره سړې د ښځې مقابله كښې اشرف دې ددې باوجود سړې دښځې په بدل كښې قتل كولې شى

---

[1] المصنف لابن ابى شيبة (٤٠٨/٥)كتاب الديات باب من قال اذا قتل الذمى المسلم قتل به رقم (٢٧٤٦٠)-

دا ونيلې شي چې مونږ د سرې او ښځې په مينځ كښې د شرف اعتبار د هدر حديث د وجه كړې دې او ذمي او مسلم په مينځ كښې د شرف اعتبار "لايقتل مومن بكافر" د وجه دې.

ددې جواب دادې چه كله شارع په يو خاني كښې يعنې د سرې او ښځې په مينځ كښې د قصاص په معامله كښې "شرف" نې هدر اوګنړلو او بل خاني د شرف د اعتبار تصريح نې هم او نه كړه، ځكه چې دا احتمال موجود دې چې دا حكم د شرف په اعتبار مبنى نه وى بلكه په يو بل كار مثلا د كافر په غير محقون الدم باندې مبنى وى نو لهذا صرف رائې سره د شرف اعتبار به څنګه صحيح وى؟

حاصل داده چې مسلمان به د كافر بدله كښې قتلولې نشى كه حربى وى او كه ذمى او ددې دليل د حضورپاك ﷺ دا حديث دې "لا يقتل مومن بكافر" په دې كښې كافر مطلق دې چې دواړه قسم ته شامل دې.

امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى كه چرې يو مسلمان كوم يو ذمى قتل كړو نو دغه قاتل مسلمان به قتلولې شى او ددې اصل دليل هغه عمومى نصوص دى چې هغې كښې د مسلمان او ذمى تخصيص نه دې شوې هغوى د خپل اجتهاد نه اصول وضع كړې دى چې كله د يو معصوم وينا طوې كړې شى او هغه على التابيد معصوم وى دا عمدا وى او د ولايت د وجه نه قصاص متعذر نه وى نو قصاص واجب دې ګنى نا.

دغه شان هغوى دا اصل هم د نظر مخكښې كړو چې كه نص د يو اصل كلى مقابل شى او په دې كښې څه تاويل نشو كيدې نو په اصل كلى كښې به د نص د وجه تخصيص كولې شى او كه د تاويل احتمال وى نو په نص كښې به تاويل كيږى.

ددې اصولو كتلو سره د ذمى قصاص واجب دې د حربى نا، او "لايقتل مومن بكافر" نص به محتمل التاويل وى ځكه به په دې كښې د كافر حربى تاويل كولې شى.

دې نه علاوه د امام ابوحنيفه رحمه الله موافق چې څومره آثار او روايات دى هغه قول مؤيد دى د هغې نه باقاعده استدلال او احتجاج نه كيږى كه بالفرض په هغې كښې څه قدرې ضعف هم وى بيا هم د هغې تائيد كيدې شى. والله اعلم

[۱۱۲] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ الْفَضْلُ بْنُ دُكَيْنٍ قَالَ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيَى عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ خُزَاعَةَ قَتَلُوا رَجُلاً مِنْ بَنِي لَيْثٍ عَامَ فَتْحِ مَكَّةَ بِقَتِيلٍ مِنْهُمْ قَتَلُوهُ، فَأُخْبِرَ بِذَلِكَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فَرَكِبَ رَاحِلَتَهُ، فَخَطَبَ فَقَالَ « إِنَّ اللَّهَ حَبَسَ عَنْ مَكَّةَ الْقَتْلَ - أَوِ الْفِيلَ شَكَّ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ - وَسَلَّطَ عَلَيْهِمْ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَالْمُؤْمِنِينَ، أَلاَ وَإِنَّهَا لَمْ تَحِلَّ لأَحَدٍ قَبْلِي، وَلاَ تَحِلُّ لأَحَدٍ بَعْدِي أَلاَ وَإِنَّهَا حَلَّتْ لِي سَاعَةً مِنْ نَهَارٍ، أَلاَ وَإِنَّهَا سَاعَتِي هَذِهِ حَرَامٌ، لاَ يُخْتَلَى شَوْكُهَا، وَلاَ يُعْضَدُ شَجَرُهَا، وَلاَ تُلْتَقَطُ سَاقِطَتُهَا إِلاَّ لِمُنْشِدٍ، فَمَنْ قُتِلَ فَهُوَ بِخَيْرِ النَّظَرَيْنِ إِمَّا أَنْ يُعْقَلَ، وَإِمَّا أَنْ يُقَادَ أَهْلُ الْقَتِيلِ » . فَجَاءَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْيَمَنِ فَقَالَ اكْتُبْ لِي يَا رَسُولَ اللَّهِ. فَقَالَ « اكْتُبُوا لأَبِي فُلاَنٍ » .

فَقَالَ رَجُلٌ مِنْ قُرَيْشٍ إِلاَّ الإِذْخِرَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَإِنَّا نَجْعَلُهُ فِي بُيُوتِنَا وَقُبُورِنَا. فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «إِلاَّ الإِذْخِرَ، إِلاَّ الإِذْخِرَ» . قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ يُقَالُ يُقَادُ بِالْقَافِ. فَقِيلَ لأَبِي عَبْدِ اللَّهِ أَيَّ شَيْءٍ كَتَبَ لَهُ قَالَ كَتَبَ لَهُ هَذِهِ الْخُطْبَةَ ـ [۲۳۰۲، ۶۴۸۶]

## رجال الحديث

① **ابونعيم الفضل بن دكين**: دا مشهور محدث ابونعيم الفضل بن دكين الملائی الكوفی الاحول رحمه الله دې ددوی حالات كتاب الايمان "باب فضل من استبراء لدينه" كښې تير شوې دی

② **شيبان**: دا ابومعاويه شيبان بن عبدالرحمن تميمی نحوی بصری مؤدب رحمه الله دې يو كال پورې كوفه كښې اوسيدلو د هغه نه پس بغداد ته منتقل شو دوی د سليمان بن داود هاشمی او د هغه د روريانو اتاليق پاتې شوې وو[1]

دوی د اسماعيل بن ابی خالد، اشعث بن ابی الشعثاء، حسن بصری.زياد بن علاقه.امام اعمش،امام قتاده،ليث بن ابی سليم،منصوربن المعتمر او يحيی بن ابی كثير رحمهم الله نه روايت كوی،

دده نه روايت كونكو كښې آدم بن ابی اياس. زائده بن قدامه، ابوداود الطيالسی. عبدالرحمن بن مهدی، ابونعيم الفضل بن دكين، امام ابوحنيفه. وليدبن مسلم. يزيدبن هارون او يونس مودب رحمهم الله شامل دی[2]

امام احمد رحمه الله فرمائی "ما اقرب حديثه"[3]

بل خائې فرمائی "شيبان صاحب كتاب صحيح قد روی شيبان عن الناس فحديثه صالح"[4]

دغه شان فرمائی "شيبان ثبت فی كل المشايخ"[5]

امام يحيی بن معين رحمه الله فرمائی "شيبان ثقة وهو صاحب الكتاب"[6]

بيا فرمائی "ثقة فی كل شیء"[7]

امام محمدبن سعد ،امام عجلی او امام نسائی رحمهم الله فرمائی "ثقة"[8]

---

[1] كشف الباری(۲/۶۶۹)-
[2] تهذيب الكمال(۱۲/۵۹۳)-
[3] تهذيب الكمال (۱۲/۵٤)-
[4] حواله بالا
[5] تهذيب الكمال (۱۲/۵۹۵)-
[6] حواله بالا
[7] حواله بالا
[8] طبقات ابن سعد(۶/۳۷۷) و(۷/۳۲۲)-

يعقوب بن شيبه رحمه الله فرمائى "كان صاحب حروف وقراءات، مشهور بذلك كان يحيى بن معين يوثقه" [1]
امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى "حسن الحديث صالح الحديث يكتب حديثه" [2]
عبدالرحمن بن يوسف فرمائى "كان صدوقا" [3]
ابوالقاسم بغوى رحمه الله فرمائى "شيبان اثبت فى يحيى بن ابى كثير من الاوزاعى" [4]
امام ترمذى رحمه الله فرمائى "شيبان ثقة عندهم صاحب كتاب" [5]
دغه شان فرمائى "شيبان صاحب كتاب وصحيح الحديث" [6]
امام ابوبكر البزار رحمه الله فرمائى "ثقة" [7]
عثمان بن ابى شيبه فرمائى "كان معلما صدوقا حسن الحديث" [8]
ابن شاهين رحمه الله فرمائى "ثقة وكان صاحب كتاب رجل صالح" [9]
امام عبدالرحمن بن مهدى دده نه روايت كولو باندې فخر كوى [10]
حافظ ذهبى دده په تذكره كښې ليكى "الامام الحافظ الثقة" [11]
بيا فرمائى "صاحب حروف وقراءات حجة" [12] دغه شان دا هم فرمائى "ثقة مشهور" [13]
دې زبردست توثيقات او تعديل سره سره بعضې حضراتو په دوى باندې كلام هم كړې دې
ساجى رحمه الله فرمائى "صدوق وعنده مناكير واحاديث عن الاعمش تفرد بها" [14]
دغه شان ابوحاتم رحمه الله فرمائى "لايحتج به" [15]

---

[1]) تهذيب الكمال(۱۲/۵۹۶)-
[2]) حواله بالا
[3]) حواله بالا
[4]) حواله بالا
[5]) جامع الترمذى كتاب الزهد باب ما جاء فى معيشة اصحاب النبى صلى الله عليه وسلم رقم (۲۳۷۱)-
[6]) جامع الترمذى كتاب الادب باب المستشار مؤتمن رقم(۲۸۲۳)-
[7]) تهذيب التهذيب(۴/۳۷۴)-
[8]) تهذيب التهذيب (۴/۳۷۴)-
[9]) تعليقات تهذيب الكمال(۱۲/۵۹۷)نقلا عن كتاب الثقات لابن شاهين)-
[10]) تهذيب التهذيب (۴/۳۷۴)-
[11]) سير اعلام النبلاء(۷/۴۰۶)-
[12]) الكاشف (۱/۴۹۱) رقم (۲۳۱۶)-
[13]) ميزان الاعتدال(۲/۲۸۵)-
[14]) تهذيب التهذيب(۴/۳۷۴)-
[15]) ميزان الاعتدال(۲/۲۸۵)-

تر څو چې د امام ساجي د کلام خبره ده نو د مناکير نه مراد تفردات هم دى او تفرد څه نقصانى څيز نه دې

بل ساجى كلام د امام احمد رحمه الله مقابل دې هغوى فرمائى "ثقة فى كل المشايخ" [1] امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائى "ثقة فى كل شىء" [2]

بيا حافظ رحمة الله فرمائى چې په بخارى كښې دده روايات د اعمش په طريق باندې بالكل نه دى بلكه د نورو شيوخو نه دى [3]

دغه شان د ابوحاتم د كلام باره كښې د حافظ رحمه الله ارخ دا دې چې بالكل ثابت نه دې فرمائى "وهذه اللفظة ما رايت فى كتاب ابن ابى حاتم فلينظر ليس فيه الا يكتب حديثه فقط" [4]

دغه شان د ابوحاتم كلام مزى او او باجي رحمه الله هم نقل كړې ده خو په هغې كښې چا هم د "لايحتج به" جمله ذكر كړې نه ده [5]

او كه دا هم اومنلې شى بيا هم د ذكر شوې تعديلاتو مقابله كښې د توجه قابل نه جوړيږى.

امام حافظ ذهبى فرمائى "قول ابى حاتم لايحتج به ليس بجيد" [6]

لهذا دا شيبان بن عبدالرحمن متفقه طور حجت او ثقه دې د اصول سته اصحابو دده احاديث قبول كړې دى او دده نه ئى احتجاج كړې دې [7]

ددوى وفات ۱۶۴ھ كښې شوې دې [8]

**فائده:** ددې په نسبت كښې چې كوم لفظ "نحوى" راغلې دې نو ددې نه علم نحو طرف ته نسبت مراد دې يا قبيله نحو طرف ته؟

ابن الاثير فرمائى چې قبيله نحو طرف ته دې، او ابن ابى داود وغيره فرمائى چې دا علم نحو طرف ته منسوب دې نه چې قبيلې ته [9]

③.. **يحيى:** دا مشهور امام يحيى بن ابى كثير طائى يمامى رحمه الله دې دده د پلار په نوم ابوكثير كښې اختلاف دې صالح، يسار، نشيط او دينار دا مختلف اقوال دى په دې كښې [10]

ددوى دحضرت انس رضي الله عنه نه علاوه ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف، هلال بن ابى ميمونه،

---

[1] تهذيب الكمال(۱۲/۵۹۵)-
[2] تهذيب الكمال (۱۲/۵۹۵)-
[3] هدى السارى(ص۴۱۰)-
[4] تهذيب التهذيب (۴/۳۷۴) وهدى السارى(ص۴۱۰) كتاب الجرح والتعديل(۴/۳۲۵) رقم (۱۵۶۱)-
[5] هدى السارى(ص۴۱۰) وتهذيب التهذيب(۴/۳۷۴)-
[6] سيراعلام النبلاء(۷/۴۰۸)-
[7] هدى السارى(۴۱۰)-
[8] تهذيب الكمال (۱۲/۵۹۶) والكاشف(۱/۴۹۱) رقم (۲۳۱۶۹)-
[9] جاشية سبط ابن العجمى على الكاشف(۱/۴۹۱) رقم(۲۳۱۶)-
[10] تهذيب الكمال(۳۱/۵۰)-

یعلی بن حکیم، ابوقلابه جرمی، ابونضرة العبدی، زیدبن سلام، عقبه بن عبدالغافر او عکرمه رحمهم الله نه روایت کوی.
دې نه علاوه د حضرت ابوامامه، عروه بن زبیر، الحکم بن مینا او ابوسلام حبشی رحمهم الله نه مرسلا روایت کوی
دده نه روایت کونکو کښې دده خوئی عبدالله، ایوب سختیانی، یحیی بن سعید انصاری، اوزاعی، حسین المعلم، معمربن راشد، هشام دستوائی، همام، ایوب بن النجار، ابان العطار، حرب بن شداد، عکرمه بن عمار او عمران القطان رحمهم الله وغیره شامل دی.(۱)
ایوب سختیانی فرمائی "ما بقی علی وجه الارض مثل یحیی بن ابی کثیر".(۲)
امام شعبه رحمه الله فرمائی "یحیی بن ابی کثیر احسن حدیثا من الزهری".(۳)
امام احمد رحمه الله فرمائی "یحیی ابن ابی کثیر من اثبت الناس انما یعد مع الزهری ویحیی بن سعید فاذا خالفه الزهری فالقول قول یحیی ابن ابی کثیر".(۴) امام عجلی فرمائی "ثقة کان یعد من اصحاب الحدیث".(۵)
امام ابوحاتم فرمائی "امام لا یحدث الا عن ثقة".(۶)
حافظ ذهبی دده د تذکرې په شروع کښې لیکی "الامام الحافظ احد العلام".(۷)
دغه شان فرمائی "وکان طلابة للعلم حجة".(۸)
بیا فرمائی "کان من العباد العلماء الاثبات".(۹)
هغوی دا هم اوفرمائیل "احد الاعلام الاثبات".(۱۰)
البته عقیلی دده باره کښې ذکر کړې دی "ذکر بالتدلیس".(۱۱)
دغه شان حافظ رحمه الله فرمائی "ثقة ثبت لکنه یدلس ویرسل".(۱۲)

---

(۱) تهذیب الکمال(۵۰۵/۳۱)-
(۲) تهذیب الکمال(۵۰۸۹/۳۱-
(۳) حواله بالا
(۴) حواله بالا
(۵) حواله بالا
(۶) تهذیب الکمال(۵۰۹/۳۱)-
(۷) سیر اعلام النبلاء(۲۷/۶)-
(۸) حواله بالا
(۹) الکاشف(۳۷۳/۲) رقم (۶۲۳۵)-
(۱۰) میزان الاعتدال(۴۰۲/۴) رقم (۹۶۰۷)-
(۱۱) الضعفاء الکبیر للعقیلی(۴۲۳/۴)رقم (۲۰۵۱)-
(۱۲) تقریب التهذیب (ص۵۹۶) رقم (۷۶۳۲)-

تر څو چې دده د تدليس تعلق دې نو هغه مضر نه دې ځکه چې دې د هغه مدلسينو نه دې چې د امامت په خاني ولاړ دې او د نورو راويانو په نسبت ډير کم تدليس کوی او که تدليس کوی هم نو د ثقاتو نه کوی لکه سفيان ثوری او سفيان بن عيينه شو. دغه وجه ده چې دده تدليس علماؤ قبول کړې دې او په خپلو صحيح کښې ئې دده روايات اخستې دی.حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: تعريف اهل التقديس بمراتب الموصوفين بالتدليس" کښې دوی په دويمه مرتبه کښې ذکر کړې دی(۱)

بيا دده د تدليس نه غالب مراد دادې چې دې د صحابه کرامو نه مرسلا ذکر کوی او دې ته تدليس نوم ورکړې شوې دی(۲)

دې نه علاوه دې يحيی ابن کثير اګرچې کثير التدليس او کثير الارسال مشهور دې خو بيا هم حافظ رحمه الله فرمائی چې ده به تدليس کم کوو، او ددې قرينه داده چې يحيی ابن کثير د ابوسلمه نه ډير زيات روايات نقل کوی ددې باوجود هغه يو حديث: عن محمد عن ابراهيم عن ابی سلمة عن عائشة مرفوعا: من ظلم قيد شبر من الارض طوقه الی سبع ارضين"(۳) روايت کړې دې په دې هغه د ابوسلمه نه په مخامخ نقل کولو په خاني دمحمد بن ابراهيم په واسطه سره ذکر کړې دې معلومه شوه چې دې لږ تدليس کونکې دې که کثير التدليس وو نو د محمد بن ابراهيم واسطه به يې حذف کړې وه(۴)

ابن حبان رحمه الله دوی په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دی او ليکی: وکان يحيی بن ابی کثير من العباد اذا رای جنازة لم يتعش تلك الليلة ولا قدر احد من اهله ان يكلمه"(۵)

يعنی يحيی ابن کثير د عبادت ګذار خلقو نه وو کله به ئی جنازه اوليدله نو هغه شپه به ئی نه روټئ خوړله او نه به ئی کورواله سره دخبرو همت وو.

د صحيح قول مطابق ددوی وفات ۱۲۹ هـ کښې شوې وو(۶) رحمه الله تعالیٰ رحمة واسعة

(۳)..ابوسلمة: دې دحضرت عبدالرحمن بن عوف خوئی او د مدينه فقهاؤ کښې يو اوچت فقيه او او مشهور تابعی دې.

---

(۱) طبقات المدلسين (تعريف اهل التقديس بمراتب الموصوفين بالتدليس)ص۲۵)-

(۲) ارسل عن انس بن مالك وجابر بن عبدالله الانصاری والحكم بن مينا وعروة بن الزبير وابی امامة الباهلی وابی سلام الحبشی فروايته عن الصحابة منقطعة ولعل هذا هو مرادهم بالتدليس تحرير تقريب التهذيب للدكتور بشار عوادمعروف والشيخ شعيب الارنؤوط(۹۹/۴) رقم (۷۶۳۲)-

(۳) اخرجه البخاری فی صحيحه فی كتاب المظالم باب اثم من ظلم شيئا من الارض رقم(۲۴۵۲)-

(۴) قال الحافظ وفی هذا الاسناد ما يشعر بقلة تدليس يحيی بن ابی كثيرلانه سمع كثير من ابی سلمة وحدث عنه هنا بواسطة محمدبن ابراهيم:فتح الباری(۱۰۵/۵) كتاب المظالم باب اثم من ظلم شيئا من الارض)-

(۵) الثقات لابن حبان (۵۹۱/۷)-

(۶) سير اعلام النبلاء[۲۸/۶)-

ددوى حالات كتاب الايمان باب صوم رمضان احتسابا من الايمان لاندې تير شوې دي.[1]

⑤ حضرت ابوهريره رضی الله عنه د حضرت ابوهريره حالات كتاب الايمان باب امور الايمان لاندې تير شوې دي.[2]

**قوله: ان خزاعة قتلو رجلا من بني ليث عام فتح مكة بقتيل منه قتلوه:** قبيله خزاعه د فتح مكه په موقع د بنوليث يو كس د خپل يو مقتول بدله كښې قتل كړو

د فتح مكه موقع كښې د قبيله خزاعه چې كوم كس قتل كړې وو د هغه نوم خراش بن اميه خزاعى دې او څوک وانى چې قتل كړې وو د هغه نوم ابن الاثوع الهذلى وو جاهليت كښې ابن الاثوع د خزاعه احمر نومې سړې قتل كړې وو نو د فتح مكه موقع كښې خراش بن اميه خزاعى دده بدله واخستله او ابن اثوع الهذلى ئى قتل كړو

ددې تفصيلى واقعه ابن هشام رحمه الله په خپل سيرت كښې د ابن اسحاق حواله سره ليكلې ده چې حاصل ئى دا دې:

احمر نومې يو ډير بهادر سړې وو دهغه عادت وو چې كله به اوده كيدو نو په زور زور سره به ئى خراټې كولې خلقو ته به معلومه شوه چې دې كوم ځائى دې؟ هر كله چې به دې خپله قبيله كښې وو نو د تولو نه به جدا اوده كيدلو كه په قبيله به حمله اوشوه نو هغوى به ورته "يا احمر" سره آواز وركولو نو دې به لكه د شير راپاسيدلو نو بيا دده مخكښې څوک اودريدلې نه شو وئيلې كيږى چې د قبيله هذيل يو جنګيالې جماعت رالو او په قبيله خزاعه ئى د حمله اراده اوكړه هركله چې نزدې راغې نو ابن الاثوع هذلې ووئيل چه تلوار مه كوه، څه ګورمه چه دلته احمر شته كنه، كه چرې هغه موجود وي نو حمله كول به ممكن نه وي نو هغه د خراتو په آواز پسې روان شو چه هغه ته ورسيدلو او د خوب په حالت كښې ئى قتل كړو، بيا ئې چه په قبيلې واله باندې حمله وكړه نو هغوي يا احمر يا احمر ووئيل ليكن دلته د احمر كار تمام شوې وو،

كله چه د فتح مكې ورځ راغله نو ابن الاثوع هذلى كوم چې تر اوسه پورې په حالت د شرک كې وو، مكې مكرمې ته راغلو او د حالاتو معلومولو كوشش ئې كولو،

چه كله قبيله خزاعه ده وليدو نو وئي پيژندو او د ده محاصره ئي وكړله، تپوس ئي ترې وكړو چه ته د احمر قاتل ئې ؟ ده وئيل چه او، هم څه د احمر قاتل يم، په ده كښې خراش بن اميه راغلو او خلقو ته ئې آخوا كيدو اشاره وكړله، كله چه خلق اخوا شو نو د ابن الاثوع په خيټه كښې ئې توره ورومنډله، او د ده خيټه ئې وشلوله او كولمې ئى بهر راووتې، هم دغه شان ئې قتل كړو، په دې موقع حضور اكرم صلى الله عليه وسلم تشريف راوړو او د قتل وقتال نه ئى منع وفرمائيله او د وينې قيمت ئې وركړو.[3]

---

[1]) كشف البارى (٣٢٣/٢)-

[2]) كشف البارى (٦٥٩/١)-

[3]) اوګورئ: السيرة النبوية لا بن هشام، القسم الثانى (ص ٤١٤) طبعة مصطفى البابى الحبلى، والسيرة النبوية لابن هشام مع الروض الانف (ج ٢ ص ٢٧٥)-

**د قبیله خزاعه په لاسو نو د قتل شوي سړي د نوم تحقیق** د ابن اسحاق په ده روایت کښې د مقتول نوم ،، ابن الاثوع (بالثاءالمثلثة)الهذلي راغلې دې،ابن هشام رحمه الله وئیلي دي،، وبلغني ان اول قتیل وداه رسول الله صلی الله علیه وسلم یوم الفتح جنیدب بن الاکوع،قتلته بنو کعب فوداه بمائة ناقة،، (۱) یعنی ماته د خبره رارسیدلې ده چه حضور اکرم ﷺ د فتح مکې په ورځ د ټولو نه اول مقتول چه د هغه دیت ورکړې شوي وو هغه جنیدب بن الاکوع وو ،دې بنو کعب قتل کړې وو ،هغوی ﷺ سل اوښان په دیت کښې ورکړل. په دې کښې اکوع ،،د کاف سره دې نه د ثا مثلثې سره،

حافظ ابن حجر رحمه الله د ابن اسحاق واقدی په حوالې سره نقل کړي دي چه د مقتول نوم،،جندب بن الادلع وو (۲)خو چه طبری د اسحاق نه دا قصه نقل کړي ده نو په ده کښې،، جنیدب الادلع ذکر دې،(۳)

دغه شان ددې مقتول د نوم په باره کښې اختلاف شوي دې چه آیا د جندب وو او که جنیدب،هم دغه شان دا ده د پلار په باره کښې اختلاف شوي دې چه آیا دده نوم اثوع وو او اکوع یا ادلع؟ ددې د تطبیق صورت دا دې ممکنه ده چه ده جندب مکبرا هم وئیلی کیدو او جنیدب مصغرا هم وئیلې کیدو ،

او دغه شان دا ده د پلار په نوم کښې هم دا وئیلي شي چه دې په دریو وانړو نومونو بللې کیدو ـ البته دلته یو غټ اشکال دا دې چه اوس مونږ د ابن اسحاق په حوالې سره ورستو ذکر کړل چه،،ابن الاثوع چه د احمر قاتل دې او اوس د فتح مکې په موقع هغه د خراش ابن امیه په لاسونو قتل شو، هغه په حالت د شرک کښې وو ،

حافظ ابن حجر رحمه الله په خپل کتاب،،الاصابة،، کښې په القسم الاول کښې جندب او جنیدب ذکر کړی دې او په قسم اول کښې دې د هغه حضراتو ذکر کوی چه د هغوی صحابیت ثابت شوی وی،(۴)

د دې اشکال په باره کښې داسې وئیلی شوی دی،چه د ابن اسحاق په نیز دې مشرک وو او مسلمان شوی نه وو ،لیکن د حافظ ابن حجر د تحقیق په مطابق دې مسلمان شوي وو او ده ته د رسول الله ﷺ د صحبت شرف هم حاصل شوي وو .

**د مقتو ل تعلق د بنو لیث سره وو او که بنو هذ یل سره؟** بیا په حدیث باب کښې،،قتلوا رجلا من بني لیث،، راغلې دې،خو د ابن اسحاق روایت چه مونږ په تفصیل سره ذکر کوؤ،په دې کښې ''بنو هذیل،، ذکر دې، ولی چه ابن الاثوع هذلی وو لیثی نه وو ،او دا دواړه جدا جدا قبیلې دې، ددې تعارض حل په دې طریقه کیدې شي چه د مقتول تعلق د دواړو قبیلو سره وو

(۱) السیرةالنبویة لابن هشام مع الروض الا نف (ج ۲ ص ۲۷۶) ـ
(۲) وګورې الاصابة (ج ۱ ص ۲٤۷) ـ
(۳) حواله بالا) ـ
(٤) اوګورې مقدمة الاصابة (ج ۱ ص ۵ و ٤) ـ

د يوې سره خانداني تعلق وي او د بل سره د معاهدې تعلق وي. والله اعلم

**د تعارض لرې کولو راجح صورت:** دلته د تعارض لرې کولو صورت دا هم دې، کوم چه د تکلفاتو نه د خالي والي په وجه راجح هم دی چه صحيح بخاری كه ذکر شوي واقعه مستقل وګرځولې شي، او په سيرت ابن هشام وغيره کښې راغلي واقعات مستقل شي، ګويا چه دا مختلف روايات په مختلفو واقعاتو باندې محمول ده. د فتح مکې په موقع ډير واقعات مخې ته راغلي وو، ددې قرينه دا هم دا چه د ابن هشام رحمه الله الفاظ دي. "بلغني ان اول قتيل وداه رسول الله صلى الله عليه وسلم يوم الفتح جنيدب"، ددې نه معلوميږي چه مقتولين ډير وو، په ده كه اوليت جنيدب بن الاكوع ته حاصل وو.

هم دغه شان ابن اسحاق چه ابن الاثوع په حالت د شرک مقتول ګرځولې دې هغه خان له خبره ده، او حافظ رحمه الله جندب يا جنيدب په صحابو کښې شمارلو سره مقتول ګرځولې دې، دا بل شخصيت دی او دغه شان هر قسمه تعارض هم ختميدې شي او د تکلفاتو د ارتکاب ضرورت هم نه پيښيږي، کوم چه د مخکې تطبيق د پاره وشو. والله اعلم بالصواب

**قوله:** فأخبر بذلك النبي صلى الله عليه وسلم، فركب راحلته فخطب: د دې قتل د واقعې حضور اکرم صلى الله عليه وسلم ته خبر ورکړې شو، نو هغوی په خپله سورلئ باندې سور شو او خطبه ئي ووئيله،

**قوله:** فقال: ان الله حبس عن مكة القتل او الفيل، شك ابو عبد الله: هغوی وفرمائيل چه الله تعالى د مکې مکرمې نه قتل منع کړی دی. يا هغوی وفرمائيل چه هاتيان ئې منع کړی دی، ابو عبد الله ته شک دی.

دلته څلور نسخې دې: ① يو خو دا ده. "شك ابوعبدالله"، ② د دويمې نسخې عبارت دا دې. "قال محمد: وجعلوه على الشك، كذا قال ابونعيم: واجعلوا على الشك: الفيل او القتل"، ③ د دريمې نسخې عبارت دې، "ان الله حبس عن مكة القتل او الفيل، كذا قال ابو نعيم، واجعلوا على الشك، الفيل او القتل"، ④ د څلورمې نسخې عبارت دې "قال ابوعبدالله: كذا قال ابونعيم، اجعلوه على الشك"، دلته "ابوعبدالله" او "محمد" نه د امام بخاری رحمه الله مراد دی، په ده کښې د شک ظاهرا نسبت امام بخاری طرف ته شوی دی، ليکن حقيقت کښې دا مجمل دی او په باقي نسخو کښې تفصيل دی، دا اجمال په ذکر شوی تفصيل باندې محمول دی، يعنی اصلي شک امام بخاری ته نه دې، بلکه ابو نعيم يا بل راوی ته دې بيا په ده کښې د دويم عبارت مطلب دا دې چه امام بخاری رحمه الله فرمائی چه راويانو دا په شک سره روايت کړی دی، ابو نعيم رحمه الله چه دا د امام بخاری شيخ دی هغوی ده راويانو نه شک سره نقل کړی دی،

د دريمې نسخې د عبارت مطلب دا دې، "اجعلوا ......مقوله د ابو نعيم ده، ګويا چه هغه حاضرينو ته وائی چه دا شک سره وساتې،

د څلورمې نسخې په مطابق، "اجعلوا ......مقوله د امام بخاری ده ګويا چه هغه فرمائی چه دا

په شک سره وساتي، ځکه چه زما شيخ ابو نعيم دا په شک سره روايت کړی دی.

**وغيره يقول : الفيل**، د ابو نعيم نه علاوه نورو راويانو بغير د شک نه، «**الفيل**»، وائی دلته د غير نه مراد عبيدالله بن موسی دی ① کوم چه د ابو نعيم رفيق او د شيبان سره په روايت کولو کښې شريک دی، ② داسی حرب بن شداد هم مراد دې، کوم چه د يحي بن ابی کثير نه روايت کوی، ③ او دشيبان دوست او ملګری دی.

**د فيل د حبس واقعه**: دلته، «**ان الله حبس عن مكة الفيل**»، نه مراد اصحاب فيل دی او په دی کښې د اصحاب فيلو مشهوری واقعې طرف ته اشاره ده.

د دې واقعې خلاصه دا ده.

د حضور اکرم ﷺ د پيدائش نه پنځوس او يا پنځ پنځوس ورځې مخکې دا واقعه راغلې وه. اوشوه داسی چه نجاشی د حبشې د حاکم د طرف نه د يمن حاکم ابرهه نومې سړې وو. کله چه ده وکتل چه د عربو ټول خلق د بيت الله حج د پاره مکې مکرمې ته ځې او د خانه کعبه طواف کوی، نو ده وغښتل چه د عيسايانو د مذهب په نوم يو عالی شان عمارت جوړ شی، چه ډير زيات ښکلی وی، چه د عربو خلق هغه ساده کعبه پريږدې او ددې مصنوعی او پرتکلف کعبې طواف شروع کړی، چنانچه د يمن په دارالسلطنت صنعاء کښې يوه خانسته ګرجا جوړه شوه، په عربو کښې چه کله د خبره مشهوره شوه، نو د يو روايت په مطابق د قبيله کنانه يو سړې هلته راغلو او غټ بول نی وکړل او وتختيدو. او دبل روايت په مطابق د عربو خوانانو د دې په خوا وشاء کښې اوړ بل کړو، دا هوا په ذريعې سره په ګرجا کښې اوړ بل شو. او ګرجا اوسوزيده، ابرهه په غصه کښې قسم وخوړلو چه د خانه کعبې نړولو سره به ساه اخلمه.

او په دې اراده نی مکې ته فوځ ورواستولو، په لاره که چه به د عربو کومې قبيلې مزاحمت کولو نو هغه به نې ختمولو، تردی چه مکې مکرمې ته راورسيدل. لښکر او هاتهيان هم ورسره وو، د مکې په طرفونو کښې د مکې واله ځاروی څريدل، د ابرهه لښکر هغه ځاروی ونيسل چه په هغې کښې دوه سوا اوښان د حضور ﷺ د جدامجد عبدالمطلب وو.

په دغه وخت کښې دقريشو سردار او د خانه کعبې متولی عبدالمطلب وو. کله چه ده ته د ابرهه خبر وشو نو قريش نی جمع کړل او ورته نی ووئيل چه ويريږی مه خانه کعبه خالی کړئ، خانه کعبه څوک نړولی نشي، دا د الله کور دې او هغه به نې پخپله حفاظت کوی.

دې نه ورستو عبدالمطلب يو څو د قريشو سرداران خان سره کړل او ابرهه سره ميلاويدو ته لاړل، ابرهه د عبدالمطلب په ليدو سره په رعوب راغلو او ډير په احترام او اکرام سره ورته راغلو. د خبرو په دوران کښې عبدالمطلب د اوښانو د رهائی مطالبه وکړله، ابرهه متعجب شو او وئيل ډيره د تعجب خبره ده، چه زما سره دې د خپلو اوښانو په باره کښې خبره وکړه او خانه کعبه چه ستاسو د اباء او اجداد دين او مذهب دی، ددې په باره کښې ته يو لفظ هم ونه وئيلو، عبدالمطلب جواب ورکړو. «**انا ربّ الابل، وللبيت رب سيمنعه**»، ځه د اوښانو مالک يم ځکه ما د اوښانو سوال وکړو. او د خانه کعبې خدا پخپله مالک دی، هغه به خپل کور بچ کوي، ابرهه د څه خاموشی نه پس د عبدالمطلب اوښان واپس کولو حکم وکړلو، عبدالمطلب

خپل اوښان واخستل او واپس راغلو. او قریشو ته ئې حکم وکړلو چه مکه خالي کړي. او ټول اوښان ئې د خانه کعبې نذر کړل. او د يو څو کسانو سره د خانه کعبې دروازې ته حاضر شو. چه ټول منت او زاری سره دعا وغواړي.

عبدالمطلب د دعا نه فارغ کیدو سره خپلو ملګرو سره غر ته وختو. او ابرهه خپل لښکر واغستلو او د خانه کعبې نړولو دپاره لاړل. بس سمدستي د خدا په حکم د وړو وړو مرغو ډلې ډلې په نظر راغلې، د هرې يوې په مخوکه او په پنجو کښې واړه واړه کاڼي وو. چه ناڅاپه په لښکر باندې باران شو. د خدائ په قدرت سره هغه کاڼو د ګولې کار ورکولو. په سر باندې به پروتو او د لاندې د طرفه به ووتو. او چه په کوم کس به هغه کاڼي پروتو نو هغه به ختميدو. غرض د چه په ده طريقه د ابرهه لښکر تباه او برباد شو. او په خپله د ابرهه په بدن باندې تنکۍ دانې راوختې، چه د هغې په ذريعه د هغه بدن سخا شو او د بدن نه نې نو او وينه بهيدله. او يو بل پسې به ئې يو يو اندام کټ کيدلو او غورځيدو به. آخر د هغه سينه وشليده. زړه ئې بهر راوتو او مړ شو. چه کله ټول مړه شول. نو الله تعالى د سيلاب په ذريعه هغه ټول په درياب يوړل. [1] دلته حضور اکرم ﷺ ده واقعې طرف ته اشاره وکړله او د ئې ونيل غوښتل چه الله تعالى د مکې مکرمې د حرمت دپاره اصحاب فيل: مکې والو نه منع کړل او په دوې ئې ابابيل مسلط کړل، لهذا د اسلام نه پس خو د هغې خلقو حرمت نور هم زياتيږي. [2]

**که چرې د رواياتو په لفظ کښې غلطي راشي نو د هغې تصحيح کول پکار دي کنه؟** امام بخاري رحمه الله دلته چه څنګه د امام ابو نعيم رحمه الله نه اوريدلې دي هم هغه شان ئې نقل کړې دي او تلامذه ته ئې هم ووئيل چه دا هم داسې پاتې شي او په صواب ئې ورته تنبيه وکړله.

ددې نه معلومه شوه چه د امام بخاري رحمه الله په نزد که چرته د روايت په لفظ کښې غلطي راشي نو هم داسې روايت کول پکار دي،

**په دې مسئله کې د علماء دوه مذاهب دي** ① نافع مولى ابن عمر، ابو معمر عبدالله بن سخبره، محمد بن سيرين، قاسم بن محمد او د رجاء بن حيوة نه علاوه نور ډير حضرات دي چه څنګه ئې اوريدلې دي هغه شان دې روايت کړې شي. [3] ② اکثر محدثين مثلاً همام، ابن المبارک، ابن عيينه، النضر بن شميل، ابو عبيد، عفان، ابن المديني، ابن راهويه، حسن بن على الحلواني، حسن بن محمد الزعفراني وغيره فرمائي چه که چرته په روايت کښې غلطي واقع شي نو دا درست کولو سره على الصواب نقل کول پکار دي. [4]

---

[1] وګورئ سيرت المصطفى (ج ۱ص ۴۶ ـ ۴۹) ـ

[2] فتح البارى ج ۱ ص ۲۰۶) ـ

[3] وګورئ الكفاية (ص ۱۸۵ ـ ۱۸۸) باب ذكر الرواية عمن كان لا يرى تغيير اللحن فى الحديث والجامع لاخلاق الراوى وآداب السامع (ص ۲۴۲ و ۲۴۳)وعلوم الحديث لابن الصلاح (ص ۲۱۸) النوع السادس والعشرون فى صفة رواية الحديث وشرط ادائه وما يتعلق بذلك ـ وفتح المغيث للسخاوى (ج ۳ ص ۱۶۸)اصلاح الحن والخطاء) ـ

[4] وګورئ (المحدث الفاصل بين الراوى والواعى (ص ۵۲۴ ـ۵۲۶) والكفاية (ص ۱۹۳ ـ۱۹۸) وفتح المغيث للعراقى (ص ۲۶۶) وفتح المغيث للسخاوى (ج ۳ ص ۱۶۹) ـ

خطیب بغدادی ﷫ فرمائیلې دی . وهذا اجماع منهم ان اصلاح اللحن جائز»[۱] یعنی د حدیث د علماؤ اجماع دہ چه د لحن اصلاح جائز دہ،هم دغه شان فرمائی : والذی نذهب الیه روایة الحدیث علی الصواب، وترك اللحن فیه وان کان قد سمع ملحونا، لان من اللحن ما یحیل الاحکام ویصیر الحرام حلالا، والحلال حراما، فلا یلزم اتباع السماع فیما هذه سبیله، والذی ذهبنا الیه قول المحصلین والعلماء من المحدثین»[۲] یعنی زمونږ مذهب دا دې چه حدیث درست روایت شې او په لحن باندې عمل اونکړې شی، اګر چه سماع د لحن سره شوې وی، ولې چه بعضی لحن داسې دې چه هغه په احکامو کښې تبدیل راولې او حرام حلالوی او حلال حراموی.لهذا کوم ځائ کښې چه داسې صورت وی نو هلته د سماع اتباع ضروری نه دہ.زمونږ دا مذهب هم د علماؤ او محدثینو مذهب دی،
حافظ ابن الصلاح او امام نووی رحمهماالله هم دۀ ته صحیح وئیلې دې. (۳)دا خبرې خو په هغه لحن کښې دہ چه کومې سره معنی نه بدلیږې او کوم ځائ چه معنې بدلیږ ې نو هلته بغیر د تردد نه ددې حضراتو په نزد علی الصواب روایت کول پکار دې. (۴) البته د شیخ عزالدین عبدالسلام په باره کښې علامه ابن دقیق لیکلې دی.سمعت ابا محمد بن عبد السلام.وکان احد سلاطین العلماء.کان یری فی هذه المسالة مالم اره لاحد، ان هذا اللفظ المحتمل لایروی علی الصواب ولاعلی الخطا، اما علی الصواب فانه لم یسمع من الشیخ کذلك، واما علی الخطا فلان سیدنا رسول الله صلی الله علیه وسلم لم یقله کذلك»[۵] یعنی د شیخ عزالدین عبدالسلام په دې مسئله کښې یو رائی دہ چه هغه د بل چا نه نقل شوې نه دہ او هغه دا دہ چه محتمل لفظ دې نه درستګئ سره روایت شې او نه دې غلط پاتې کیدو سره نقل کړې شې،درست په دې وجه روایت کول نه دې پکار چه د دہ د شیخ نه سماع نشته او غلط په دې وجه نقل کول نه دې پکار چه داسې د رسول الله ﷺ نه منقول نه دې، ددې حاصل دا دې که چرې په روایت کښې غلطی واقع وی نو نه دہ درست روایت شی او نه خطاء ولې چه د درست سماع نشته او خطا د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم نه صادر شوې نه دہ.

**که چرته په کتاب کښې غلطی واقع شی نو هغه په خپل حال باندې پرېښودل پکار دی او که د هغه تصویب پکار دی؟** دا خبرې خو د روایت په باره کښې وې اوس که چرته په کتاب کښې غلطی واقع شی نو د هغې اصلاح پکار دہ او کنه ؟ حافظ ابن الصلاح ﷫ فرمائیلې دی چه

[۱]) الکفایة (ص ۱۹۸) ـ
[۲]) الجامع لاخلاق الراوی وآداب السامع (ص ۲۴۳) القول فی ردالحدیث الی الصواب. اذا کان راویه قد خالف موجب الاعراب) ـ
[۳]) فتح المغیث للسخاوی (ج ۳ ص ۱۷۰) ـ
[۴]) وګورئ علوم الحدیث لا بن صلاح (ص ۲۱۸) وتقریب النواوی (ج ۲ ص ۱۰۷) ـ
[۵]) فتح المغیث للعراقی (ص ۲۶۶) وانظر ایضا فتح المغیث للسخاوی (ج ۳ ص ۱۶۸ و ۱۶۹) ـ

صحيح خبره دا ده چه هغه په خپل حال باندې پرېښودل پكار دى. په كتاب كښې تصحيح نه ده پكار البته په حاشيه كښې د غلطئ نشاند هى پكار ده. [1]

ددې وجه واضحه ده په اكثرو وختونو كښې اهل علم يوه خبره غلطه ګڼړى. خوچه كله د هغې صحيح توجيه كيږى ، خاص طور د عربي په لحاظ سره تخطئه كافي د احتياط تقاضه كوى، ولى چه لغات د عربي مختلف دى. لهذا يو جهت او يا لغت غلط ثابتول معولى خبره نه ده. [2] چنانچه امام احمد بن حنبل رحمه الله عادت وو. كه چرته به نى فحش غلطي وكتله نو د هغې تصحيح به نى كوله او كه چرته معولى غلطى به وه نو هغه به نى پرېښودله. [3]

حافظ ابن الصلاح رحمه الله نه نقل شوى دى چه يو محدث چا په خوب كښې وليدلو چه دهغه په شونډو او يا ژبه كښې عيب دې، كله چه ترى تپوس وكړې شو نو وونيل چه ما د حضور اكرم صلى الله عليه وسلم په حديث مبارک كښې په يو لفظ كښې د خپلې رائى نه تبدل كړې وو.

ددې وجې نه زما سره داسى وشوه. [4] هم دغه شان قاضى عياض رحمه الله هم فرمائيلي دى.. ان الذى استمر عليه عمل اكثر الا شياخ ان ينقلوا الرواية كما وصلت اليهم ولا يغيرونها فى كتبهم .......

[5] حافظ ابن الصلاح رحمه الله فرمائلي دي چه بعضې علماؤ حضراتو په كتابو نو كښې د تبديليانو جسارت كړې دې، لكه علامه ابو الوليد هشام بن احمد كنانى وقشى دې، دا چونكه انتهائى ثاقب فهم ، تيز ذهن ، متفنن او كثير المطالعه بزرګ وو. په دې وجه باندى هغه په كتابو نو كښې ډير اصلاحات كړى دى. ليكن په ډېرو ځيزونو كښې په خپله غلطيانې كړى دى، چا چه هم داسې قسما اصلاح كړى ده، نو هم د هغه سره داسى معامله شوې ده. [6]

په دې وجه په كتاب دننه د اصلاح او تغير باب بند كړې شي خاص طور چه كله په حاشيه كښې د هغې وضاحت كيږى. [7] او بيا په دې كښې اختيار دې چه روايت اول على الصواب نقل كړې، او د هغې نه ورستو چه كوم ئى د استاذ نه اوريدلى وى هغه بيان كړى او كه وغواړې چه څنګه ئى اوريدلى دې اول هغه بيان كړې او بيا ئې على الصواب نقل كړى، په دې كښې اولنې قول بهتر دې، چه حضور اكرم صلى الله عليه وسلم طرف ته د غلطې نسبت بالكل ونكړې شي، [8] والله اعلم ،

**قوله: وسلط عليهم رسول الله والمؤمنين :** اوپه دوى باندې الله تعالى خپل رسول ﷺ

---

[1] علوم الحديث لا بن الصلاح (ص ۲۱۹) .
[2] وګورئ: علوم الحديث لابن الصلاح (ص ۲۱) وفتح المغيث للسخاوى (ج ۳ ص ۱۷).
[3] علوم الحديث لا بن الصلاح (ص ۲۱۹) .
[4] (حواله باله) .
[5] الالماع (ص ۱۳۱) باب اصلاح الخط وتقويم اللحن والا ختلاف فى ذلک. وعلوم الحديث (ص ۲۱۹)
[6] علوم الحديث لا بن الصلاح (ص ۲۲۰) .
[7] (حواله باله) .
[8] علوم الحديث (ص ۲۲۰) .

او اهل ایمان غالب کړي دي. دلته ،، سلط،، دمعروف صیغه ده. او په دویمه نسخه کښې ،، والمؤمنون،، دي، په دې صورت کښې ،، سلط،، د مجهول صیغه شوه ،، رسول الله صلی الله علیه وسلم والمؤمنون،، به نائب فاعل وي.[1] مطلب دا دي چه ابرهه اود هغه لښکر ته خو ده داخیلدو موقع مَیلاؤ نه شوه، بلکه دوی د کعبې نه بهر هلاک شو او دا الله تعالی رسول ﷺ او مومنان الله تعالی غالب کړل. الا وانها لم تحل لاحد قبلي ولم تحل لاحد بعدی،
په غور واورې دا نه زما نه مخکې د چا د پاره حلال وو او نه زما نه ورستو د چا دپاره حلال دې، دا ده حدیث په بناء باندې د بعضې علماؤ مذهب دې. چه که اهل مکه په بغاوت راشې او په باطل باندې یو ځائ شی نو هم د دوې سره قتال درست نه دې. البته د جمهور علماؤ په نزد که چرته بغیر د قتال نه سم نه شو نو د قتال اجازت شته دې. د فریقینو د مذاهبو تفصیل او دلائل په تیر شوې ،باب لیبلغ العلم الشاهد الغائب ، کښې تیر شوي دي. هم دغه شان په ده باب کښې حرم مکه کښې قتل وقصاص حکم هم په تفصیل سره بیان شوي دي.

**قوله:** الا، وانما حلت لي ساعة من نهار، الا، وانها ساعتي هذه حرام: واورې .
دا زما دپاره د ورځې په څه حصه کښې حلال شوې وو او اوس دا حرام دی. **لایختلی شوکها ولا یعضد شجرها :** نه دې د دې غنی پریکړلی شي او نه دې ددې ونې کټ کړ لې شي. **لایختلی،،** باب افتعال نه د مضارع مجهول صیغه ده. اختلا معنی ذ غنې ده.[2]
شوک : د شوکة جمع ده غنې ته وئیلې کیږي[3].

**قوله:** لا یعضد : عضد یعضد (باب ضرب) نه مضارع مجهول صیغه ده، دا دې معنی هم د غنې ده.[4]

**د حرم مکې د نبا تا ت او د اشجار و د قطع څه حکم دې؟:** په تفصیل سره ورستو ،،باب لیبلغ العلم الشاهد الغائب، د لاندې تیر شوې دي

**قوله:** ولا تلتقط ساقطها الا لمنشد :او نه دې د دې غورځیدلی څیز (یعنی لقطه) اوچته کړې شي. مګر د معرف د پاره اجازت دې.
**د حرم د لقطې حکم :** که چرې په حرم کښې څه څیز وغورځیږي نو آیا ددې حکم هم د عامې لقطې په شان دی او یا که د دې حکم د نورو ځاینو د لقطو په مقابله که څه فرق شته دې ، امام شافعي رحمه الله فرمانی چه د لقطې حل او حرم کښې فرق شته دې، د هغه په نز د عامی

---
[1] فتح الباری (ج ۱ ص ۲۰۶) -
[2] وګورئ: النهایة لا بن الا ثیر (ج ۲ ص ۷۵) والقاموس الوحید (ص ۴۸۳) ـ
[3] القاموس الوحید (ص ۸۹۹) ـ
[4] النهایة لا بن الا ثیر (ج ۳ ص ۲۵۱) ـ

لقطې حکم د دې، چه التقاط د لقطې واجب او که مستحب دې.او د دې نه ورستو به د يو مدت پورې تعريف کوی، او که د تعريف نه پس هم مالک رانغلو نو ملتقط هغه په خپل استعمال کښې راوستې شې.برابره خبره ده.که ملتقط غنی وی او که فقير .[1]

او دحرم دلقطه په باره کښې هغه فرمائی چې ددې التقاط صرف دحفاظت په غرض سره جائز دی، دتملک په نيت سره بالکل جائز نه دی. بيا به ددې هميشه تعريف کيږی. گويا چې ددې تملک به ممکن نه وی .[2]

جمهورائمه او دامام ابوحنيفه. دامام مالک مذهب او دامام احمد ﷫ مشهورقول دادې چې په لقطه دحل اودحرم کښې هيڅ فرق نشته. دامام شافعی ﷫ يوقول هم داسې دې .[3]

دامام شافعی ﷫ استدلال يوخو دحديث باب نه دې

دويم استدلال په صحيح مسلم اوسنن ابی داؤد کښې دحضرت عبدالرحمن بن عثمان تيمی ﷛ روايت ,, ان رسول الله صلى الله وسلم نهى عن لقطة الحاج،، نه دې .[4] يعنی ,, رسول الله ﷺ دحاجی دلقطه نه منع فرمائيلې ده،،.

امام شافعی ﷫ فرمائی چې دعام لقطې په باره کښې رسول الله ﷺ ,,عرفها سنة،، فرمائيلی دی .[5] اودلقطه حرم په باره کښې ئې هډو څه توقيت نه دې فرمائيلې. نومعلومه شوه چې ددې دائما تعريف ضروری دې، تردې پورې چې مالک ئې ملاؤشی. گنی داشان دتخصيص هډوڅه وجه نشته دې. په دې کښې راز دا دې چې مکه مکرمه لره الله تعالی ,,مثابة للناس،، جورکړې دې. دکوم ځاې نه چې خلق لاړشی بياواپس دوباره دوباره راځی.عين ممکنه ده. چې ددې مفقود څيزدوچې نه مالک واپس راشی، يا څوک را اوليږی نودغه شان به دهغه مال محفوظ وی .[6]

دجمهورو استدلال دلقطې په باره کښې وارد دهغه عامواحاديثونو نه دې په کوموکښې چې د لقطه حل اوحرم په مينځ کښې څه تفريق نه دې کړې شوې .[7]

بيا لقطه يوامانت دې.دعامووديعتونوپشان ددې په حکم کښې څه فرق نشته. که دحل امانت وی اوکه دحرم امانت .[8]

---

[1]) تکملة فتح المهم (ج ۲ ص ۶۲۲) نقلا عن مغنی المحتاج (ج ۲ ص ۴۱۷) ـ

[2]) تکملة فتح الملهم (ج۲ص۶۲۲). نقلا عن مغنی المحتاج (ج۲ص۴۱۷)_

[3]) اوگورئ: المغنی لابن قدامة (ج۶ص۱۱)_

[4]) الصحيح لمسلم.کتاب اللقطة.باب فی لقطة الحاج.رقم (۴۵۰۹) والسن لابی داود. کتاب اللقطة. باب التعريف باللقطة.رقم (۱۷۱۹)_

[5]) اوگورئ: صحيح البخاری (ج۱ص۱۹). کتاب العلم.باب الغضب فی الموعظة والتعليم اذا رای مايکره. رقم (۹۱)_

[6]) اوگورئ: تکملة فتح الملهم (ج۲ص۶۲۳). کتاب اللقطة. باب فی لقطة الحاج _

[7]) اوگورئ: المغنی لابن قدامة (ج۶ص۱۱)_

[8]) حواله بالا_

دکوم ځي پورې چې دحدیث باب تعلق دې، نوددې په باره کښې علامه ابن قدامه رحمه الله
فرمائي چې ,, الا لمنشد،، مطلب دې ,, الا لمن عرفها عاما،، دې ـ مطلب دادې چې په مکه
مکرمه کښې دلقطې اوچتولو اجازت هغه چا ته دې څوک چې دتعریف اراده لری، دتملک په
نیت سره داوچتولو ګنجائش نشته دې ـ (۱)
په دې باندې سوال کیږی چې کله دحل اوحرم په لقطو کښې څه فرق نشته نو بیا په مخصوصه
توګه باندې دلته ,, لاتلتقط ساقطتها ......،، ونیلوسره دمکې مکرمې دتخصیص څه وجه ده؟
ددې جواب دادې چې دادمکې مکرمې دخصوصیت دوجې نه دی چې داتعریف صرف هلته
واجب وی، بلکه ددې تاکید مقصود دې چې په مکه مکرمه کښې دتعریف زیات اهتمام
اوکړې شي. په حرم کښې چونکه بې شمیره حجاج راځی نوځکه به هلته په تعریف کښې
مبالغه کول پکاروی. په مساجدو کښې او په اسواقو(بازارونو) اوپه محافلواو په مجامعو
کښې به باربار اعلانونه کول پکاروی اودا داسې دی لکه چې نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی ..
ضالة المسلم حرق النار،، (۲) چې دمسلمان ورک شوې څیز دسوزلو باعث دې ـ ددې دا مطلب نه
دې چې داحکم صرف دمسلمان دڅیزدپاره دې دذمی دپاره نه دې، بلکه دا حکم ددواړو
دڅیزونو دپاره دې، البته دمسلمان دڅیز تاکید مقصود دې ـ (۳)
صاحب دهدایه فرمائی دحدیث باب مطلب دادې چې ددې التقاط هم دتعریف دپاره
جائزدې، او کوم ځائې پورې چې دحرم دتخصیص تعلق دې نو داددې خبرې دواضحه
کولودپاره دې چې چاته دا خیال راتلل نه دی پکار چې دلته چونکه په عام توګه باندې
داجنبی خلقو ورود کیږی، معلومه نه ده چې اصل مالک به دکوم ځائې نه کوم ځائې ته
رسیدلې وی نولهذا دتعریف هډو څه فائده نشته دې ـ داوګنړی اوتعریف اوعلان اونه کړی،
ددې غلط فهمۍ لرې کولودپاره حضوراکرم ﷺ اوفرمائیل چې ددې حکم هم دنورو
علاقوپشان دې چې دلته هم تعریف ضروری دې، څنګه چې په نوروعلاقو کښې تعریف
ضروري دې ـ (۴)
بعضې حضرات وائی چې دلته چونکه ملتقط ته دا غلط فهمی کیدې شی چې بس صرف په
,,موسم حج،، کښې اعلان اوتعریف ضروری کافي دې، ځکه هغوی تاکید اوفرمائیلو چې
دعام لقطې پشان پوره کال تعریف ضروری دې ـ (۵)
علامه ابن القیم رحمه الله دبعضې حضراتونه نقل کړی دی چې دمکې مکرمې تخصیص په دې

(۱) حواله سابقه_
(۲) جامع ترمذی، کتاب الاشربة، باب ماجاء فی النهی عن الشرب قائما،رقم (۱۸۸۱)_ وسنن ابن ماجه،کتاب اللقطة، باب ضالة الابل والبقروالغنم،رقم (۲۵۰۲)_ ومسند احمد (ج ٤ص ٤٥) مسند مطرف بن عبدالله عن ابیه. رقم (۱٦٤٢۳) و(ج٥ص ۸۰) مسند الجارود العبدی. رقم (۲۱۰۳٤_۲۱۰٤۰)_
(۳) المغنی لابن قدامة (ج٦ص ۱۱)_
(٤) اوګوری:الهدایة (ج ٤ص ۳۷٤) کتاب اللقطة (طبعة : ادارة القران کراتشی) وفتح القدیر (ج٥ص ۳٥۷)
(٥) تکملة فتح الملهم (ج۲ص ٦۲۳) نقلا عن مغنی المحتاج (ج۲ص ٤۱۷)_

بنیاد باندې دې چې د مکې مکرمې نه خلق زر واپس خی، خکه د یو کال پورې تعریف په بعضې وختونو کښې مفید نه وی، خکه هغه خائې کښې لقطه هم هغه سړی اوچتولو شی کوم چې د خلقو د تللو نه وړاندې وړاندې تعریف کولې شی، او په نورو خایونو کښې چونکه دا وجه نه وی خکه هلته تخصیص نه دې شوې ـ (۱)

اوکوم خاې پورې چې حدیث "نهی عن لقطة الحاج" تعلق دې، نو دا نهی بالکل صریح ده او په ظاهره د دې حکم د نورو لقطو د حکم نه مختلف دې ـ

لیکن حقیقت دا دې چې د دې نهی نتیجه هم دا راوخی چې "لقطة الحاج" او "لقطة غير الحاج" کښې څه فرق هم نشته دې ـ

وجه دا ده چې لقطة الحاج د التقاط نه نهی په دې بنیاد باندې شوې ده چې حاجی د خپل خان سره هم ضروری ضروری څیزونه اوړی او کوم څیزونه چې هغه خان سره اوړی د هغې نه هغه عموما مستغنی نه وی، گویا د دغه څیزونو هغه ته سخت ضرورت وی. په داسې صورت کښې چې کله د هغه نه څه څیز اورک شی نو هغه به ئې خامخه لټوی او په عامه توگه باندې به هم هلته ئې لټوی کوم خائې کښې چې هغه څیز اورک شوې وی. نو لهذا که چا دغه څیز اوچت کړو نو مالک به ئې په آسانې سره حاصل کړی. په خلاف د هغه صورت کښې چې څوک ئې اوچت کړی او تعریف ئې اوکړی نو دا عین ممکنه ده چې څیزپه یو خائې کښې اورک شوې وی او هغه سړې تعریف په بل خائې کښې کوی. مثلا څیزپه مکه مکرمه کښې ورک شوې وی او هغه په منی کښې اعلان کوی ـ په داسې صورت کښې به د تعریف هیڅ فائده نه وی ـ

د دې نه دا خبره واضحه کیږی چې د لقطه الحاج حکم د نورو لقطو نه مختلف نه دې. خکه چې اصل دا دې چې التقاط لقطه نه وی، او که چرته د ضائع کیدو او د تلف کیدو اندیښنه وی نو التقاط دې اوکړې شی، څنگه چې لقطه الابل په باره کښې نهی وارد ده ـ بعینه دغه شان د لقطه الحاج نهی هم په دې بنیاد باندې ده ـ (۲)

**د لقطة الحاج په باره کښې یو وضاحت:** دلته دا خبره دې ملحوظ وی چې د حاجیانو د لقطې التقاط کوم ممنوع دې دا حکم معلول بالعلة دې، په هغه صورت کښې به التقاط نه کړې کیږی کله چې د ضیاع او د سرقه نه مامون وی ـ (۳)

علامه ابن الهمام رحمه الله فرمائی په صحیح مسلم کښې چې کوم "نهی عن لقطة الحاج" راغلې ده، د دې په باره کښې ابن وهب رحمه الله فرمائی چې د دې مطلب دا دې چې دا په هغه خائې کښې دې پریخودې شی، تر دې پورې چې مالک ئې راشی او دا واخلی. لیکن زمونږ په زمانه کښې په دې باندې عمل ممکن نه دې. خکه چې په مکه مکرمه کښې د بیت الله شریف نه خاؤشا ډیره زیاتې غلاگانې کیږی، نو چې مالک نه وی نو لقطه به بالکل محفوظه نه وی (۴) والله اعلم

---

(۱) اوگورئ: تهذيب السنن (ج ۲ ص ۲۷۳) ـ
(۲) اوگورئ: تكملة فتح الملهم (ج ۲ ص ۶۲۴) ـ
(۳) حواله بالا ـ
(۴) فتح القدير (ج ۵ ص ۳۵۷)

**قوله: فَمَنْ قُتِلَ فَهُوَ بِخَيْرِ النَّظَرَيْنِ، إِمَّا أَنْ يُعْقَلَ، وَإِمَّا أَنْ يُقَادَ أَهْلُ الْقَتِيلِ:**
نوچې کوم سړې قتل کړې شی نوهغه ته (یعنی دهغه ولی ته) په دو اختیاراتو کښې دبهتر اختیار دې. یاخو دهغه مقتول دیت دې ورکړې شی یا دمقتول اهل ته دې قصاص ورکړې شی دلته «مَنْ قُتِلَ فَهُوَ بِخَيْرِ النَّظَرَيْنِ» واقع دې اوپه ظاهره ددې معنی درسته نه ده ځکه «مَنْ قُتِلَ» نه مقتول مراد دې د«هو» ضمیرهم دهغه طرف ته راجع کیږی. حالانکه مقتول ته اختیارنه وی

علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چې دلته تقدیری عبارت «من قتل فهو ای اهله بخیر النظرین» دې یعنی مراد «اهل» دې. اګرچه ددې په ځائې باندې «هو» یعنی دمقتول ضمیر ایخودې شوې دې. ددې وجه هم داده چې هم مقتول ددې اختیار سبب جوړیږی[1]
لیکن علامه عینی رحمه الله فرمائی چې په دې کښې اضمار قبل الذکر لازمیږی. کوم چې درست نه دې. ځکه چې د«اهل» اول ذکر نه دې شوې[2]

علامه خطابی اوحافظ ابن حجر رحمهما الله فرمائی دلته تقدیری عبارت «من قتل له قتیل ........» دې[3]
علامه عینی رحمه الله په دې تقدیر باندې هم اعتراض کړې دې او وئیلی دی چې په دې صورت کښې حذف فاعل (یعنی نائب فاعل) لازمیږی[4]
هغه فرمائی چې دلته دې مبتداء محذوفه اومنلې شی او تقدیری عبارت داسې پکاردې «فمن اهله قتل فهو بخیر النظرین» په دې کښې «من» مبتداء ده «اهله قتل» په مبتداء اوخبر باندې مشتمله جمله د«من» موصول دپاره صله ده «فهو بخیر النظرین» پوره جمله مبتداء اول دپاره خبردې «قتل» کښې چې کوم ضمیر دې هغه د«اهل» مقدر طرف ته راجع دې او د«فهو» ضمیر «من» طرف ته واپس کیږی.

او د«بخیر النظرین» متعلق محذوف دې «فهو مرضی بخیر النظرین» یا «فهو عامل بخیر النظرین» یا «فهو مامور بخیر النظرین» تقدیر راویستلې کیدې شی[5]
دعلامه عینی رحمه الله دخطابی او دابن حجر رحمهما الله په تقدیرباندې اعتراض اګرچه په خپل ځائې باندې صحیح دې. بیا هم دا وئیلې کیږی چې په اصل کښې دلته عبارت وو «من قتل له

---

[1] شرح الکرمانی (ج۲ص۱۲۲)_
[2] عمدۃ القاری (ج۲ص۱۶۵)_
[3] اوګورئ اعلام الحدیث للخطابی (ج۱ص۲۱۶). وفتح الباری (ج۱ص۲۰۶) _
[4] عمدۃ القاری (ج۲ص۱۶۵)_
[5] حواله بالا_

قتیل،، خکه چې په کتاب الدیات والا روایت کښې صریح توګه باندې .. من قتل له قتیل ....... وارد شوې دې۔ [۱]

بیا دعلامه صنعانی رحمه الله په نسخه کښې په خپله په دې مقام کښې د .. من قتل له قتیل،، پوره عبارت موجود دې. ددې نه معلومیږی چې په دې مقام کښې په بعضې نسخوکښې دغلطې نه .. له قتیل،، پاتې شوې دې۔ [۲] والله اعلم۔

**قوله: «إِمَّا أَنْ يُعْقَلَ، وَإِمَّا أَنْ يُقَادَ أَهْلُ الْقَتِيلِ»** :یا خواهل مقتول ته دیت ورکړې شی یادمقتول نه دې قصاص واخستلې شی۔

دعلامه کرمانی رحمه الله کلام نه معلومیږی چې .. اهل القتیل،، د .. یعقل،، نائب فاعل دې اود .. یقاد،، نائب فاعل ضمیر دې. کوم چې دمقتول طرف راجع کیږی۔ [۳]

علامه قسطلانی رحمه الله د دمامینی په حواله سره نقل کړی دی چې کیدې شی .. یقاد،، .. یمکن من القود،، په معنی کښې وی. اوس به مطلب داشی .. یمکن اهل القتیل من القود،، دمقتول اولیاؤ ته به دقصاص اخستلو اختیارحاصل وی۔ [۴]

**د قتل عمد مؤجب احد الامرین دې یا صرف قصاص؟** ددې حدیث نه معلومیږی چې دقتل عمدموجب په دیت اوقصاص کښې یودې. په دې کښې دیواختیارولوحق دمقتول ولی ته به وی۔ دامام شافعی او دامام احمد رحمهماالله هم دا مذهب دې۔

اوامام ابوحنیفه، اوامام مالک او امام سفیان ثوری رحمهم الله فرمائی چې دمقتول ولی ته دقصاص اخستلو حق حاصل دې، که قصاص نه اخلی نو معاف دې کړی۔ کوم حائې پورې چې ددیت دایجاب تعلق دې. نودا دقاتل درضامندې باندې موقوف دې۔ [۵]

علامه ابوالقاسم سهیلی رحمه الله فرمائی چې دفریقین په مینځ کښې داختلاف منشا په آیت کریمه ﴿فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ أَخِيهِ شَيْءٌ فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوفِ وَأَدَاءٌ إِلَيْهِ بِإِحْسَانٍ﴾ [۶] کښې احتمال دې. په دې آیت کښې د .. اتباع .. حکم بالاتفاق ولی دم ته دې او .. اداء .. حکم قاتل ته دې، لیکن ﴿فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ أَخِيهِ شَيْءٌ﴾ کښې دننه دوه احتماله دی، یوخودا چې .. من،، نه مراد ولی دم وی اود .. عفی له،، معنی .. یسر له،، وی اود .. من اخیه،، نه مراد مقتول وی او .. شئ،، نه دیت مراد وی۔

---

[۱] اوګورئ: صحیح البخاری (ج۲ص۱۰۱۶) کتاب الدیات، باب من قتل له قتیل فهوبخیرالنظرین. رقم (۶۸۸۰)

[۲] اوګورئ: ارشاد الساری (ج۱ص۲۰۵) ۔

[۳] شرح الکرمانی (ج ۲ص۱۲۲) ۔

[۴] ارشاد الساری (ج۱ص۲۰۵) ۔

[۵] اوګورئ: شرح صحیح البخاری لابن بطال (ج۸ص۵۰۶و۵۰۷). کتاب الدیات، باب من قتل له قتیل فهو بخیرالنظرین ۔

[۶] البقرة /۱۷۸ ۔

اوس به مطلب داوى ,, من يسماله من اخيه المقتول شيء اى من الدية،، يعنى كه چرته د ولى دم دپاره ددهٔ درور دوجې نه ديت ورکړې شى نو (فَاتِّبَاعٌۢ بِالْمَعْرُوْفِ وَاَدَآءٌ اِلَيْهِ بِاِحْسَانٍ ؕ)۔
اودويم احتمال دادې چې د ,,من،، نه مراد قاتل وى او,,عفى،، د عفو نه ماخوذ وى، چې معنى ئې دمعاف کوله ده او,, اخيه ،، نه مراد ولى دم وى. مطلب به داشى چې كه چرته قاتل ته دولى دم دطرفنه دقتل معافى وركړې شى نودقاتل نه به قصاص ساقط شى اودقاتل په ذمه به ديت واجب شى، نواوس به دولى دم په ذمه به په معقول توګه باندې دمال مطالبه به کيږى چې دهٔ لره ډير تنګ نه كړې شى او مدعا عليه يعنى دقاتل په ذمه په ښه طريقه سره اداء كول دى چې په مقدار كښې كمې اونه كړى اونه دې خواه مخواه ټال متول كوى۔ (١)
شوافع او حنابله په دې كښې ددې دويم احتمال په بنياد باندې دا وائى چې قاتل لره به كلى توګه باندې يا په جزئى توګه باندې معاف كړې شى نوقصاص به ساقط كيدوسره ددیت دوجوب صورت جوړې دې شى،کنې نه ۔ ګوياچې قصاص معاف کولو سره ددیت واجب کولواختياربه ولى دم ته وى قاتل ته نه ۔
اواحناف او مالكيه آيت لره اولنى احتمال باندې محمول كوى او دا وائى چې چونكه اصل حكم (كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلٰى ؕ) موجب قصاص دې،البته كه چرې ولى دم قصاص وانخلى، بلكه په ديت اخستلوباندې راضى شى اوقاتل په ديت وركولوباندې راضى شى نواوس ددې طريقه كار ښودلې كيږى چې ولى دم دې ,,اتباع بالمعروف،، اوكړى اوقاتل دې ,,اداء باحسان،، اوكړى ۔
ددې نه علاوه داحنافو دلائل لاندې دى:

①۔ (كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلٰى ؕ) ـ (٢)
②۔ (وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيْهَآ اَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ ۙ)ـ (٣)
③۔ (وَمَنْ قُتِلَ مَظْلُوْمًا فَقَدْ جَعَلْنَا لِوَلِيِّهٖ سُلْطٰنًا فَلَا يُسْرِفْ فِّي الْقَتْلِ ؕ) (٤)
په دې آيت كښې بالاتفاق هم قصاص مراد دې ۔ (٥)
④۔ (وَاِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوْا بِمِثْلِ مَا عُوْقِبْتُمْ بِهٖ ؕ)ـ (٦)
⑤۔ (فَمَنِ اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوْا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ) (٧)

---

(١) اوګورئ الروض الانف (ج٢ص٢٧٨)، ومعارف القرآن (ج١ص ٤٣٤و٤٣٥) خلاصة تفسير ـ
(٢) البقرة /١٧٨ ـ
(٣) المائدة / ٤٥ ـ
(٤) الاسراء /٣٣ ـ
(٥) اعلاء السنن (ج١٨ص٧٨). كتاب الجنايات. باب ثبوت الخيار لولى المقتول بين القصاص والدية بعد رضاء القاتل بالدية ـ
(٦) النحل /١٢٦ ـ
(٧) البقرة /١٩٤

په دې آيت كښې هم د ,,مثل،، نه ,,قود،، يعنې قصاص مراد دې ـ [1]
ددې ټولوآياتونوتقاضا دا ده چې دقتل عمد موجب هم صرف قصاص دې. ددې نه علاوه نورهيڅ نه دی ـ
دا آيات كريمه نه علاوه لاندې رواياتونه هم داحنافو دليلونه دی ـ
① ـ په سنن نسائي كښې، اوسنن ابى داود اوسنن ابن ماجه كښې دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مرفوعا مروی دی

,,قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: من قتل في عميا او رميا تكون بينهم بحجر او سوط او بعصا فعقله عقل خطاء، ومن قتل عمدا فقود يده، فمن حال بينه وبينه فعليه لعنة الله والملائكة والناس اجمعين، لايقبل منه صرف ولاعدل،، ـ(اللفظ للنسائي) ـ [2]

يعني,, كوم سړې چې په روند جنګ كې مړ شي يا ددوی په مينځ كښې سنګ باری ‹دكاڼړو بمباری› يا دكوړو يا دلختو جنګ وی نوددهٔ ديت به دقتل خطا ديت وی او څوک چې عمدا قتل كړې شي نودهغه نه به په لاس سره قصاص اخستلې شي.بيا كه څوک دقاتل او دقصاص په مينځ كښې حائل وی نوپه هغه باندې به دالله تعالى او دټولو فرښتو اودټولو خلقو لعنت وی، ددهٔ نه به نه نفل قبول كړې شي اونه فرض،،ـ

② ـ امام طرانی رحمه الله د ,,عبدالله بن ابى بكر بن محمد بن عمرو بن حزم عن ابيه عن جده،، په طريق سره مرفوعا نقل كړې دی ,,العمد قود والخطا دية،، ـ [3] يعنى ,, دقتل عمد موجب قصاص او دقتل خطاء موجب به ديت وی،،ـ
دلته ,,جد،، نه مراد عمروبن حزم دې، څنګه چې علامه ابن حزم رحمه الله دذكركړده طريق نه وضاحت كيږی ـ [4]

③ ـ داحنافواومالكيه يو دليل دحضرت وائل بن حجر رضي الله عنه حديث دې، چې په كښې مذكور دی چې يوسړی بل سړې دحضور اكرم صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې حاضركرواوعرض ئې اوكړو چې دهٔ زما رور قتل كړې دې،نونبی عليه السلام دقاتل نه پوښتنه اوكړه نوهغه اقرار اوكړو. نونبى عليه السلام په دې موقع باندې د ولی مقتول په ځائې باندې دقاتل نه پوښتنه اوكړهٔ ,,هل لك من شيء تؤديه عن نفسك؟،،يعنى ستاسره څه شته دې چې دخپل نفس په بدله كښې وركړې؟ نوهغه سړی اووئيل چې ماسره سوا زما دڅادر اوتبر نه علاوه بل هيڅ نشته دې، نونبى عليه السلام بيا پوښتنه

---

[1]) اعلاء السنن (ج۱۸ص۷۸)ـ
[2]) السنن للنسائي. كتاب القسامة والقود والديات،باب من قتل بحجر اوسوط. رقم (۴۷۹۳) و (۴۷۹۴)، والسنن لابى داود. باب من قتل فى عميا بين قوم. رقم (۴۵۳۹)و(۴۵۴۰)ـ والسنن لابن ماجه، ابواب الديات. باب من حال بين ولى المقتول وبين القود او الدية. رقم (۲۶۳۵) ـ
[3]) مجمع الزوائد (ج۶ص۲۸۶) كتاب الديات،باب قتل الخطاء والعمدـ
[4]) اوګورئ المحلى لابن حزم (ج۱۰ص۲۴۲)ـ

اوکړه چې ستا دقبیلې خلق به ستا مدد اوکړي که نه ؟ نوهغه اووئیل چې په قبیله کښې زما هیڅ حیثیت نشته دې. نونبی ﷺ دغه سړي دمقتول ولی ته حواله کړو۔ [1]
په دې حدیث کښې هغوی ﷺ دمقتول دولی په خانې باندې دقاتل دولی نه تپوس کول چې تاسره د اداء کولو دپاره څه شته دې که نه ددې خبرې دلیل دې چې دمقتول ولی ته اختیار نشته دې. که چرې دې په اختیارکښې وې نونبی ﷺ به دمقتول دولی نه تپوس کړې وې چې آیا ته قصاص غواړې که دیت ؟
④ ددې قسمه یوروایت په سنن نسائی کښې اوپه سنن ابن ماجه کښې دحضرت انس ﷺ نه هم مروی دې. چې په هغې کښې دی :
،، ان رجلا اتی بقاتل ولیه رسول الله صلی الله علیه وسلم، فقال النبی صلی الله علیه وسلم :اعف عنه، فابی فقال : خذ الدیة، فابی، فقال اذهب فاقتله.............۔ [2]
یعنی ..یو سړی رسول الله ﷺ ته دخپل ولی قاتل نیولې رواستو. نونبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل معاف ئې کړهٔ. نوهغه انکار اوکړو.نوبیا نبی کریم ﷺ اوفرمائیل دیت واخله. نوهغه انکار اوکړوبیا نبی ﷺ اوفرمائیل لاړشه دې قتل کړهٔ ...،،۔
⑤۔ دحضرت انس بن مالک ﷺ یوروایت دې. چې په هغې کښې دی چې حضوراکرم ﷺ حضرت انس ﷺ ته خطاب کولوسره اوفرمائیل ,,یا انس، کتاب الله القصاص.........(3) (یعنی اې انس ! دکتاب حکم خوهم قصاص دې). په دې کښې ددیت ذکرنشته. که ولی مقتول ته په قصاص اوددیت په مینځ کښې اختیاروواو ددیت دپاره دقاتل رضامندی ضروری نه وه نوددیت ذکربه ئې هم فرمائیلې وو۔
⑥۔ داحنافو اومالکیه یودلیل په مصنف عبدالرزاق کښې دحضوراکرم ﷺ تحریری دستاویزدې. چې په دې کښې دی ,, اذا اصطلحوا فی العمد فهوعلی ما اصطلحوا علیه،،۔(4) یعنی,, دقتل عمدپه صورت کښې که چرې صلح اوکړې نوچې په کوم څیزباندې دهغوی صلح کیږی نوهم هغه به واجب ګڼړلې شی..۔
ددې نه صراحتا دا خبره معلومیږی چې دمال واجب کیدلودپاره ,,دصلح ضرورت دې.. او,,صلح.. دفریقینوپه رضامندې سره کیږی۔
⑦۔ دغه شان په مصنف عبدالرزاق کښې دحضرت عمر ﷺ روایت دې .. لایمنع سلطان ولی الدم ان یعفوان شاء اویاخذ العقل اذا اصطلحوا ولایمنعه ان یقتل ان ابی الا القتل بعد ان یحق له القتل فی

---

[1] صحیح مسلم، کتاب القسامة والقودوالدیات، باب القود، رقم (٤٧٢٧). وباب ذکراختلاف الناقلین لخبرعلقمة بن وائل فیه، رقم (٤٧٢٨ _ ٤٧٣٣) _
[2] سنن النسائی، کتاب القسامة والقودو الدیات، باب القود، رقم (٤٧٣٤). وسنن ابن ماجه، کتاب الدیات،باب العفوعن القاتل، رقم (٢٦٩١) _
[3] صحیح البخاری (ج١ص٣٧٢)_ کتاب الصلح،باب الصلح فی الدیة، رقم (٢٧٠٣)_
[4] المصنف لعبد الرزاق (ج٩ص٢٨٣) کتاب العقول،باب شبه العمد، رقم (١٧٢١٦) _

العمد،،_(١)

يعني ,,سلطان ته داحق حاصل نه دي چې ولی دم ایسار کړي. که خوبنه ئې وی نومعاف دې کړي اوکه خوبنه ئې وی نودیت دې واخلی. که په خپل مینځ کښې ئې صلح اوکړۀ. دغه شان که چرته دقتل عمد حکم ثابت شو اوهغه هم قصاص اخستل غواړی نوددې څوک مانع نه شی جوړې دې..-

ددې اثرنه معلومه شوه چې ولی مقتول ددیت مستحق به په هغه صورت کښې وی کله چې مصالحت وی -

**د شوافعو دلائل اودهغې جائزه** : دامام شافعي رحمه الله دلیل دحدیث باب نه دې. چې په کښې په واضحه توګه باندې مذکوردی ,,**فمن قتل فهو بخیر النظرین : اما ان یعقل واما ان یقاد اهل القتیل**،،_ دې حدیث په ډاکه (ښکاره) توګه باندې اوښودله چې ولی دمقتول ته ددوو څیزونو اختیار دې چې په کښې ئې کوم یوخوښ وی اختیار دې کړی. یادې دیت واخلی یا دې قصاص۔

لیکن حقیقت دادې چې دې نه استدلال تام نه دې. خکه چې ددې روایت په الفاظو کښې اختلاف دې.حافظ ابو القاسم سهیلی رحمه الله فرمائی چې په دې کښې اووه آته قسمه الفاظ وارد دی

په بعضې روایت کښې دی ,,**اما ان یقتل واما ان یفادی**،،.-

په بعضې روایت کښې دی ,,**یقتل اویفادی**،،.-

په بعضې روایت کښې دی ,,**اما ان یفدی واما ان یقتل**،،.-

په بعضې روایت کښې دی ,,**اما ان یعقل اویقاد**،،.-

په بعضې روایت کښې دی ,,**اما ان تعطی الدیة اویقاد اهل القتیل**،،..

په بعضې روایت کښې دی ,,**اما ان یعفو اویقتل**،،.-

په بعضې روایت کښې دی ,,**من قتل متعمدا دفع الی اولیاء المقتول فان شاءوا قتلوا، وان شاءوا اخذوا الدیة**،،..-

په بعضې روایتونو کښې دی ,,**فمن قتل بعد مقامی هذا فاهله بخیر النظرین ان شاءوا فدم قاتله، وان شاءوا فعقله**،،_(٢)

---

(١) المصنف لعبد الرزاق (ج١٠ص١٤) کتاب العقول.باب شبه العمد. رقم (١٨١٩٦) _

(٢) اوګورئ: الروض الانف (ج٢ص٢٧٨) _نیز اوګورئ صحیح مسلم.کتاب الحج.باب تحریم مکة ........ رقم (٣٣٠٥) و(٣٣٠٦) وسنن النسائی.کتاب القسامة والقود والدیات.باب هل یؤخذمن قاتل العمد الدیة اذا عفا ولی المقتول عن القود ؟ رقم (٤٧٨٩)و((٤٧٩٠). والسنن لابی داود. کتاب الدیات.باب ولی العمدیاخذ الدیة. رقم (٤٥٠٥). والجامع للترمذی.کتاب الدیات. باب ماجاء فی حکم ولی القتیل فی القصاص والعفو. رقم (١٤٠٥و١٤٠٦). والسنن لابن ماجه. کتاب الدیات.باب من قتل له قتیل فهوبالخیار بین احدی ثلاث.رقم (٢٦٢٣و ٢٦٢٤)_

په دې کښې چې په کوم کوم روایاتو کښې ,,مفاداة،،یا د,, فدیه،، دې هغه روایات داحنافو اودمالکیه تائید کوی، ځکه چې په هغې کښې ددیت ذکرنشته دې الفاظ,, مفاداة، ذکردې، په مفاداة کښې مشارکت وی، په دې کښې دفریقینو درضامندی ضرورت وی، لهذا باقی روایات هم په دې باندې به محمول وی چې دقاتل په رضامندۍ سره دیت واخستلې شی ـ ځنګه چې په قرآن کریم کښې ارشاد دې ﴿فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ وَإِمَّا فِدَآءً﴾ (۱) دلته ,,فداء بوض الاسیر،، مراددې، چونکه مخاطبینو ته علم دې چې بغیردرضامندۍ نه په اسیرباندې مال لازمیږی نه ځکه دې لره په صراحت سره دذکرکولو ضرورت اونه ګنړلې شو، په دې طریقې سره چونکه دلته هم دا امرمعلوم دې چې قاتل که د فدیه په ادائیګې باندې راضی وی نوپه دۀ باندې لاګو کیدې شی ګنی نه، ځکه صرف ,, د دیت د ادائیګې ذکر اوکړې شو، درضامندۍ دذکرکولو ضرورت اونه ګنړلې شوـ (۲)

چنانچه امام مهلب رحمه الله فرمائی چې دحضور اکرم ﷺ دارشاد ,, فهو بخير النظرين،، نه معلومیږی چې کله ولی ته مال ورکړې شی اودهغه نه دعفوسوال اوکړې شی نودۀ ته اختیار دې که خوښه ئې وی مال دې قبول کړی اومعاف دې کړی اوکه خوښه ئې وی نوقصاص دې واخلی،دولی په ذمه ,, اتباع اولی،، دہ، په دې جمله کښې دنه داسې څه خبره نشته دې چې قاتل لره په بذل دیت باندې مجبوره کیدې شی ـ (۳)

دغه شان د امام شافعی رحمه الله استدلال دابوشریح کعبی رضی الله عنه درروایت هم نه دې:

,, قال رسول الله صلی الله علیه وسلم : الا انکم یامعشر خزاعة، قتلهم هذا القتیل من هذیل، والی عاقله، فمن قتل له بعد مقالتی هذه قتیل فاهله بین خیرتین، بین ان یاخذوا العقل اویقتلوا،،ـ (۴) یعنی ,, اې قبیله خزاعه ! تاسودبنوهذیل هغه سړې قتل کړې دې، زۀ دهغه دیت درکومه، زما ددې قول نه پس که دقتل واقعه راپیښه شوه نو دمقتول اولیاؤ ته دوه اختیاره به ملاویږی یا دې دیت اخلی یا دې قتل کوی،،ـ

امام شافعی رحمه الله فرمائی چې دلته ,, فاهله بین خیرتین،، جمله دلالت کوی چې دقتل عمد موجب احد الامرین دې، یعنی قصاص یا دیت، په دې کښې یولره دمتعین کولو اختیار ولی دمقتول ته دې ـ (۵)

---

(۱) سورة محمد /٤ـ

(۲) اوګورئ اعلاء السنن (ج۱۸ص۷۹و ۸۰) کتاب الجنایات،باب ثبوت الخیار لولی المقتول بین القصاص والدیة ـ

(۳) اوګورئ فتح الباری (ج ۱۲ص ۲۰۹)،کتاب الدیات،باب من قتل له قتیل فهوبخیرالنظرین ـ نیز اوګورئ شرح البخاری لابن بطال (ج۸ص۵۰۸و۵۰۹)ـ

(۴) السنن لابی داود، کتاب الدیات،باب ولی العمدیاخذ الدیة، رقم (٤٥٠٤)ـ

(۵) اوګورئ کتاب الام (ج۶ص ۱۰)،کتاب جراح العمد، باب الحکم فی قتل العمد ـ

مونږ وايو چې په دې کښې يو احتمال خو واقعي هم هغه دې کوم چې امام شافعي رحمه الله فرمائى چونکه يو احتمال دا هم دې چې د دې معنى وى .. فاهله بين خيرتين بعد ان يرضى القاتل بالدية، دې قيد لره ئې پريخودو چې په عام توگه باندې د خلقو عادت دا دې چې د خپل خان د حفاظت د پاره په ديت باندې راضى کيږى۔

په دې کښې دويم احتمال ځکه راجح دې، چې قصاص قضاء بالمثل دې او ديت قضاء بالقيمة، صاحب حق ته خو، د مثل اخستلو حق حاصل دې ،، د قميت اخستلو حق نه دې حاصل، البته که مثل اخستل متعذره شي، نو د فريقينو په رضامندۍ سره قيمت اخستلې شي ـ دا يو قانون کلى دې، بغير د نص صريح نه د دې خلاف دې اونه کړې شي، دا مذکوره دليل چونکه محتمل دې، نص صريح نه دې، لهذا د دې اصل صريح نه دې عدول اونه کړې شي او د حديث مذکورنه دې هم دې احتمال ته ترجيح ورکړې شى کوم چې مونږ بيان کړو۔ (۱) والله اعلم

امام شافعي رحمه الله د آيت کريمه (فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ أَخِيهِ شَيْءٌ فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوفِ وَأَدَاءٌ إِلَيْهِ بِإِحْسَانٍ.......) تفسير په سلسله کښې د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه وارد ديو روايت نه هم استدلال کړې دې، چنانچه هغه فرمائى :

,, كان فى بنى اسرائيل القصاص ولم تكن فيهم الدية، فقال الله تعالى لهذه الامة : (كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلَى ۖ الْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْأُنثَىٰ بِالْأُنثَىٰ ۚ فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ أَخِيهِ شَيْءٌ)، فالعفو: ان يقبل الدية فى العمد، (فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوفِ وَأَدَاءٌ إِلَيْهِ بِإِحْسَانٍ ۗ) يتبع بالمعروف ويؤدى باحسان، (ذَٰلِكَ تَخْفِيفٌ مِّن رَّبِّكُمْ وَرَحْمَةٌ ۗ) مما كتب على من كان قبلكم، (فَمَنِ اعْتَدَىٰ بَعْدَ ذَٰلِكَ فَلَهُ عَذَابٌ أَلِيمٌ) قتل بعد قبول الدية، ـ (۲)

يعنى ،، په بنى اسرائيل کښې د قصاص حکم جارى وو، د ديت حکم نه وو. الله تعالى دې امت ته اوفرمائيل په تاسو باندې د مقتولينو په سلسله کښې قصاص لازم کړې شوې دې، آزاد به د آزاد په بدله کښې، او غلام به د غلام په بدله کښې، ښځه به د ښځې په بدله کښې، بيا که چرې د ه ته د ده د رور د طرفنه څه معافى ملاؤ شوه ـ معافى داده چې د قتل عمد په صورت کښې ديت قبول کړى ـ نو د دستور مطابق په تقاضا اوخوش اسلوبۍ سره دې اداء کړې شى، يعنى د دستور مطابق مطالبه دې اوکړى او په خيگړې سره دې دويمه اداء کړى، دا ستا د رب د طرفنه تخفيف او رحمت دې د هغې خلقو په مقابله کښې کوم چې ستاسو نه مخکښې تير شوى دى، نو چې کوم سړې د دې نه پس تجاوز اوکړى، يعنى د ديت قبلولو نه پس قتل اوکړى نو د هغه د پاره دردناک عذاب دې ،،۔

دلته د ،، عفو ،، تفسير په ،، قبول ديت ،، سره ئې کړې دې، گويا چې ولى د م ته په قصاص يا په قبول ديت کښې د يو اختيار دې ـ

---

(۱) اعلاء السنن (ج۱۸ص۷۷و۷۸)ـ

(۲) صحيح البخارى (ج۲ص۶۴۶) كتاب التفسير،باب (ياايها الذين آمنوا كتب عليكم القصاص فى القتلى) رقم (۴۴۹۸)، و(ج۲ص۱۰۱۶) كتاب الديات، باب من قتل له قتيل فهو بخير النظرين، رقم (۶۸۸۱)ـ

ليکن حقيقت دادې چې ددې روايت نه دامام شافعي رحمه الله استدلال درست نه دې. او وجه ئې داده چې حضرت ابن عباس رضي الله عنه دلته صرف دومره خبره بنودل غواړي چې په بنى اسرائيلو کښې هم قصاص مشروع وو. ددیت مشروعيت نه وو. دې آيت دولي دپاره دقبول ديت مشروعيت اواباحت اوبنودلواوپه بنى اسرائيلوباندې چې کوم دقبول ديت ممانعت وو هغه ئې منسوخ کړو۔ اګرکه تخيربين الامرين اثبات مقصود وونو ،،فالعفوان يقبل الدية،، به ئې نه فرمائيلو. ځکه چې ،،قبول،، خويه هغه صورت کښې وانيلې کيږی کله چې نورو بذل کړې وی.ځکه چې بل سړې به ئې په رضامندې سره ورکوی نوهغې لره به قبلولې کيږی (١) والله اعلم

**قوله: فَجَاءَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْيَمَنِ:** داهل يمن نه يوسړې راغللو۔
دا حضرت ابوشاه يمنى رضي الله عنه دې. ځنګه چې په کتاب اللقطه اود کتاب الديات په رواياتو کښې تصريح ده ،،فقام ابوشاه رجل من اهل اليمن،، (٢)
بعضې حضرات وائى چې ددهٔ تعلق دبنوکلب سره وو. يوقول دا دې چې دې فارسى وو، ددوی تعلق دهغه ،،ابناء،، (٣) سره ووکوم چې په يمن کښې دسيف بن ذى يزن دمدد دپاره راغلى وو۔
ددوی په نوم کښې ،،شاه،، دهاء سره. دکوم معنى چې په فارسۍ کښې دباچا وی. بعضې حضرات ،،شاة،،۔ بالتاء المدورة ۔ په معنى دچيلۍ وئيلې دی. ليکن دا تصحيف دې۔ (٤)

**قوله: فَقَالَ اكْتُبْ لِي يَا رَسُولَ اللَّهِ. فَقَالَ «اكْتُبُوا لِأَبِي فُلَانٍ»:** هغه سړی عرض اوکړو چې يارسول الله ! زما دپاره اوليکه (ليکل اوکړۀ) ۔ نبى عليه السلام اوفرمائيل دابوشاه دپاره اوليکئ۔
وړاندې د وليد بن مسلم والا روايت کښې دی ،،قلت للاوزاعى : ماقوله : اكتبوالى يا رسول الله، قال: هذه الخطبة التى سمعها من رسول الله صلى عليه وسلم،،۔ (٥)
ددې حديث باب دترجمة الباب سره مطابقت بلکل واضحه کيږی۔ (٦)

**قوله: فَقَالَ رَجُلٌ مِنْ قُرَيْشٍ إِلَّا الْإِذْخِرَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَإِنَّا نَجْعَلُهُ فِي بُيُوتِنَا**

---

(١) اوګورئ اعلاء السنن(ج١٨ص ٨٠)كتاب الجنايات،باب ثبوت الخيار لولى المقتول بين القصاص والدية.
(٢) اوګورئ صحيح البخارى (ج١ص ٣٢٩) كتاب اللقطة،باب كيف تعرف اهل مكة ؟ رقم (٢٤٣٤) و(ج٢ص١٠١٦) كتاب الديات،باب من قتل له قتيل فهوبخير النظرين،رقم (٦٨٨٠)_
(٣) الابناء هم قوم باليمن من ولد الفرس الذين جهزهم كسرى مع سيف بن ذي يزن، الى ملك الحبشة، فغلبوالحبشة، واقاموا باليمن، وقال ابوحاتم بن حبان : كل من ولد باليمن من اولاد الفرس، وليس من العرب يقال : ابناوى، وهم الابناويون_ عمدة القارى (ج١ص ٢٥٤) كتاب الايمان،باب حسن اسلام المرء_
(٤) اوګورئ فتح البارى (ج١ص٢٠٦)، والاصابة (ج ٤ص ١٠٠)_
(٥) اوګورئ صحيح البخارى (ج١ص ٣٢٩) كتاب اللقطة،باب كيف تعرف اهل مكة ؟ رقم (٢٤٣٤)
(٦) فتح البارى (ج١ص٢٠٦) _

**وَقُبُورِنَا:** دقريشو يوسړي عرض اوكړو چې يارسول الله ! د "الاذخر".. استثناء اوفرمائې. ځكه چې مونږ دا په كورونو (چتونو) كښې او په قبرونو كښې استعمالوو۔
دا قريشي سړې حضرت عباس رضي الله عنه وو. ځنګه چې وړاندې په كتاب اللقطه والا روايت كښې .. "فقال العباس". تصريح موجود ده ـ [1]

دابن ابى شيبه رحمه الله په يوروايت كښې .. "فقال رجل من قريش يقال له : شاه". راغلې دې. كوم چې غلط دې ـ [2]

**قوله: فَقَالَ النَّبِي صلى الله عليه وسلم: إِلَّا الإِذْخِرَ:** حضور اكرم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چې اذخر مستثنى دى ـ

**ايا حضور اكرم صلى الله عليه وسلم ته په احكامو كښې داجتهاد حق حاصل وو ؟** حضور اكرم صلى الله عليه وسلم دلته د.. اذخر.. چې كومه استثناء اوفرمائيله ددې نه معلوميږى چې نبى عليه السلام ته په احكاموكښې داجتهاد حق حاصل وو۔
په دې مسئله كښې اختلاف دې ـ
اشاعره اواكثرمعتزله اومتكلمين وائى چې حضور اكرم صلى الله عليه وسلم ته داجتهاد حق حاصل نه وو۔
بيا په دې كښې ابوعلى جبائى اودهغه ځوئې ابوهاشم ددې خبرې قائل دى چې حضوراكرم صلى الله عليه وسلم دپاره دعقلا اجتهاد ګنجائش نشته ـ
اونور حضرات وائى چې عقلا خوګنجائش شته دې. بياهم شرعا اجتهاد كولوسره ددې مطابق عمل كول صحيح نه دى ـ
ددوى په مقابله كښې اهل اصول وائى چې حضور اكرم صلى الله عليه وسلم دپاره ځنګه چې دوحي په ذريعه سره معلوم شوې احكاموباندې عمل جائزدې دغه شان په راې او اجتهاد سره چې كوم احكام مستنبط كيږى په هغې باندې هم عمل جائزدې ـ
هم دغه په احنافوكښې دامام ابويوسف نه منقول دى. امام مالك. امام شافعى او اكثر اصحاب حديث رحمهم الله هم دامذهب دې ـ
اكثر حنفيه وائى چې حضوراكرم صلى الله عليه وسلم لره په هره معامله كښې دتولونه وړاندې دوحى د نازليدو مكلف جوړكړې شوې دې كه چرې دانتظارنه پس وحى نازله نشى نو داداجتهاد كولود اجازت دليل دې ـ
بيابه څومره مده پورې انتظاركوى. بعضې حضرات وائى چې درې ورځوپورې اوبعضې حضرات وائى چې دمقصداودغرض فوت كيدوويرې پورې متعلق دې. كوم چې ښكاره ده چې مختلف كيدې شى ـ بيادې تولو حضراتو په دې خبره باندې اتفاق دې چې په راې اواجتهاد باندې عمل په حروب او په اموردنيا كښې جائز دې ـ [3]

---

[1] ) صحيح البخارى (ج ۱ ص ۳۲۹ و۳۲۷) كتاب اللقطة.باب كيف تعرف اهل مكة ؟ رقم (۲۴۳۴)
[2] ) فتح البارى (ج ۱ ص ۲۰۶) ـ
[3] ) اوګورئ كشف الاسرار (ج ۳ ص ۲۰۵ و ۲۰۶) ـ

**د مانعینو دلائل** : مانعین په دې سلسله کښې آیت قرآني «وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ ۝ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ» (۱) نه استدلال کوی اووائی چې دې آیت په واضحه توګه باندې اوښودله چې هغوی ﷺ کله هم نطق فرمائی نوهم دوحی لاندې نطق فرمائی، داجتهاد په ذریعه چې هغوی ﷺ نطق فرمائی نوهغه ظاهره ده چې وحی به نه وی، لهذا دآیت په ذریعه داجتهاد نفی اوکړې شوه(۲).
دغه شان داحضرات عقلی دلیل دا پیش کوی چې حضوراکرم ﷺ داقامت شرع دپاره مبعوث شوې دې، ,, اجتهاد،، د راې کیدو دوجې یو داسې دلیل دې چې په کښې دخطا احتمال شته دې، لهذا ددې ځیزپه ذریعه چې پکښې دغلطې اودخطا امکان وی اقامت شرع ممکن نه دې، چونکه اقامت شرع حق الله دې، لهذا دا حق هیڅ یو بنده ته نه شی سپارلې کیدې، دچاپه عمل کښې چې دغلطې احتمال وی۔
دکوم ځائې پورې چې د معاملاتودنیویو یا دامور حرب تعلق دې، نوچونکه دا حقوق العباد سره متعلق دی، دې کښې دننه یاخودفع مضرت ده یا جلب منفعت، بندګان ددې محتاجه دی نوځکه بندګانو ته په امورحرب کښې اوپه معاملاتو د دنیا کښې داجتهاد حق حاصل دې، اوالله تعالی چونکه حاجتمند یا عاجزنه دې، ځکه دحقوق الله داثبات دپاره دلیل متحمل للخطا کافی نه دې، بلکه ددې دپاره داسې دلیل پکاردې کوم چې موجب داذعان اویقین وی ۔ (۳)
**د مجوزینو دلا ئل** :مجوزینو دکتاب، سنت او دعقلی دلیلونونه دا ثابت کړې دې ۔
ارشاد باری تعالی ﴿ فَاعْتَبِرُوا يَا أُولِي الْأَبْصَارِ ﴾ (۴) دلته د,,بصر،، نه ,,بصیرت،، مراد دې. ګویا چې الله تعالی تولو اهل بصیرت ته د,,اعتبار،، دعوت ورکړې دې او,, اولو البصائر،، کیدل د ,,اعتبار،، علت دې ګویا چې دا ئې اوفرمائیل چې اې اهل بصیرت ! چونکه تاسوبصیرت والائې، ځکه ,, اعتبار اوکړئ اودقیاس اوداجتهاد نه کار واخلئ اوحضوراکرم ﷺ دتولونه لوئ صاحب بصیرت، پاک نفس، بهتراجتهاد کولو والا دې، لهذا په وصف بصیرت کښې حضوراکرم ﷺ چونکه ډیر اعلی مقام باندې فائز دې نود,,اعتبروا،، امرهم دهغوی ﷺ طرف ته په طریقه اولی سره به متوجه کیږی ۔ (۵)
دغه شان په قرآن کریم کښې دحضرت داؤد اودحضرت سلیمان علیهما السلام قصه مذکوره ده ﴿وَدَاوُودَ وَسُلَيْمَانَ إِذْ يَحْكُمَانِ فِي الْحَرْثِ إِذْ نَفَشَتْ فِيهِ غَنَمُ الْقَوْمِ ۚ وَكُنَّا لِحُكْمِهِمْ شَاهِدِينَ ۝ فَفَهَّمْنَاهَا سُلَيْمَانَ ۚ ........﴾(۶)

---

۱) النجم /٤و۳_
۲) کشف الاسرار (ج۳ص۲۰۶)_
۳) کشف الاسرار (ج۳ص۲۰۶)
۴) الحشر /۲_
۵) کشف الاسرار (ج۳ص۲۰۶) _
۶) الانبیاء /۷۷و۷۸_

يعني .. او داود او دسليمان عليهما السلام تذكره اوكړئ كله چې دواړو ديو پتى (فصل) په باره كښې فيصله كوله. كله چې دځه خلقو چيلئ دشپې په وخت كښې ورداخلې شوې او مونږ دغه فيصله چې دخلقوپه مينځ كښې شوې وه كتله مو. نومونږ ددغه فيصلې پوهه سليمان ته وركړه ،،.

دلته چې حضرت داؤد عليه السلام كومه فيصله فرمائيلې وه هغه دوحى په بنياد باندې نه وه، گنى حضرت سيلمان عليه السلام ته په دې كښې دمخالفت گنجائش نه وو، گويا چې حضرت داؤد عليه السلام داجتهادپه بنياد باندې فيصله كړې وه،ددې نه پس حضرت سليمان عليه السلام هم اجتهادكولوسره دويمه فيصله اوكړه، كومه چې حضرت داؤد عليه السلام قبلولوسره نافذه كړه. معلومه شوه چې حضرات انبياء كرامو ته په احكاموكښې داجتهاد حق وو۔ (١)

امام ابويوسف رحمه الله د ارشادبارى تعالى ﴿إِنَّا أَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَا أَرَاكَ اللَّهُ﴾ (٢) (بيشكه مونږه نازل كړو ستاطرف ته رشتونې كتاب چې تهٔ انصاف اوكړې دخلقوپه مينځ كښې څه چې تاته الله تعالى پوهه دركړى) نه هم استدلال كړې دې چې په دې كښې (بِمَا أَرَاكَ اللَّهُ) كښې دننه عموم دې كوم چې حكم بالنص او استنباط من النص دواړو ته شامل دې (٣)

حضراتو مجوزينو ددې حديث نه هم استدلال كړې دې چې په كښې .. د دين الله .. لره په .. دين العباد .. باندې قياس كولوسره ئې جواب وركړې دې :

،، عن عبدالله بن الزبير قال : جاء رجل من خثعم الى رسول الله صلى الله عليه وسلم، فقال ان ابى شيخ كبير لايستطيع الركوب وادركته فريضة الله فى الحج، فهل يجزئ ان احج عنه ؟ قال : انت اكبرولده ؟ قال : نعم، قال : ارايت لوكان عليه دين اكنت تقضيه ؟ قال نعم، قال : فحج عنه ،،___ (٤)

يعنى ،،يوسړې دقبيله خثعم نه دحضوراكرم صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې حاضرشواوعرض ئې اوكړو چې زما پلار بوډه (شيخ كبير) دې،هغه په سورلئ باندې نه شى سورې دې اوپه هغه باندې فريضه حج هم لازمه ده، آيا دهغه دطرفنه زهٔ حج كولې شم ؟ هغوى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چې آياته دهغه په اولاد كښې دټولونه مشر يئ ؟ عرض ئې اوكړو چې آو! هغوى اوفرمائيل دا راته اوايه كه چرې په هغه باندې قرض وونو تابه اداء كولوكه نه ؟ عرض ئې اوكړه چې ولې نه مابه اداء كولو. هغوى اوفرمائيل نوبيا دهغه دطرفنه حج اداء كړهٔ ،،۔

داشان روايت داحضرت ابن عباس رضى الله عنهما نه هم مروى دې ۔ (٥) دغه شان دمجوزينو استدلال دحضرت عمر رضى الله عنه د واقعه نه هم دې :

،،عن جابربن عبدالله قال : قال عمربن الخطاب : هششت، فقبلت وانا صائم، فقلت : يارسول الله صنعت

(١) كشف الاسرار (ج٣ص٢٠٦و٢٠٧)_
(٢) النساء /١٠٥_
(٣) كشف الاسرار(ج٣ص٢٠٧)_
(٤) سنن النسائى، كتاب مناسك الحج،باب تشبيه قضاء الحج بقضاء الدين. رقم (٢٦٣٩)_
(٥) حواله بالا. رقم (٢٦٤٠)_

اليوم امرا عظيما: قبلت وانا صائم، قال: ارايت لو مضمضت من الماء وانت صائم؟ _ قال عيسى بن حماد في حديثه: قلت: لاباس به، ثم اتفقا، قال: فمه،، _[1]

يعنې .. حضرت عمر ﷺ فرمائي چې ماخوشحالي محسوسه کړه. ماپه حالت دروژه کښې تقبيل اوکړو. ما عرض اوکړو يارسول الله! نن ما ډيرلوئ کار اوکړو. ماپه حالت د روژې کښې تقبيل اوکړو. هغوی اوفرمائيل اوايه! که تا په حالت دروژې کښې خوله کنګاله کړې نوڅه به کيږي؟ ما عرض اوکړو چې څه حرج هم نشته. نوهغوی اوفرمائيل چې بيا په تقبيل کښې څه داسې خبره ده؟..

په دې حديث کښې حضوراکرم ﷺ ..قبلة الصائم،، لره په مضمضه باندې قياس کولوسره حکم بيان کړې دې _

حضرات مجوزينو يواستدلال دهغه حديث نه هم دې په کوم کښې چې حضوراکرم ﷺ فرمائيلي دي: .. وفي بضع احدكم صدقة، قالوا: يارسول الله، اياتي احدنا شهوته ويكون له فيها اجر؟ قال: ارايتم لو وضعها في حرام اكان عليه فيها وزر؟ فكذلك اذا وضعها في الحلال كان له اجر،، _[2]

يعنې .. تاسوته به دخپلې بي بي سره په صحبت باندې هم دصدقه ثواب ملاويږي. صحابه کرام عرض اوکړويارسول الله! آيا که په موږ کښې څوک خپل شهوت پوره کوي نوهغه ته به هم اجرملاويږي؟ هغوی اوفرمائيل دا اوايئ که چرته په حرامو باندې ئې خپل شهوت پوره کولونويه دۀ باندې به ګناه وه که نه؟ دغه شان په حلال ځائې باندې شهوت پوره کولوباندې به اجر ملاويږي..._

دلته حضور اکرم ﷺ اجتهاد کولوسره جواب ورکړو. ظاهره ده چې دا دهغوی په باره کښې داجتهاد دمشروع کيدلودليل دې _

عقلا هم دا خبره په پوهه کښې راځي چې دحضوراکرم ﷺ دپاره اجتهاد درست دې، ددې وجه دا ده چې ..اجتهاد.. په دې خبره باندې مبنی دې چې مجتهد دنصوصودمعانيو اودعللو عالم وی. ظاهره ده چې حضوراکرم ﷺ په علم اوددې دمعانيواوعللو په پوهه کښې دټولو مخلوقاتو نه اکمل دې. حتی چې داصوليينودتصريح مطابق .. دمتشابهاتوعلم هم الله تعالی هغوی ﷺ ته ورکړې دې. کله چې ديوڅيزعلم هم وی. ددې دټولو معانيو اوعللو اودطريقه استعمال نه هم ښه واقف وی نو بيا داجتهاد ممانعت به ولې وی؟![3]

په دې باندې داسې هم پوهه کيدلې شی چې .. اجتهاد.. کوم چې دبندګانو دنسبت نه دعبادت اعلی ترينه درجې حيثيت لری. بيا په دې کښې دصواب او سداد اړخ دعدم صواب په مقابله کښې ډيرزيات دې. څکه چې .. اجتهاد.. کښې دمشقت تحمل کيږي. لهذا ددې عبادت استحقاق به حضوراکرم ﷺ ته دټولونه زيات وی. خاص توګه باندې په دې وجه سره

[1] السنن لابي داود. كتاب الصيام،باب القبلة للصائم. رقم (٢٣٨٥)_
[2] صحيح مسلم. كتاب الزكاة. باب بيان ان اسم الصدقة يقع على كل نوع من المعروف. رقم (٢٣٢٩)_
[3] اوګورئ: كشف الاسرار(ج٣ص٢٠٨)_

هم چې دې امت دپاره جائزه کیږي. كه حضوراكرم ﷺ ته د..اجتهاد.. داجازت نه وي نوامت ته به په دې خبره کښې په هغوی باندې فضیلت لازمیږي. کوم چې ناممکن دې ـ [1]

په دې باندې که څوک دا اووائي چې حضوراكرم ﷺ لره که د..اجتهاد.. نه دې دپاره ایسار کړې شي چې هغوی ته د دې نه هم وړاندې استدراک دحکم بالوحی اعلی درجه حاصله ده ـ نو ددې جواب دادې چې په دې کښې هیڅ شک نشته دې چې دوحی علم داجتهاد نه اعلی دې.بیاهم په دې کښې هغه تحمل دمشقت نشته کوم چې په اجتهاد کښې دې. په دې کښې د ذهانت او لیاقت اظهار نه وي. چونکه ..اجتهاد.. کښې دا یومنفرد اوامتیازی شان اوفضیلت دې. خکه دا نه شي ونیلې کیدې چې حضوراكرم ﷺ ته په دې فضیلت کښې څه هم نه دی حاصل [2]

**د حضور اكرم ﷺ په اجتهاد كښې اودامت په اجتهاد كښې فرق** دلته چاته دا اشكال كيدې شي چې كله مونږ د حضوراكرم دپاره د..اجتهاد دجواز قائل یونو یقینا دا اجتهادبه دنص په مقابله کښې ادون وي. لهذا څنګه چې دامت اجتهاد ظنی وي دغه شان دهغوی ﷺ اجتهادبه هم ظنی وي او دبل اجتهاد سره به ددې معارضه هم کیدې شي ـ

ددې جواب دادې چې دامت په اجتهاد کښې اودهغوی ﷺ په اجتهاد کښې فرق دې. اوهغه دا چې دعام امت په اجتهاد کښې دخطا احتمال هم وي او مجتهد په دې باندې برقرار هم پاتې کیږي. اودهغوی ﷺ په اجتهاد کښې دډیرو علماؤ په نیز باندې دخطا احتمال هم نشته دې. خکه چې مونږ ته په احکاموکښې دهغوی ﷺ داتباع حکم شوې دې.لکه چې ارشاد باری تعالی دې (فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا) [3] (نوقسم دې ستادرب : هغه مؤمنان نه دی تردې پورې چې هم تالره منصف اوګنړي په هغه جهګړه کښې کومه چې دهغوی په مینځ کښې راپیده شي. بیا به نه مومی په خپل مینځ کښې تنګی ستاپه فیصله کښې اوقبوله ئې کړی په خوشحالې سره ـ)

که چرې دهغوی په اجتهاد کښې دخطا احتمال وي نومونږ ته به دخطا داتباع حکم راکول لازم شي. کوم چې صحیح نه دی ـ [4]

که چرې دحضوراكرم ﷺ په اجتهاد کښې دخطا احتمال وي. څنګه چې اکثرو احنافوراې دا ده. نوارشادباری تعالی (عَفَا اللَّهُ عَنكَ لِمَ أَذِنتَ لَهُمْ) [5] (الله تعالی تاته معافی فرمائی تاسودوی ته ولې اجازت ورکړو؟) ددې نه هم دې طرف ته اشاره کیږي بیا هم په دې کښې د قرارعلی الخطا احتمال نه وي. کله چې الله تعالی تاسولره په اجتهاد باندې برقرار اوساتلو نوهم هغه صواب دې.ددې نه نص پشان علم الیقین حاصلیږي او مخالفت به ئې حرام وي.

---

[1]) حواله بالا

[2]) حواله بالا ـ

[3]) النساء ٦٥ ـ

[4]) كشف الاسرار (ج۳ص۲۰۹) ـ

[5]) التوبة /٤٣ ـ

ددې نظير الهام دې چې د حضوراکرم ﷺ الهام حجت قاطعه دې، ددې مخالفت په يوصورت کښې هم جائزنه دې، اودنورو الهام حجت قاطعه نه دې - (١) والله اعلم

**دمانعينو د دلائلو جوابونه :** مانعينود ﴿وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ ۞ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ﴾ نه استدلال کړې وو، چې کله رسول الله ﷺ څه فرمائى هغه ټول "وحى من الله" وى، نو ددې نه لازميږى چې هغوى به دخپل راې او اجتهاد نه څه هم نه فرمائيل -

ددې جواب دادې چې ددې آيت مفهوم دادې چې رسول الله ﷺ دخپل ځان دطرفنه خبرې جوړولو سره دالله تعالى طرفته دمنسوب کولوقطعي څه امکان نشته. بلکه هغوى ﷺ چې څه فرمائى هغه ټول دالله تعالى دطرفنه وحى کړې شوې وى. دوحى ډير اقسام دى.په دې کښې يوقسم هغه دې دکوم الفاظ اومعنې چې ټول دالله تعالى دطرفنه نازل شوې وى،چې دهغې نوم قرآن دې، دويم هغه چې صرف معنى دالله تعالى دطرفنه نازليږى او، حضوراکرم ﷺ دغه معنى لره په خپلو الفاظو کښې اداء کوى، ددې نوم "حديث" او "سنت" دې -

بيا په حديث کښې چې کوم مضمون دحق تعالى دطرفنه راځى، کله هغه ديوې معاملې ښکاره او واضحه فيصله اوحکم وى، کله څه قاعده کليه ښودلې کيږى. چې دهغې نه رسول الله ﷺ په خپل اجتهاد سره احکام راوباسى اوبيانوى، په دې اجتهاد کښې امکان وى چې څه غلطى پکښې اوشى، خودرسول الله ﷺ اودټولو انبياء خصوصيت دې چې کوم احکام هغه دخپل اجتهاد سره بيان فرمائى په هغې کښې که څه غلطى اوشى نو دالله تعالى دطرفنه په ذريعه د وحى سره دهغې اصلاح اوکړې شى، هغوى په خپل غلط اجتهاد باندې قائم نه پاتې کيږى. په خلاف دنورو علماؤ مجتهدينو، چې په هغوى کښې دچانه په اجتهاد کښې خطا اوشى نوپه هغې باندې قائم پاتې کيدې شى -

خلاصه داچې وحى په بعضواوقاتوکښې ديوې قاعدې کليې په شکل کښې راځى، کومې سره چې داحکامو په استخراج کولوکښې پيغمبرته دخپلې راې سره داجتهاد کولوضرورت پيدا کيږى. چونکه دا قاعده کليه دالله تعالى دطرف نه راغلى وى نوځکه دې ټولو احکامو ته هم وحى من جانب الله ونيلې شوې دى - (٢) والله اعلم

اودکوم ځائې پورې چې دمانعينوددليل عقلى تعلق دې چې حضوراکرم ﷺ داقامت شرع دپاره مبعوث شوې وواواجتهاد محتمل للخطا دليل کيدوپه حيثيت سره په دې کښې داقامت شرع صلاحيت نشته، لهذا هغوى ﷺ په حق کښې داجتهادهم څه ګنجائش نشته - نوددې جواب زمونږ دتقريرنه واضحه کيږى، چې حاصل ئې دادې چې دعام امت اجتهاد دليل محتمل للخطادې،دحضوراکرم ﷺ اجتهاد محتمل للخطا نه دې، ځنګه چې ډير علماء فرمائى.ياکه په دې کښې احتمال دخطا وى بياهم هغوى په خطا باندې قائم نه شى پريخودې، ځکه دهغوى په "اجتهاد" سره په اقامت شرع کښې دڅه قسمه حرج نشته دې (٣) والله اعلم

---

(١) کشف الاسرار (ج٣ص٢٠٩)_

(٢) اوګورئ معارف القران (ج٨ص١٩٤و١٩٥) تفسيرسورة النجم _

(٣) اوګورئ کشف الاسرار(ج٣ص٢١١)_

**قوله:** قَالَ أَبُو عَبْدِ اللهِ يُقَالُ يُقَادُ بِالْقَافِ. فَقِيلَ لِأَبِي عَبْدِ اللهِ أَيُّ شَيْءٍ كُتِبَ لَهُ قَالَ كُتِبَ لَهُ هَذِهِ الْخُطْبَةَ: ابوعبدالله يعنى امام بخارى رحمه الله فرمائى ،، يقاد،، د،، قاف،، سره ونيلې كيږى ـ ابوعبدالله يعنى امام بخارى رحمه الله نه تپوس اوكړې شوچې نبى عليه السلام دابوشاه رضي الله عنه دپاره څه أوليكل. نواوفرمائيل نې چې دا خطبه ئې اوليكله ـ

په دې عبارت كښې د دوميې جملې مقصد دادې چې په دې مقام كښې ،، يقاد،، دقاف سره د،، قود،، نه مشتق دې ،، قاد،، نه ده كوم چې د ،، مفاداة،، يا ،، فدية،، نه مشتق دې ـ

اود دويمه جملې نه دحضرت ابوشاه رضي الله عنه چې كوم ،، اكتب لي يا رسول الله،، عرض نې كړې وو اودددې په جواب كښې هغوى صلى الله عليه وسلم ،، اكتبوا لابي فلان،، فرمائيلى وو. په دې كښې دامذكورنه دى چې دڅه څيزكتابت مقصود دې، امام بخارى رحمه الله تصريح اوفرمائيله چې دخطبه كتابت مراد دې ـ

**تنبيه:** واضحه دې وى چې ،، قال ابوعبدالله ........ نه تر آخره پورې دا عبارت صرف په يونسخه كښې دې. اود ابوذر، اصيلى، ابو الوقت اودابن عساكر په يوې نسخه كښې هم دا عبارت موجودنه دې ـ [۱]

[۱۱۳] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللهِ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنَا عَمْرٌو قَالَ أَخْبَرَنِي وَهْبُ بْنُ مُنَبِّهٍ عَنْ أَخِيهِ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقُولُ [۲]: مَا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - أَحَدٌ أَكْثَرَ حَدِيثًا عَنْهُ مِنِّي، إِلَّا مَا كَانَ مِنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو فَإِنَّهُ كَانَ يَكْتُبُ وَلَا أَكْتُبُ. تَابَعَهُ مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ.

## رجال الحديث

① **على بن عبدالله:** دا امام على بن عبدالله بن جعفربن نجيح سعدى بصرى المعروف بابن المدينى رحمه الله دې، دده حالات په كتاب العلم ،،باب الفهم في العلم،، لاندې تيرشوى دى ـ [۳]

② **سفيان:** دا امام سفيان بن عيينه رحمه الله دې، ددوى حالات د ،،بدء الوحي،، داولنى حديث لاندې مختصرا [۴] اودكتاب العلم ،،باب قول المحدث: حدثنا او اخبرنا وانبانا،، لاندې تفصيلا تيرشوى دى ـ [۵]

---

[۱] ارشادالسارى (ج۱ص۲۰۶)ـ
[۲] قوله ،، اباهريرة ،، الحديث، اخرجه النسائى فى سننه الكبرى، كتاب العلم، باب كتابة العلم، رقم (۵۸۵۳) والترمذى فى جامعه، فى ابواب العلم، باب ماجاء فى الرخصة فيه (اى فى كتابة العلم)، رقم (۲۶۲۸)
[۳] اوګورئ كشف البارى (ج۳ص۲۵۶) ـ
[۴] اوګورئ كشف البارى (ج۱ص۲۳۸) ـ
[۵] اوګورئ كشف البارى (ج۳ص۸۶) ـ

③ عمرو دا مشهور امام او فقیه عمروبن دینار مکی جمحی رحمه الله دی، ابومحمد ددهٔ کنیت دی ـ (۱)

دی د حضرت ابن عباس، دحضرت عبدالله بن الزبیر، حضرت عبدالله بن عمر، حضرت عبدالله بن عمروبن العاص، حضرت ابوهریره، حضرت جابربن عبدالله، حضرت ابوالطفیل لیثی، حضرت سائب بن یزید رضی الله عنهم نه علاوه دابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف، سعیدبن جبیر، ابن ملیکه، عروه بن الزبیر، عطاء بن ابی رباح، عطاء بن یسار، عطاء بن میناء، عکرمه اوامام زهری رحمهم الله پشان ددیرو حضراتونه روایت کوی ـ

اوددهٔ نه په روایت کونکوکښې امام قتاده، ایوب سختیانی، عبدالملک بن جریج، جعفر الصادق، امام مالک، امام شعبه، ابوعوانه، حمادبن سلمه، حمادبن زید، سفیان ثوری، سفیان بن عیینه رحمهم الله پشان دیرحضرات دی ـ (۲)

امام احمد رحمه الله فرمائی ,, کان شعبة لایقدم علی عمروبن دینار احدا، لاالحکم ولا غیره، یعنی فی الثبت،، ـ (۳) یعنی ,, شعبه به دعمروبن دینار په مقابله څوک هم نه مقدم کول،، ـ

دغه شان هغه فرمائی ,, وکان عمرو مولی، ولکن الله شرفه بالعلم،، ـ (۴)

ابن ابی نجیح رحمه الله فرمائی ,, ماکان عندنا احد افقه ولا اعلم من عمروبن دینار،، ـ (۵)

حضرت مسعر رحمه الله فرمائی ,, ما رایت اثبت من عمروبن دینار والقاسم بن عبدالرحمن،، ـ (۶)

ابن عیینه رحمه الله فرمائی ,, حدثنا عمروبن دینار، وکان ثقة ثقة ثقة، وحدیث اسمعه من عمرو احب الی من عشرین من غیره،، ـ (۷)

نیزهغه فرمائی ,, کان عمروبن دینار اعلم اهل مکة،، ـ (۸)

امام زهری رحمه الله فرمائی ,, مارایت شیخا انص للحدیث الجید من هذا الشیخ،، ـ (۹)

امام یحي القطان اوامام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی ,, عمروبن دینار اثبت عندی من قتادة،، (۱۰)

---

(۱) اوګورئ تهذیب الکمال (ج۲۲ص۵و۶) ـ
(۲) دشیوخو اوتلامذو دتفصیل دپاره اوګورئ تهذیب الکمال (ج۲۲ص۶-۹) ـ
(۳) تهذیب الکمال (ج۲۲ص۹) ـ
(۴) حواله بالا ـ
(۵) حواله بالا ـ
(۶) تهذیب الکمال (ج۲۲ص۱۰) ـ
(۷) حواله بالا ـ
(۸) حواله بالا ـ
(۹) حواله بالا ـ
(۱۰) حواله بالا ـ

نيز امام احمد رحمه الله فرمائی ،، عمرو بن دینار اثبت الناس في عطاء _ يعني ابن ابي رباح _ ،، [1]

امام ابوزرعه او امام ابوحاتم رحمهما الله فرمائی ،، ثقة،، [2] امام نسائی رحمه الله فرمائی ،، ثقة ثبت،، [3]

امام سعد رحمه الله فرمائی ،، وكان يفتي بالبلد....... وكان عمرو ثقة ثبتا كثير الحديث ،، _ [4]

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی ،، مكي امام،، _ [5]

نیز حافظ ذهبی رحمه الله دهغوی د ،، تذکره ،، په ابتداء کښې لیکی ،، الامام الكبير الحافظ ........ احد الاعلام و شيخ الحرم في زمانه،، _ [6]

امام عجلی رحمه الله فرمائی ،، تابعي ثقة،، _ [7]

امام علي بن المدینی رحمه الله فرمائی ،، كان اصحاب ابن عباس ستة : عطاء وطاووس، ومجاهد، وسعيد بن جبير، وجابر بن زيد، وعكرمة، فكان اعلم الناس بهؤلاء عمرو بن دينار، ولقيهم كلهم، واعلم الناس بعمرو وهؤلاء : سفيان بن عيينه وابن جريج،، [8]

امام دارقطنی رحمه الله فرمائی ،، من الحفاظ، وزيادته مقبولة،، _ [9]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی ،، ثقة ثبت،، _ [10]

ابن حبان رحمه الله دې په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې _ [11]

بعضې حضراتو په دوی باندې دتشیع الزام لګولې دې، دغه شان دحضرت عبدالله بن الزبير رضي الله عنه دمخالفت الزام پرې باندې هم لګیدلې دې _

لیکن حقیقت دا دې چې په دهٔ باندې دځه قسمه الزام ثابت نه دې، څنګه چې امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی ،، اهل المدينة لايرضون عمرا، يرمونه بالتشيع، والتحامل على ابن الزبير، ولابأس به، هو بريء مما يقولون،، _ [12]

---

[1] تهذيب الكمال (ج۲۲ص۱۰و۱۱)، وسير اعلام النبلاء (ج۵ص۳۰٤)_
[2] تهذيب الكمال (ج۲۲ص۱۱)_
[3] حواله بالا _
[4] الطبقات الكبرى لابن سعد (ج۵ص٤۸۹)_
[5] الكاشف (ج۲ص۷۵) رقم (٤۱۵۲)_
[6] سير اعلام النبلاء (ج۵ص۳۰۰)_
[7] تعليقات تهذيب الكمال (ج۲۲ص۱۲)_
[8] تعليقات تهذيب الكمال (ج۲۲ص۱۲)، نقلا عن المعرفة والتاريخ للفسوی (ج۱ص۷۱۳_ ۷۱٤)_
[9] تعليقات تهذيب الكمال (ج۲۲ص۱۲) نقلا عن علل الدارقطني _
[10] تقريب التهذيب (ص٤۲۱) رقم (۵۰۲٤)_
[11] الثقات لابن حبان (ج۵ص۱٦۷)_
[12] سير اعلام النبلاء (ج۵ص۳۰۲)_

حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي .. اما عمرو بن دينار الجمحي، عالم الحجاز: فحجة، وما قيل عنه من التشيع: فباطل، . [۱]

دامام عمروبن دينار رحمه الله په باره کښې سفيان بن عيينه رحمه الله فرمائي چې هغوی خپلې شپې په درې حصو کښې تقسيمې کړې وې. په يو ثلث کښې به ئې آرام کولو. په يو ثلث کښې به ئې خپل حديثونه يادول اوپه يوحصه کښې به ئې مونځ کولو۔ [۲]

امام عمروبن دينار رحمه الله داحاديثو ليکل نه خوښول.بلکه يادولوباندې به ئې زور ورکولو.

فرمائيل به ئې .. احرج على من يكتب عني، فما كتبت عن احد شيئا، كنت اتحفظ، ۔ [۳]

يعنى ..کوم سړې چې زما نه حديث ليکل غواړی هغه لره حرام دی چې زما حديثونه ليکلوسره ياد کړی، ما دچانه هم يو حديث په ليکلوسره نه دې ياد کړې. بلکه زبانی به مې يادول..۔

د فقه په مرتبې باندې دفائزکيدوباوجود به ئې ډېر مسائل نه ښودل. فرمائيل به ئې .. يسألونا عن راينا، فنخبرهم، فيكتبونه، كانه نقر في حجر، ولعلنا ان نرجع عنه غدا، . [۴]

يعنى .. خلق زمونږ نه زمونږ د راې تپوس کوی اومونږ ورته وايو نوخلق ئې داسې ليکی ګويا چې د کاڼړی کربنه. څه لرې ده چې مونږ سبا ته دهغې نه رجوع اوکړو ؟!..

يوځل يوسړې دهغه نه ديوې مسئله تپوس اوکړو . نوهغوی څه جواب ورنه کړو . په دې باندې هغه سړی دوباره اصرار کولو عرض اوکړو .. ان في نفسي منها شيئا فاجبني، . يعنى .. زما په زړه کښې لګ شان تردد دې تاسوجواب اوفرمائې. . نوهغوی جواب ورکړو .. والله لان يكون في نفسك مثل ابي قبيس احب الى من ان يكون في نفسي منها مثل الشعرة، . ـ مطلب داچې که .. په خدائې قسم ستاپه زړه کښې لګ شان تردد هم نشته دې که دابو قبيس دغربرابر تردد هم وی نوبيا به هم زۀ داسې جواب نه خوښومه چې په ماته دويخته هومره تردد هم وی ـ .. [۵]

امام عمروبن دينار رحمه الله فرمائي چې ماته ابن هشام اووئيل چې زۀ ستادپاره وظيفه مقرر کومه. تۀ خلقوته فتوې ورکوه.ما ورته اونيل چې ماته ددې ضرورت نشته دې ـ [۶]

تنبيه : تاسوشاته په تفصيل سره پوهه شوی ئې چې عمروبن دينار مکی دې اودې دصحاح سته د راويانونه دې ـ [۷]

---

[۱]) ميزان الاعتدال (ج۳ص ۲۶۰)، رقم (۶۳۶۷)ـ

[۲]) سيراعلام النبلاء (ج۵ص۳۰۲)ـ

[۳]) سيراعلام النبلاء (ج۵ص۳۰۲)ـ

[۴]) الطبقات الكبرى لابن سعد (ج۵ص ۳۸۰)ـ

[۵]) حواله بالاـ

[۶]) حواله بالاـ

[۷]) اوګورئ تهذيب الكمال (ج۲۲ص۵)ـ

اودغه شان دعمروبن دينار په نوم باندې يو رواى بل هم دې. كوم چې دترمذى او دابن ماجه په رجالوكښې دې اوضعيف دې -[1] نيزپه دې نوم باندې يو رواى بل هم دې چې هغه كوفى دې. دهغه هيڅ يو روايت هم په اصول ستة كښې موجود نه دې اودې مجهول دې -[2]

دعمروبن دينار رحمه الله وفات په ۱۲۲ هجرى كښې د اتيه كالوپه عمركښې شوې وو-[3]، رحمه الله تعالى رحمة واسعة

⑥ وهب بن منبه دا ابوعبدالله وهب بن منبه بن كامل بن سيج بن ذى كبار[4] اليمانى الصنعانى الابناوى[5] رحمه الله دې[6]

دى دهمام بن منبه، معقل بن منبه، غيلان بن منبه اودعقيل بن منبه رور دې -[7]

دى دحضرت انس، حضرت جابر بن عبدالله، حضرت عبدالله بن عباس، حضرت عبدالله بن عمر، حضرت عبدالله بن عمروبن العاص، حضرت ابوسعيد خدرى اودحضرت ابوهريره رضي الله عنهم نه علاوه دطاووس بن كيسان، عمروبن دينار، عمروبن شعيب، همام بن منبه اودابوخليفه بصرى رحمهم الله نه روايت حديث كوى -

ددوى نه روايت كونكوكښې عمروبن دينار، سماك بن الفضل، عوف الاعرابى، عاصم بن رجاء بن حيوة، اسرائيل ابوموسى، عقيل بن معقل بن منبه، منذربن النعمان، المغيره بن حكيم، صالح بن عبيد اوعبدالكريم بن خوران رحمهم الله وغيره ډيرحضرات شامل دى -[8]

امام عجلى رحمه الله فرمائى ,, تابعى ثقة، وكان على قضاء صنعاء _[9]

امام ابوزرعه اوامام نسائى رحمهما الله فرمائى ,, ثقة،، _[10]

ابن حبان رحمه الله دى په كتاب الثقات كښې ذكركړې دې اوليكلى ئې دى ,, وكان عابدا فاضلا، قرأ الكتب........_[11]

---

[1] اوګورئ تهذيب الكمال (ج۲۲ص۱۳-۱۶)، وتقريب التهذيب (ص۴۲۱)، رقم (۵۰۲۵)_
[2] اوګورئ تهذيب الكمال (ج۲۲ص۵) وتقريب التهذيب (ص۴۲۱)، رقم (۵۰۲۵)_
[3] الكاشف للذهبى (ج۲ص۷۵) رقم (۴۱۵۲) _
[4] كل من كان من اهل اليمن له ,, ذى،، هوشريف، يقال :فلان له ذى، وفلان لاذى له،،_ سيراعلام النبلاء (ج۴ص۵۴۵)، وتهذيب الكمال (ج۳۱ص۱۴۲)_
[5] بفتح الهمزة، منسوب الى ,, الابناء،، بباء موحدة ثم نون، وهم كل من ولد من ابناء الفرس الذين وجههم كسرى مع سيف بن ذى يزن،،_ عمدة القارى (ج۲ص۱۶۸)_
[6] تهذيب الكمال (ج۳۱ص۱۴۰)_
[7] الثقات لابن حبان (ج۵ص۴۸۸)_
[8] اوګورئ تهذيب الكمال (ج۳۱ص۱۴۰-۱۴۲)_
[9] تهذيب الكمال (ج۳۱ص۱۴۰)
[10] تهذيب الكمال (ج۳۱ص۱۴۰)
[11] الثقات لابن حبان (ج۵ص۴۸۷)_

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی ,, وروایته للمسند قلیلة، وانما غزارة علمه فی الاسرائیلیات، ومن صحائف اهل الکتاب،. [1]

دئ په شروع کښې د قدریه طرف ته مائله وو. په دې سلسله کښې یوکتاب هم لیکلې دې.بیا دئ په دې باندې نادم (پښیمانه) شو اودهغې نه ئې رجوع اوکړه. امام احمد رحمه الله فرمائی ,,کان یتهم بشئ من القدر ثم رجع،. [2]

ابوسنان نقل کوی

,, سمعت وهب بن منبه یقول: کنت اقول بالقدر، حتی قرأت بضعة وسبعین کتابا من کتب الانبیاء، فی کلها: من جعل الی نفسه شیئا من المشیئة فقد کفر، فترکت قولی،. [3]

یعنی ,,ما اول د قدریه عقیده لرله. تردې پورې چې ما دسابقه انبیاء کرامواویا ۷۰ نه زیات کتابونه اولوستل، په دې ټولوکښې ئې داخبره لیکلې وه چې کوم سړې په مشیئت او اراده کښې خپل ځان مختارکل اوګڼړی نوهغه کافرشو. نوماخپله عقیده ترک کړه..

امام جوزجانی رحمه الله فرمائی : ,,کان وهب کتب کتابا فی القدر، ثم حدثت انه ندم علیه،. [4]

عمروبن دینار رحمه الله فرمائی :

,, دخلت علی وهب داره بصنعاء، فاطعمنی جوزا من جوزة فی داره، فقلت له: وددت انك لم تکن کتبت فی القدر ! فقال انا والله وددت ذلك،. [5]

یعنی ,, مطلب دادې چې زۀ دوهب بن منبه کورته لاړم. هغه په ماباندې دخپل کورکوېره اوخوړه، ماورته اووئیل چې زما خواهش ووچې تۀ د ,,قدر،،متعلق څه نه وو لیکلی ! نو وې وئیل چې په خدای قسم ! اوس زما هم خیال دې چه افسوس ماڅه نه وولیکلی..

عمروبن علی الفلاس رحمه الله فرمائی ,,کان ضعیفا،. [6]

لیکن علماؤ دفلاس رحمه الله داقول نه دې قبول کړې، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې دفلاس دقول بنیاد هم هغه اتهام بالقدر دې اوددې نه رجوع ثابته ده، هغوی فرمائی

,, ووثقه الجمهور وشذ الفلاس، فقال: کان ضعیفا، وکان شبهته فی ذلك انه کان یتهم بالقول بالقدر، وصنف فیه کتابا، ثم صح انه رجع عنه،. [7]

---

[1] سیراعلام النبلاء (ج ٤ص٥٤٥)_
[2] تهذیب التهذیب (ج١١ص١٦٨)_
[3] تهذیب الکمال (ج٣١ص١٤٧) _
[4] حواله بالا_
[5] حواله بالا_
[6] تهذیب التهذیب (ج١١ص١٦٨)_
[7] هدی الساری (ص ٤٥٠)_

دغه شان حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی

,, وكان ثقة، صادقا، كثير النقل من كتب الاسرائيليات............وقد ضعفه الفلاس وحده، ووثقه جماعة ..............،، [1]

ددې نه پس هغوی دقدريوطرف ته ميلان اودهغوی نه درجوع ذكر كړې دې ـ [2]

بيادې داخبره هم مخې ته وی چې په بخاری شريف كښې د.وهب بن منبه،، سوا ددې يوروايت نه بل روايت نشته دې. په دې كښې هم دهغه متابعت كړې شوې دې [3] دكوم تفصيل چې وړاندې راروان دې ـ

په ۱۱۴هجرې كښې دهغه انتقال شوې دې ـ [4] رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

⑤ اخيه : د,, اخ،، نه مراد همام بن منبه رحمه الله دې ـ

داهمام بن منبه بن كامل بن سيج بن ذی كبار اليمانی الصنعانی الابناوی رحمه الله دې ـ [5]

دې دحضرت عبدالله بن الزبير، حضرت عبدالله بن عباس، حضرت عبدالله بن عمر، حضرت معاويه اودحضرت ابوهريره رضي الله عنهم نه روايت كوی ـ

اوددوی په روايت كونكوكښې ددهٔ ورارهٔ عقيل بن معقل بن منبه، علی بن الحسن، معمربن راشداووهب بن منبه رحمهم الله شامل دی ـ [6]

امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائی ,,ثقة،، ـ [7]

امام عجلی رحمه الله فرمائی ,, يمانی تابعی ثقة،، ـ [8]

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی ,,........المحدث المتقن،، ـ [9]

امام نووی رحمه الله فرمائی ,,..........واتفقوا على توثيقه،،،،،،، ـ [10]

دهمام بن منبه رحمه الله وفات په ۱۳۲هجری كښې شوې دې ـ [11] رحمه الله تعالى رحمة واسعة

..

[1] ميزان الاعتدال (ج ٤ص٣٥٢و٣٥٣)ـ
[2] حواله بالاـ
[3] هدی الساری (ص ٤٥٠)ـ
[4] الكاشف (ج٢ص٣٥٨)، رقم (٦١١٦)ـ
[5] تهذيب الكمال (ج ٣٠ص٢٩٨)ـ
[6] اوگورئ تهذيب الكمال (ج ٣٠ص٢٩٩)ـ
[7] تهذيب الكمال (ج ٣٠ص٢٩٩) وتاريخ الدارمی (ص ٢٢٤) رقم (٨٥١)ـ
[8] تهذيب التهذيب (ج١١ص٢٧) ـ
[9] سيراعلام النبلاء (ج٥ص٣١١) ـ
[10] تهذيب الاسماء واللغات (ج٢ص١٤٠)
[11] الكاشف (ج٢ص٣٣)) رقم (٥٩٨٤)ـ

**صحيفه همام بن منبه** حضرت ابوهريره رضي الله عنه هم په دې همام بن منبه باندې دوه نيم سوو ته نيزدې حديثونه ليكلي وو. دا نوشته په ,, **الصحيفة الصحيحة**،، نوم باندې معروف ده. داصحيفه د,, **صحيفة همام بن منبه**،، په نوم سره مطبوع اومتداول ده ـ
ددې صحيفې ددرس اوتدريس سلسله ترصدو پورې جارى وه. چونكه دددې ټول حديثونه روستو مؤلفينو مثلا امام احمد بن حنبل. امام بخارى. امام مسلم. امام ترمذى رحمهم الله وغيرهم په خپلو كتابونو كښې بعينه نقل كړى دى ـ نو ځكه روستو په مزه مزه باندې ددې جدا دتدريس سلسله كميدو كميدو سره په ٨٥٢هجرۍ تقريبا ختمه شوه ـ
دا رساله ترصدوپورې ناياب وه، خو په ١٣٧٣هجرۍ مطابق ١٩٥٤ء ددې دصدو زړې دوه قلمى نسخې په دمشق كښې (شام) اود برلن (جرمنى) په كتب خانو كښې فاضل محقق جناب ډاكټر حميدالله صاحب ته ملاؤشوې. اوهغوى په ١٣٧٥هجرۍ مطابق ١٩٥٦ء كښې دخپلې فاضلانه مقدمې او قابل رشك تحقيق اوترجمه سره شائع كړې ـ
دحديثو په دستيابو كتابونو كښې دا دټولونه قديم ترين تاليف دې. ځكه چې دابوهريره رضي الله عنه وفات په ٨٧هجرۍ كښې شوې دې اوظاهره ده چې داتاليف دهغوى دوفات نه وړاندې شوې دې ـ [1] والله اعلم

⑥**حضرت ابوهريره** رضي الله عنه: د حضرت ابوهريره رضي الله عنه حالات په كتاب الايمان ,,باب امور الايمان،، لاندې تير شوى دى ـ [2]

**قوله: مَا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- أَحَدٌ أَكْثَرَ حَدِيثًا عَنْهُ مِنِّي، إِلاَّ مَا كَانَ مِنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو:** د حضوراكرم صلى الله عليه وسلم په صحابو كښې يوسړې هم زما نه زيات دحديثونوروايت كونكې نشته، او! دعبدالله بن عمرو رضي الله عنهما چې دهغه حديثونه زما نه زيات دى ـ

**قوله: فَإِنَّهُ كَانَ يَكْتُبُ وَلاَ أَكْتُبُ:** ځكه چې هغه به ليكل اوما به نه ليكل ـ
دا ددې خبرې علت بيان كړې شوې دې چې دحضرت عبدالله بن عمرو حديثونه زيات وو اودحضرت ابوهريره رضي الله عنه كم ـ

**اشكال اود هغې جواب**: په دې باندې اشكال كيږى چې ددې نه معلوميږى چې دحضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما حديثونه دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه زيات دى، حالاتكه دحضرت ابوهريره رضي الله عنه داحاديثوتعداد پينځه زره درې سوا څلوراوويا (٥٣٧٤) دې [3] اودحضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما داحاديثو تعداد صرف اووه سوا دې ـ [4]

---

[1] اوګورئ ,,كتابت حديث عهد رسالت وعهدصحابه،،(ص ١٣٤و١٣٥)ـ
[2] اوګورئ كشف البارى (ج١ص٦٥٩)ـ
[3] اوګورئ فتح المغيث للسخاوى (ج ٤ص١٠٢)ـ
[4] فتح المغيث للسخاوى (ج ٤ص١٠٢و١٠٣) ومعرفة الصحابة(ج٣ص١٩٧)ـ

كوم چې دحضرت ابوهريره رضي الله عنه داحاديثو په مقابله کښې تقريبا اوومه حصه دي ـ

ددې جواب مونږ په کتاب الايمان.. باب امور الايمان،، لاندې دحضرت ابوهريره دحالاتو سره تفصيلا ذكر كړې دې ..[1] دكوم حاصل دادې چې

① ـ دحضرت ابوهريره رضي الله عنه مشغله زيات تردتعليم اوتعلم وه، اودحضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما مشغله زيات تردعبادت وه ـ

② حضرت ابوهريره رضي الله عنه په مدينه منوره کښې وو، چې دغلته دخلقو آمدورفت ډيرووه، اوحضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما زيات ترپه مصراوطائف کښې پاتې شوې وو، كوم ځائې کښې چې دعلم چرچا دومره نه وه ـ

③ دحضرت ابوهريره رضي الله عنه دپاره حضوراكرم صلى الله عليه وسلم خصوصي دعاګانې غوښتلې وو ـ

④ حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما ته دغزوه يرموك په موقع باندې داهل کتابوځه صحائف ملاؤ شوې وو ،چې هغه به ئې کتلې،ډيرو ائمه كرامو تابعينو ددې وجې نه دهغوى روايات نه دى اخستلى ـ

ددې وجوهاتو په وجې نه مونږ ته دهغوى روايات كم رارسېدلي دي ـ [2] والله اعلم.

**يو بل اشكال اودهغې جواب:** دلته حضرت ابوهريره رضي الله عنه تصريح فرمائى چې هغوى حديثونه نه ليكل ,, فانه كان يكتب ولا اكتب،، او ,, مستدرك حاكم او ,, جامع بيان العلم وفضله،، كښې حسن بن عمروبن اميه ضمرى وائى چې ما دحضرت ابوهريره رضي الله عنه په وړاندې دهغوى يوحديث روايت كړو، نوهغوى انكار اوكړو، ما اصرار اوكړو چې دا حديث ما ستاسو نه اوريدلې دې نوهغوى اوفرمائيل ,, ان كنت سمعته منى فانه مكتوب عندى،، ددې نه پس هغوى زما لاس اونيولواوخپل كورته ئې بوتلم اوپه خپلوكتابونوكښې ئې يوكتاب اوښودلو، چې دحضوراكرم صلى الله عليه وسلم په احاديثوباندې مشتمل وو، هلته دغه حديث ملاؤ شو، اوفرمائيل ئې ,, قد اخبرتك انى ان كنت حدثتك به فهو مكتوب عندى،، [3] ددې نه معلوميږى چې حضرت ابوهريره رضي الله عنه احاديث ليكل، داسې په دواړو حديثونوكښې تعارض پيدا كيږى ـ

په دې سلسله کښې بعضې حضراتو دترجيح طريقه اختيار كړې ده اوبعضې حضراتوجمع او تطبيق لره ـ

حافظ ذهبى رحمه الله ددې حديث لاندې فرمائى ,, هذا منكرلم يصح،، ـ [4]

دغه شان حافظ ابن عبدالبر رحمه الله فرمائى ,, وحديثه ذاك اصح فى النقل من هذا، لانه اثبت اسنادا عند

---

[1] اوګورئ: كشف البارى (ج١ص٦٦٠) ـ
[2] اوګورئ: فتح البارى (ج١ص٣٠٧) ـ
[3] اوګورئ: المستدرك (ج٣ص٥١١) كتاب معرفة الصحابة، ذكرابى هريرة الدوسى رضى الله عنه، وجامع بيان العلم وفضله (ج١ص٣٢٤))، باب ذكرالرخصة فى كتاب العلم،رقم (٤٢٢) ـ
[4] تلخيص المستدرك بذيل المستدرك (ج٣ص٥١١) ـ

اهل الحدیث، الاان الحدیثین قد یسوغ التاول فی الجمع بینهما،، ـ (۱)
گویا چې داحضرات دصحیح بخاری حدیث لره ترجیح ورکوی اودې حدیث لره دضعیف کیدو دوجې نه ردکوی

حافظ ابن حجر رحمه الله په دې دواړو روایتونوکښې دتطبیق په سلسله کښې فرمائی ،، ویمکن الجمع بانه لم یکن یکتب فی العهد النبوی ثم کتب بعده،، ـ یعنی حضرت ابوهریره رضی الله عنه دکتابت نفی فرمائیل دحضور اکرم صلی الله علیه وسلم د دور سره متعلق ده. اوهغوی به روستوحدیثونه لیکلې وی ـ (۲)
حافظ رحمه الله فرمائی چې ددې هم ډیره مضبوطه خبره دا ده چې حضرت ابوهریره رضی الله عنه په خپل لاس باندې نه لیکل اوکوم چې دمکتوب په شکل کښې حدیثونه دی هغه دبل چا په لاس باندې لیکلې شوی وو ـ (۳) والله اعلم ـ

**قوله**: تَابَعَهُ مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: معمربن راشد رحمه الله دهمام عن ابی هریره رضی الله عنه نه روایت کولو کښې دوهب بن منبه متابعت کړې دې ـ

## رجال الحدیث

① **معمر** : دا ابن معمربن راشدازدی بصری رحمه الله دې، دده مختصرحالات د ،، بدء الوحی،، پنځم حدیث لاندې تیرشوی دی، بیاهم دلته دهغوی تفصیلی حالات لیکلې کیږی ـ
دا مشهور امام معمربن راشدازدی، حدانی بصری رحمه الله دې، دده کنیت ابوعروه دې ـ (۴)
دی دثابت بنانی، قتاده، زهری، عاصم الاحول، ایوب سختیانی، زیدبن اسلم، صالح بن کیسان، یحیی بن ابی کثیر، امام اعمش، همام بن منبه، هشام بن عروه، محمدبن المنکدر اوعمروبن دینار رحمهم الله وغیره نه روایت کوی ـ
دده په روایت کونکوکښې دده شیوخ یحیی بن ابی کثیر، ابواسحاق سبیعی، ایوب سختیانی. عمروبن دینارنه علاوه سعیدبن ابی عروبه، ابان بن یزیدالعطار، اسماعیل بن علیه، امام شعبه،هشام الدستوائی،سفیان ثوری، سفیان بن عیینه، عبدالله بن المبارک،عبدالرزاق بن همام،محمدبن جعفرغندراو محمدبن کثیرصنعانی رحمهم الله وغیره ډیرحضرات دی ـ (۵)

امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی ،،اثبت الناس فی الزهری : مالك ومعمر............،، (۶)

(۱) جامع بیان العلم وفضله (ج۱ص۳۲٤) ـ
(۲) فتح الباری (ج۱ص۳۹۷) ـ
(۳) حواله بالا ـ
(۴) فتح الباری (ج۱ص۳۰۷) ـ
(۵) دشیوخو اوتلامذو دتفصیل دپاره اوګوری: تهذیب الکمال (ج۲۸ص۳۰٤ ـ ۳۰۶)
(۶) تهذیب التهذیب (ج۱۰ص۲٤٤) ـ

نیز هغه فرمائی ,,ثقة،،.[1] عمرو بن علی رحمہ اللہ فرمائی ,,معمر من اصدق الناس،،.[2]

امام عجلی رحمہ اللہ فرمائی ,,معمر بن راشد بصری سکن الیمن، ثقة، رجل صالح،،.[3]

یعقوب بن شیبه رحمہ اللہ فرمائی ,,ومعمر ثقة، وصالح التثبت عن الزهری،،.[4]

امام نسائی رحمہ اللہ فرمائی ,,ومعمر بن راشد الثقة المامون،،.[5]

ابن جریج رحمہ اللہ فرمائی ,,علیکم بهذا الرجل _ یعنی معمرا _ فانه لم یبق احد من اهل زمانه اعلم منه،،.[6]

امام دارقطنی رحمہ اللہ فرمائی ,,ثقة،،.

,,معمر ثقة مامون،،.

امام خلیلی رحمہ اللہ فرمائی ,,اثنی علیه الشافعی،،.[7]

امام مالک رحمہ اللہ فرمائی ,,نعم الرجل کان معمر، لولا روایته التفسیر عن قتادة،،.[8]

امام احمد رحمہ اللہ فرمائی ,,لست تضم معمرا الی احد الاوجدته فوقه،،.[9]

ابن حبان رحمہ اللہ دئ په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې او ليکلي ئې دی,, وکان فقیها متقنا، حافظا، ورعا،،.[10]

ابن سعد رحمہ اللہ فرمائی ,,وکان معمر رجلا له حلم ومروءة ونبل فی نفسه،،.[11]

البته دامام یحیی بن معین رحمہ اللہ نه دتوثیق سره سره دا هم منقول دی ,, اذا حدثك معمر عن العراقیین فخالفه، الاعن ابن طاووس والزهری، فان حدیثه عنهما مستقیم، فاما اهل الکوفة واهل البصرة فلا، وما عمل فی حدیث الاعمش شیئا،،.[12]

---

[1] تهذیب الکمال (ج۲۸ص۳۰۹)_
[2] حواله بالا_
[3] حواله بالا_
[4] حواله بالا_
[5] تهذیب الکمال (ج۲۸ص ۳۱۰)_
[6] حواله بالا_
[7] تهذیب التهذیب (ج۱۰ص۲۴۵)_
[8] سیراعلام النبلاء (ج۷ص۹)_
[9] سیراعلام النبلاء (ج۷ص۱۰)_
[10] الثقات لابن حبان (ج۷ص ۴۸۴) _
[11] الطبقات الکبری لابن سعد (ج۵ص۵۴۶)_
[12] تهذیب التهذیب (ج۱۰ص۲۴۵)_

دغه شان هغه فرمائي .. وحديث معمر عن ثابت، وعاصم بن ابي النجود، هشام بن عروة، وهذا الضرب، مضرب كثير الاوهام، . ـ (۱)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائي .. ماحدث معمر بالبصرة فيه اغاليط، وهو صالح الحديث، . ـ (۲)

امام دارقطني رحمه الله فرمائي .. سيئ الحفظ لحديث قتادة والاعمش، . ـ (۳) حاصل دا دې چې ټولو اقوالو داده چې دامام معمربن راشد رحمه الله ثقاهت اوجلالت شان باندې اتفاق دې. بياهم چې کله دې د يمن نه دوباره بصرې ته لاړو نوهلته ئې دخپلې حافظې په مدد سره حديثونه اورول چې په کښې غلطيانې اوشوې. نوهغه حديثونه کوم چې اعمش. ثابت بناني. عاصم بن ابي النجود. هشام بن عروه اوقتاده نه روايت کوي هغه دومره قوي نه دي ځومره چې نور روايتونه قوي دي ـ

خو دلته دې داخبرې مخې ته وي چې امام بخاري رحمه الله په صحيح بخاري شريف کښې دهغه نه کوم رواياتونه اخستي دي هغه دامام زهري، ابن طاووس، همام بن منبه. يحيى بن ابي کثير، هشام بن عروه، ايوب سختياني. ثمامه بن انس او دعبدالکريم جزري رحمهم الله وغيره حضراتونه روايت کړې شوي دي. دامام اعمش يو روايت ئې نه دې اخستې. دغه شان د امام قتاده اوثابت بناني رحمهما الله احاديث ئې تعليقا راوړي دي، په اهل بصره کښې ئې چې دچا روايت هم اخستلې دې دهغې متابعت موجود دې ـ (۴)

نوحافظ ذهبي رحمه الله فرمائي .. احد الاعلام الثقات، له اوهام معروفة، احتملت له في سعة ما اتقن، . ـ (۵) يعني .. دئ دثقات اعلامو نه دې. دده څه اوهام دي کوم چې معروف دي، ليکن دده متقن روايات په کثرت سره پيش نظر دي نودده معمولي اوهام والا رواياتوتحمل کړې شوې دې. ـ والله اعلم

امام معمراصلا خودبصره اوسيدونکې وو، خو کله چې دئ صنعاء ته لاړو اوبيا دهلته نه دواپس راتلوتيارې شروع کولونودهغه ځائې اصحابو دا سوچ اوکړو چې دده په شان صاحب کمال لره يمن ته نه دي پريخودل پکار. نودهغه ځائې صاحب رايو داتدبيراوکړوچې دهغه ئې هلته نکاح اوکړه نوبياهغوي هم دهغه ځائې شو ـ (۶)

په رمضان ۱۵۳ هجري کښې دهغوي وفات اوشو ـ (۷) رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

---

۱) حواله بالا ـ
۲) تهذيب الكمال (ج۲۸ص۳۰۹و ۳۱۰) ـ
۳) تعليقات تهذيب الكمال (ج۲۸ص۳۱۲) ـ
۴) قاله الحافظ في هدى السارى (ص ٤٤٤و٤٤٥) ـ
۵) ميزان الاعتدال (ج ٤ص ١٥٤)، رقم (۸۶۸۲) ـ
۶) تهذيب الكمال (ج۲۸ص۳۰۹) ـ
۷) الكاشف (ج۲ص۲۸۲) رقم (۵۵۶۷) ـ

④ **همام**: داهمام بن منبه رحمه الله دې ددۀ حالات اوس په دې باب کښې تیرشو۔

③ **حضرت ابوهریره** رضي الله عنه: دحضرت ابوهریره رضي الله عنه حالات په کتاب الایمان، ،،باب امور الایمان،، لاندې تیر شوی دی۔[1]

**دمذکوره متابعت تخریج**: دې متابعت لره موصولا، امام عبدالرزاق بن همام صنعانی رحمه الله په ،،مصنف،، کښې[2] او حافظ ابن عبدالبر رحمه الله په ،،جامع بیان العلم وفضله،، کښې[3] تخریج کړې دې۔

نیزحافظ رحمه الله فرمائی ،، واخرجها ابوبکربن علی المروزی فی کتاب العلم له عن حجاج بن الشاعرعنه،،۔[4]

نیزهغوی فرمائی ،، وقد تابع حجاجا علیه احمد بن منصور الرمادی، رواه البغوی فی شرح السنة من طریقه، رواه ابن منده فی الوصیة من طریق مجاهد عن ابی هریرة نحوه،،۔[5]

**مذکوره متابعت لره دذکرکولو مقصد**: دې متابعت لره دذکرکول مقصد غالبادادې چې چونکه وهب بن منبه رحمه الله سره دثقه کیدو نه په هغه باندې بعضې علماؤ کلام کړې دې. لکه څنګه چې وړاندې دفلاس رحمه الله تضعیف تیرشوې دې۔

ددې نه علاوه دۀ ډیراسرائیلیات هم روایت کوی،څکه امام بخاری رحمه الله ددۀ متابعت ذکرکولوسره دا اوښودل چې دوهب دا روایت قوی دې۔ په دې کښې دڅه قسمه شبه نشته دې۔ والله اعلم۔

**دحدیث شریف دترجمة الباب سره مطابقت**: ددې حدیث نه،، او ددې نه وړمبې حدیث ،، اکتبوالابی شاه،، نه او دغه شان ددې باب وړمبی حدیث کوم چې دحضرت علی رضي الله عنه نه مروی دې. دکتابت حدیث اجازت مستفاد کیږی، اوکوم خائې پورې چې دممانعت کتابت حدیث تعلق دې نو مونږ ددې تفصیلا ذکرپه مقدمه کښې کړې دې۔[6]

[۱۱۴] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ وَهْبٍ قَالَ أَخْبَرَنِي يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ[7] قَالَ: لَمَّا اشْتَدَّ بِالنَّبِيِّ - صلى الله

---

[1] کشف الباری (ج۱ص۶۵۹)_

[2] مصنف عبد الرزاق (ج۱۱ص۲۵۹) باب العلم، باب کتاب العلم، رقم (۲۰۴۸۹)_

[3] جامع بیان العلم وفضله (ج۱ص۲۹۹) باب ذکرالرخصة فی کتاب العلم، رقم (۳۸۷) _

[4] فتح الباری (ج۱ص۳۰۷) _

[5] اوګورئ تغلیق التعلیق (ج۲ص۹۲)_

[6] کشف الباری ( ج۱ص۲۸_۳۱) _

[7] قوله : ،،عن ابن عباس،، الحدیث اخرجه البخاری فی صحیحه (ج۱ص۴۲۹) فی کتاب الجهاد والسیر، باب هل یستشفع الی اهل الذمة ومعاملتهم، رقم (۳۰۵۳)، و(ج۱ص۴۴۹)... [بقیه حاشیه په راروانه صفحه..

عليه وسلم - وَجَعُهُ قَالَ «ائْتُونِي بِكِتَابٍ أَكْتُبْ لَكُمْ كِتَابًا لَا تَضِلُّوا بَعْدَهُ». قَالَ عُمَرُ إِنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - غَلَبَهُ الْوَجَعُ وَعِنْدَنَا كِتَابُ اللَّهِ حَسْبُنَا فَاخْتَلَفُوا وَكَثُرَ اللَّغَطُ. قَالَ «قُومُوا عَنِّي، وَلَا يَنْبَغِي عِنْدِي التَّنَازُعُ». فَخَرَجَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَقُولُ إِنَّ الرَّزِيَّةَ كُلَّ الرَّزِيَّةِ مَا حَالَ بَيْنَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَبَيْنَ كِتَابِهِ.

## رجال الحديث

① **يحيى بن سليمان** : دا ابوسعيد بن سليمان بن يحيى بن سعيد جعفي مقرى كوفي رحمه الله دي، دهٔ په مصر کښې هم استوګنه کړې وه ـ (۱)

دئ دعبدالله بن وهب. اسماعيل بن عليه. حفص غياث. محمدبن فضيل بن غزوان. وكيع بن الجراح، ابوبكربن عياش اوابوخالد الاحمر رحمهم الله وغيره نه روايت کوي ـ

اوددوی نه په روايت کونکوکښې امام بخاری. احمدبن الحسن ترمذی. حسن بن علی الحلوانی، ابوزرعه رازی، ابوحاتم رازی اومحمدبن يحيى ذهلی رحمهم الله وغيره حضرات دی ـ (۲)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی ,,شيخ،،_ (۳)

امام دارقطنی رحمه الله فرمائی ,,ثقة،،_ (۴)

مسلمه بن قاسم رحمه الله فرمائی ,,لاباس به، وكان عند العقيلي ثقة، وله احاديث مناكير،،_ (۵)

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی ,,صويلح،،_ (۶)

ابن حبان رحمه الله دئ په کتاب الثقات کښې ذکرکړې دې، اوفرمائی ,, ربما اغرب،،_ (۷)

---

بقيه حاشيه د تيرمخ] فی کتاب الجزية والموادعة، باب اخراج اليهودمن جزيرة العرب، رقم (۳۱۶۸)، و(ج۲ص۶۳۸) كتاب المغازی، باب مرض النبی صلى الله عليه وسلم ووفاته، رقم (۴۴۳۱) و(۴۴۳۲)، و(ج۲ص۸۴۶و۸۴۷) کتاب المرضى، باب قول المريض : قوموا عنی، رقم (۵۶۶۹)، (ج۲ص۱۰۹۴) کتاب الاعتصام بالکتاب والسنة باب كراهية الخلاف، رقم (۷۳۶۶)، ومسلم فی صحيحه، فی كتاب الوصية، باب ترک الوصية لمن ليس له شيئ يوصی فيه، رقم (۴۲۳۲ _ ۴۲۳۴) _

۱) تهذيب الكمال (ج ۳۱ص۳۶۹و ۳۷۰)_

۲) دشيوخواودتلامذؤ دپاره اوګورئ تهذيب الكمال (ج ۳۱ص۳۶۹و ۳۷۰)_

۳) تهذيب الكمال (ج ۳۱ص ۳۷۱) لفظ ,, شيخ،، دتعديل دالفاظونه دې، دتفصيل دپاره اوګورئ مقدمة الكاشف للشيخ محمد عوامة حفظه الله (ص۴۵و۴۶) _

۴) تهذيب التهذيب (ج ۱۱ص۲۲۷)_

۵) حواله بالا_

۶) الكاشف للذهبی (ج۲ص۳۶۷)، رقم (۶۱۸۱)_

۷) الثقات لابن حبان (ج۹ص۲۶۳) _

البته امام نسائی رحمه الله دده تضعیف کړې دې، فرمائیلی دی ,,لیس بثقة،،. [۱]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی ,,صدوق یخطئ،،. [۲]

خو حافظ ابن حجر رحمه الله دامام نسائی رحمه الله په باره کښې فرمائی ,,وکان النسائی سیئ الرائ فیه،، [۳]

دغه شان دحافظ ابن حجر رحمه الله قول ,, صدوق یخطئ،، باندې تبصره کولوسره بعضې محققین وائی ,,بل صدوق، حسن الحدیث، فقد روی عنه جمع من الثقات، منهم: البخاری فی الصحیح، وابوحاتم وقال: شیخ، ووثقه العقیلی والدار قطنی، وذکره ابن حبان فی الثقات وقال: یغرب، وضعفه النسائی وحده، وقال مسلمة بن قاسم الاندلسی: لاباس به........وله احادیث مناکیر،،. [۴]

یعنی,, دده مرتبه د ,,صدوق یخطئ،، په ,,ځای صدوق حسن الحدیث،، پکار ده.. ځکه چې دده نه دثقاتو یو جماعت روایت کړی دی، چې په کښې امام بخاری رحمه الله هم دې چې هغه په خپل صحیح کښې دهغه نه روایت کړې دې، دغه شان په دې کښې ابوحاتم هم دې فرمائی چې ,,شیخ،، عقیلی او دارقطنی دده توثیق کړې دې، ابن حبان هم دئ په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې او فرمائی چې کله هغه غریب حدیثونه هم نقل کوی. البته صرف امام نسائی یو اخې (ځانله) دده تضعیف کړې دې نیز مسلمه بن قاسم اندلسی رحمه الله دده په باره کښې فرمائی ,,لاباس به،، او فرمائی چې دده څه احادیث منکر دی.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې امام بخاری رحمه الله خو اول دده نه زیات احادیثونه نه دی اخستلی. بلکه دهغه نه ئې څه لګ احادیث اخستلی دی، کوم چې معروف دی او ابن وهب نه مروی دی. [۵] والله اعلم

دیحیی بن سلیمان رحمه الله انتقال په ۲۳۷ هجری کښې شوې دې. [۶] رحمه الله تعالی رحمة واسعة.

② **ابن وهب**: دا مشهور امام حدیث او فقه ابو محمد عبدالله بن وهب بن مسلم قرشی، فهری، مصری رحمه الله دې. دده حالات د ,,کتاب العلم،، ,,باب من یرد الله به خیرا یفقهه فی الدین،، لاندې تیر شوی دی. [۷]

③ **یونس**: دا یونس بن یزید ایلی قرشی رحمه الله دې. ددوی حالات په کتاب العلم،، باب من یرد الله

---

[۱] تهذیب الکمال (ج۳۱ص۳۷۱) _

[۲] تقریب التهذیب (ص۵۹۱)، رقم (۷۵۶٤) _

[۳] هدی الساری (ص٤۵۱) _

[۴] تحریر تقریب التهذیب للدکتور بشار عواد معروف. والشیخ شعیب الارنؤوط (ج٤ص۸۷) رقم (۷۵٦٤) _

[۵] هدی الساری (ص٤۵۱) _

[۶] الکاشف للذهبی (ج۲ص۳٦۷) رقم (٦۱۸۱) _

[۷] کشف الباری (ج۳ص۲۳۸) _

به خيرا يفقه في الدين،، لاندې تيرشوی دی ۔(۱)

④ ابن شهاب : داامام محمدبن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب زهری رحمه الله دی.ددۀ حالات مختصرا د..بدء الوحی،. دربم حديث لاندې تيرشوی دی ۔(۲)

⑤ عبيد الله بن عبدالله : دادمدينه منورې مشهور فقيه عبيدالله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود هذلی مدنی رحمه الله دی.ددۀ حالات د..كتاب العلم،،باب متى يصح سماع الصغير؟. لاندې تیر شوی دی ۔(۳)

⑥ ابن عباس : دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما حالات د..بدء الوحی.. دڅلورم حديث لاندې (۴) او د.. كتاب الايمان،،باب كفران العشير وكفر دون كفر،.لاندې تيرشوی دی ۔(۵)

**قوله: قَالَ لَمَّا اشْتَدَّ بِالنَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَجَعُهُ قَالَ:** حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چې کله دحضوراکرم صلى الله عليه وسلم په تکليف کښې شدت پيداشو نوهغوی اوفرمائيل:

دا دحضوراکرم صلى الله عليه وسلم دمرض وفات واقعه دہ. نبی عليه السلام تقريبا دوه هفتې بيماروو. دپنجشنبه (جمعرات) دورځې نه دهغوی بيماری سخته شوې وه اودا دجمعرات ورځ وه. ددې نه پس دپيرپه ورځه باندې دهغوی وصال اوشو، ګويا چې هغوی دوصال نه څلور ورځې وړاندې دا ارشاد فرمائيلې دې ۔(۶)

**قوله: «ائْتُونِي بِكِتَابٍ أَكْتُبُ لَكُمْ كِتَابًا لاَ تَضِلُّوا بَعْدَهُ»:** مالره دليکلو سامان راؤړی چې زۀ ستاسودپاره يوداسې تحرير اوليکمه چې ددې نه پس به تاسو ګمراه کيږی نه ۔

دلته وړومبې لفظ ..كتاب،، نه .. ادوات الكتاب،، مراد دی. دمسلم شريف په روايت کښې تصريح موجود ده.. ايتونی بالكتف والدواة او اللوح والدواة،. (۷)په دې کښې د..كتف،، نه مراد داوګی هډوکې دې. په داسې قسمه څيزونو باندې به دې حضراتو ليکل کول ۔(۸)

دويم لفظ ..كتاب،، نه مراد..مكتوب،، يعنی تحريرمراد دې او..اكتب،،او..د لاتضلو..

---

(۱) كشف الباری (ج۳ص۲٤۲)_

(۲) كشف الباری (ج۳ص۲۲۶)_

(۳) كشف الباری (ج۳ص۳۲۷) _

(۴) كشف الباری (ج۱ص٤۳۵)

(۵) كشف الباری (ج۲ص۲۰۵)

(۶) اوګورئ صحيح البخاری (ج۱ص۳۲۹) كتاب الجهاد والسير، باب هل يستشفع الى اهل الذمة ومعاملتهم. رقم (۳۰۵۳)_

(۷) اوګورئ صحيح مسلم.كتاب الوصية، باب ترك الوصية لمن ليس له شيئ يوصی فيه. رقم (٤۲۳۳) _

(۸) فتح الباری (ج۱ص۲۰۸) _

جواب امرواقع دی، ځکه مجزوم دی ـ ([1])

قَالَ عُمَرُ إِنَّ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - غَلَبَهُ الْوَجَعُ وَعِنْدَنَا كِتَابُ اللَّهِ حَسْبُنَا فَاخْتَلَفُوا وَكَثُرَ اللَّغَطُ. قَالَ «قُومُوا عَنِّي، وَلَا يَنْبَغِي عِنْدِي التَّنَازُعُ». فَخَرَجَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَقُولُ إِنَّ الرَّزِيَّةَ كُلَّ الرَّزِيَّةِ مَا حَالَ بَيْنَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَبَيْنَ كِتَابِهِ.

حضرت عمر ﷺ اوفرمائیل : په نبی کریم ﷺ باندې دتکلیف شدت دی او مونږ سره کتاب موجود دی کوم چې زمونږ دپاره کافی دی، نوپه صحابه کرامو کښې اختلاف پیدا شواوشور شغرپ زیات شو، نوحضور اکرم ﷺ اوفرمائیل زمانه پاسئ، زما په وړاندې جنګ جګړې صحیح نه دی، حضرت ابن عباس (چې کله داحدیث روایت کړو) نودې وینا سره بهر اووتلو: هومصیبته ! وای مصیبته ! کوم چې دحضوراکرم ﷺ اودهغوی دتحریرپه مینځ کښې حائل شو۔

حضوراکرم ﷺ څه لیکل غوښتل ؟ حضرت عمر ﷺ ولې ددې مخالفت اوکړو ؟

آیا دروافضودوینا مطابق حضوراکرم ﷺ دحضرت علی ﷺ دپاره داستحقاق خلافت ظاهرول غوښتل ؟ آیا هغوی دا وئیل غوښتل چې حضرت ابوبکرصدیق ﷺ لره دخلافت استحقاق نه وو؟

ددې ټولو امور په څه قدرې تفصیلی جائزه اخلو۔

**حضوراکرم ﷺ څه لیکل غوښتل** : علامه خطابی ﷺ فرمائی چې دلته دوه احتماله دی :۔

یودا چې دهغوی ﷺ نه پس خلیفه جوړیدونکی نوم ئې لیکل غوښتل، چې خلق پکښې اختلاف اونه کړی اوددې نه به دفتنه اوضلالت دروازه پرانستلې شی۔

دویم احتمال دادې چې حضوراکرم احکام دین لیکل غوښتل،چې داختلافاتورفع اوکړې شی۔ ([2])

دامام سفیان بن عیینه ﷺ نه علاوه نورو حضراتو ړومبې احتمال ته ترجیح ورکړې ده ([3])

چې تاکیدئې دمسلم شریف دحدیث نه کیږی :

,, عن عائشه قالت : قال لی رسول الله صلی الله علیه وسلم فی مرضه : ادعی لی ابابکر اباك، واخاك، حتی اکتب کتابا، فانی اخاف ان یتمنی متمن ویقول قائل : انا اولی، ویابی الله والمؤمنون الا ابابکر ،، ـ ([4])

یعنی ,, حضور ﷺ د خپل مرض الموت په موقع باندې ماته اوفرمائیل چې خپل والد ابوبکر اوخپل رور راؤبله، دې دپاره چې زۀ تحریراولیکمه، ځکه چې ماته ددې خبرې اندیښنه ده چې څوک تمناکونکې تمنا کولوسره اوائی،چې زۀ دخلافت ډیرحق داریم، اوالله تعالی اواهل ایمان دابوبکرنه سوابه په بل چاباندې راضی نه وی ،،۔

---

[1] حواله بالا_

[2] اعلام الحدیث (ج۱ص۲۱۷و۲۱۸)_

[3] عمدة القاری (ج۲ص۱۷۱)_

[4] صحیح مسلم،کتاب الفضائل،باب من فضائل ابی بکرالصدیق رضی الله عنه، رقم (۶۱۸۱)_

بعضي حضرات وائي چې نبي اکرم ﷺ دصحابه کرامونه دامتحان اغستلودپاره دا فرمائيلې وو.. ايتونى بكتاب اكتب لكم كتابا،. چې اوګورى ! چې دا حضرات په قرآن اوحديث باندې دپوره عمل اراده لرى که نه، کله چې حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل ..حسبنا كتاب الله،. نوهغوى ﷺ ته يقين اوشو۔

خو دا جواب صحيح نه معلوميږى، ځکه چې حضوراکرم ﷺ ددې نه پس اوفرمائيل ..لاتضلوا بعده،. که چرې دحضوراکرم ﷺ مقصد امتحان وونو ..لاتضلوا بعده،. نې ولې فرمائيل !

**حضرت عمر رضي الله عنه مخالفت ولې اوکړو؟**: حضرت عمر رضي الله عنه چې په دې موقع باندې د تحرير مخالفت اوکړو. دې لره په يوغلط محمل باندې دمحموله کولوضروت نشته دې اونه حضرت عمر رضي الله عنه په دې سلسله کښې متهم کيدې شي.په غورکولوسره ددې مخالف وجه دا معلوميږى چې هغوى اوکتل چې الله تعالى دين مکمل کړواوپه يومعلومه اومتعينه طريقه باندې جارى اوسارى شو، اوس په حضوراکرم ﷺ باندې دتکليف دشدت عالم دې اودوصال وخت هم نيزدې دې. په دې کښې هيڅ څه شک نشته دې څنګه چې نورو خلقوته امراض اوآلام لاحق کيږى ددې نه نه صرف حضوراکرم ﷺ مستثنى نه دې بلکه په هغوى باندې ددغه آلامواو امراضواثردعام خلقوپه مقابله کښې څه زيات وى. لکه څنګه چې دهغوى ارشاد دې

..انى اوعك كما يوعك رجلان منكم،.۔ [1]

يعنى ..ماته دومره سخته تبه وى څومره چې ستاسوپه دووکسانوباندې وى،.۔

دغه شان ارشاد دې ..اللهم انما محمد بشر يغضب كما يغضب البشر،.۔ [2] دغه شان دنبى کريم ﷺ ارشاد دې ..انامعشر الانبياء يضاعف لنا البلاء،.۔ [3]

دحضرت عمر رضي الله عنه خيال ووچې په داسې موقع باندې تحرير ليکلوسره به منافقينووغيره ته دتلبيس موقع ملاوشى. مثلاً هغوى يوبل تحرير پيش کولوسره دا ني وئيلې شوچې دا حضور اکرم ﷺ ليکلې دې. ځکه حضرت عمر رضي الله عنه سوچ اوکړو چې په داسې موقع باندې دتحرير خاص ضروت نشته. تول د دين امور مونږ ته معلوم دى، داصولو اوقواعدو دپاره .. کتاب الله موجوددې لهذافى الحال ددې تحريرضرورت نشته دې ۔ [4]

خاص طور باندې دې دپاره هم ضرورت اونه ګڼړلوچې حضرت عمر رضي الله عنه درسول الله ﷺ

---

[1]) صحيح البخارى (ج٢ص٨٤٣). كتاب المرضى،باب اشدالناس بلاء الانبياء ثم الاول فالاول، رقم (٥٦٤٨)_

[2]) صحيح مسلم،كتاب البروالصلة والادب،باب من لعنه النبى صلى الله عليه وسلم، اوسبه، اودعاعليه، وليس هو اهلا لذلک : كان له زكاة واجرا ورحمة، رقم (٦٦٢٢)_

[3]) مسند احمد (ج٣ص ٩٤). مسند ابى سعيد الخدرى رضى الله عنه، وانظرالسنن لابن ماجه، كتاب الفتن، باب الصبرعلى البلاء رقم (٤٠٢٤)_

[4]) اوګورئ:اعلام الحديث للخطابى (ج١ص٢٢٣_٢٢٦)_

دمزاج شناس وو، موارد كلام حيثيت ئې پيژندلو. چې هغوى ﷺ وجوبا اوحتما څه كلام ارشاد فرمائى كه ندبا اوارشادا، دا ئې په ښه شان سره پيژندل ـ ددې خبرودوجې نه حضرت عمر رضي الله عنه ,,عندنا كتاب الله حسبنا،، وئيلوسره دحضور اكرم ﷺ تسلى اوكړه چې تاسوته دفكر ضرورت نشته. انشاء الله دا امت من حيث المجموع ضلال باندې به نه مجتمع كيږى، مونږسره ,,كتاب الله،، موجود دې ـ

كه چرې دخلافت خبره ئې ليكل غوستل نوبياهم خبره واضحه ده چې حضوراكرم ﷺ په ۹هجرې كښې حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه لره اميرالحج جوړكړې وو. دمرض وفات په ايامو كښې ئې حضرت ابوبكرصديق ته دامامت حكم كړې وو. ددې نه په واضحه توګه معلوميږى چې كه چرې هغوى ﷺ دخليفه په توګه باندې څوک نامزد كول غوستل. لهذا دې ته هم دليكلوڅه ضرورت محسوسه نه شو. حاصل دا چې دحضوراكرم ﷺ بعضې ارشادات وجوبى وى، په دې كښې نه هغوى دچا نه مشوره اخلى اونه په صحابه كرامو كښې څوک مراجعت كوى، ليكن په بعضې اوقاتو كښې دهغوى ارشادت وجوبى نه وى. په داسې صورت كښې هغوى مشوره هم كوى اودهغوى په خبره باندې صحابه كرام مراجعت هم كوى. دلته هم داسې اوشوچې حضرت عمر رضي الله عنه دقرائنواوشواهدو نه معلومه كړه چې په دې وخت كښې حضور اكرم په سخت تكليف كښې دې اودهغوى داارشاد وجوبى هم نه دې، بيا داچې په كوم څيزهغوى ليكل غواړى په هغې باندې عمل هم كيږى لګيادې اوآئنده به پرې باندې هم عمل كيږى، نوځكه هغوى په دې موقع باندې دتحرير مخالفت اوكړو۔

ددې تائيد ددې خبرې نه هم كيدې شى كه چرته څه وجوبى حكم وونوصرف حضرت عمر رضي الله عنه نه بلكه كه ټولې دنياهم دهغوى ﷺ مخالف كولونوبيا به هم هغوى دې حكم لره پوره كولو نه چاهم ايسارولې نه شو. هغوى ﷺ په دې موقع باندې يادې نه پس دفرصت ملاؤيدوباوجود تحريرنه ليكل ددې خبرې قوى دليل دې چې داحكم وجوبى نه وو. ځكه حضرت عمر رضي الله عنه دهغوى دراحت په خاطرباندې ددې تحريردليكلومخالفت اوكړو.دادڅه قسمه بې ادبى ياګستاخى هرګزنه ده ـ

اوګورئ دصلح حديبيه په موقع باندې ,, صلح نامه،، دليكلوپه وخت كښې چې كله مشركينو د ,,رسول الله،، په لفظ باندې اعتراض اوكړونوهغوى ﷺ حضرت على رضي الله عنه ته حكم اوكړو,, امحه،،۔ ليكن حضرت على رضي الله عنه دغايت محبت اودوفود جذبات كښې عرض اوكړو,, والله، لاامحواہدا،، (۱) په دې باندې نه هغوى ناراضه شواونه نورڅوک ناراض شول ـ

بيادلته داخبره هم دپوهې ده چې ددې حكم مخاطب خوصرف حضرت عمر رضي الله عنه نه وو. بلكه ټول اهل بيت وو. هلته حضرت على اوحضرت عباس رضي الله عنهما هم موجوددوونوټولوبه شور شغرپ جوړكړې وو. چاهم كاغذ راونړو. آيا حضرت عمر رضي الله عنه ددې ټولولار بنده كړې وه چې په دې كښې څوک داسې پيدانه شى چې قلم اودوات راوړى. كه اونيلې شى چې كاغذ دحضرت

---

(۱) السيرة الحلبية (ج۳ص۲۰)، غزوة الحديبية ـ

عمر رضي الله عنه دويرې نه ئې راؤړو نومونړ ونيلې شوچې حضرت علي رضي الله عنه خو شيرخداوو. دهغوئ په بهادرۍ کښې څه شک نه وو، بياهغه دحضرت عمر رضي الله عنه نه څنګه ويريدل ؟ !
حاصل دا چې هغوی ﷺ دفريقينوپه راې که دچانه هم ناراضه نه شو. ګنې سزا به ئې ورکړې وه يا به ئې بليغه تنبيه کړې وه، ياکم ازکم دوباره تاکيدی حکم به ئې فرمائيلې ووا وحضرت عمر رضي الله عنه ته به ئې غصه (زورنه) کړې وه. البته ددې شور دوجې نه وقتی توګه باندې څه متاثره شواوپه دې باندې يوتسمه ناخوښي ئې هم اوکړه ـ (١) والله تعالیٰ اعلم
دلته داهم امکان دې چې هغوی ﷺ په دې موقع باندې هغه وصيتونه ليکل غوستل کوم چې روستوهغوی اوکړه.
لکه څنګه چې هغوی مشرکين دجزيرة العرب نه دويستلو (٢) راتلونکې وفودو ته په انعاماتو او اکرامونو سره درخصت کولو (٣) په قرآن دعمل کولو (٤) جيش اسامه لره دخپل هدف طرف ته دليګلو (٥) دمونځونوداهتمام کولو (٦) دغلامانودحقوقودرعايت کولو (٧) اودهغوی قبرلره دبت پرستې ډيره نه جوړولو (٨) وصيتونه فرمائيلي وو ـ
**واقعه قرطاس** : دې حديث ته ,,حديث قرطاس،، وئيلې کيږي اودا واقعه دقرطاس واقعه بللې کيږي ـ
ددې واقعې په بنياد باندې روافضو په حضرت عمر رضي الله عنه بنه طعن اوتشنيع (ردې بدې) کړې دی اودعوی ئې کړې ده چې دراصل خليفه بلافصل کيدواستحقاق دحضرت علي رضي الله عنه وو، هغوی هم دۀ لره ليکل غوستل، ليکن حضرت عمر رضي الله عنه هغوی ﷺ لره (معاذالله) ددې نه ايسارکړل ـ
په دې سلسله کښې ضرورت ددې خبرې دې چې داثابت کړې شي چې هم حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه احق بالخلافت وو اوحضوراکرم ﷺ ددې برعکس د حضرت علي رضي الله عنه دخلافت متعلق څه تحرير ليکل نه غوستل ـ
**استحقاق خلاف سيدنا حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه**: مونږ په لاندې راتلونکې بحث کښې

---

(١) اوګورئ فضل الباری (ج۲ص۱۲۵_۱۴۹)_
(٢) اوګورئ صحيح البخاری (ج۱ص۴۲۹) کتاب الجهاد والسير، باب هل يستشفع الی اهل الذمة ومعاملتهم، رقم (۳۰۵۳)_
(٣) حواله بالا_
(٤) قال الداودی : وجزم به ابن التين _ انظرفتح الباری (ج۸ص۱۳۵)، کتاب المغازی، باب مرض النبی صلی الله عليه وسلم ووفاته _
(٥) قاله المهلب، وقواه ابن بطال، انظرشرح صحيح البخاری لابن بطال (ج۵ص۲۱۵) کتاب الجهاد، باب جوائز الوفود _
(٦) قاله الحافظ احتمالا_ فتح الباری (ج۸ص۳۵)_
(٧) حواله بالا_
(٨) قاله عياض،فتح الباری (ج۸ص۱۳۵)_

دحضرت صديق رضي الله عنه داستحقاق خلافت متعلق روايات ذكركوو:۔

① ۔ دحضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دې:

,, قال لي رسول الله صلى الله عليه وسلم في مرضه : ادعي لي ابا بكر اباك واخاك، حتى اكتب كتابا، فاني اخاف ان يتمنى متمن، ويقول قائل : انا اولى، ويابى الله والمؤمنون الا ابابكر،، (1)

يعني ,, حضوراكرم صلى الله عليه وسلم په خپل مرض الوفات كښې ماته اوفرمائيل.زما دپاره خپل والد ابوبكر اوخپل رور راوغواړه،دې دپاره چې زۀ تحرير اوليكم.ځكه چې ماته ددې خبرې انديښنه دې چې څوک تمناكونكې تمنااوكړي اوڅوک وايونكې داسې ويناوكړي چې زۀ دخلافت زيات حقداريم، اوالله تعالى ته او اهل ايمان ته دابوبكر نه سوابل څوک منظور نه دې،،۔

په دې ورايت كښې دحضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه داحقيت بالخلافت بداهتا ثابت كيږي۔

② ۔ دحضرت عائشه رضي الله عنها په روايت كښې دى:

,,......لقد هممت _ او اردت _ ان ارسل الى ابي بكر وابنه، واعهد، ان يقول القائلون، او يتمنى المتمنون، ثم قلت : يابى الله ويدفع المؤمنون، او يدفع الله ويابى المؤمنون،،۔ (2)

يعني ,, زما اراده اوشوه چې زۀ ابوبكراودهغه ځوئې راوبلم اووصيت اوكړم،ددې ويرې نه چې څوک وينونكې وينا اونه كړي اوڅوک تمناكونكې تمنا اونه كړي چې خلافت هغه ته ملاؤ ديدل پكاردى،بيامې سوچ اوكړو چې الله تعالى او اهل ايمان به په خپله باندې دې لره رد كړي،،۔

③ ۔ دحضرت على رضي الله عنه نه مرفوع روايت دې : ,, سمعت اذناى ووعاه قلبى من رسول الله صلى الله عليه وسلم : الناس تبع لقريش، صالحهم تبع لصالحهم، وشرارهم تبع لشرارهم،، ۔ (3)

يعني ,, خلق په هرصورت كښې دقريشوتابع دى، ددوى نيک خلق دنيكوخلق تابع دى اودوى بدخلق دبدوخلقو تابع،،۔

④ ۔ دحضرت على رضي الله عنه نه مرفوعا مروى دى : ,, ابوبكر وعمر سيدا كهول اهل الجنة من الاولين والآخرين، ماخلا النبيين والمرسلين، لاتخبرهما يا على،، ۔ (4)

يعني ,, ابوبكر اوعمردجنت دزيات عمرد(مشرانو) خلقو سرداران به وى،سوا دانبياؤ او د رسولانو نه، ليكن اې على ! هغوى ته مه وايه،،۔

⑤ ۔ دحضرت على رضي الله عنه نه مرفوعا روايت دې:

---

(1) صحيح مسلم،كتاب الفضائل،باب من فضائل ابى بكر الصديق رضى الله عنه. رقم (۶۱۸۱)۔

(2) صحيح البخارى (ج۲ص۸۴۶)،كتاب المرضى، باب قول المريض : انى وجع. اووارأساه ! اواشتدبى الوجع. رقم (۵۶۶۶). و(ج۲ص۱۰۷۲) كتاب الاحكام،باب الاستخلاف. رقم (۷۲۱۷)۔

(3) مسند احمد (ج۱ص۱۰۱) رقم (۷۹۰) من مسند على بن ابى طالب رضى الله عنه ۔

(4) جامع الترمذى،كتاب المناقب. باب مناقب ابى بكرالصديق رضى الله عنه. رقم (۳۶۶۶) ۔

.. رحم الله ابا بكر زوجنی ابنته، وحملنی الی دار الهجرة، واعتق بلالا من ماله، رحم الله عمر، يقول الحق وان كان مرا، وماله صديق، رحم الله عثمان تستحييه الملائكة، رحم الله عليا، اللهم ادر الحق معه حيث دار،،[1]

يعني .. الله تعالی دې په ابوبکر باندې رحم اوکړی. هغه خپله لورماته په نکاح راکړه. زهٔ ئې تردارهجرت پورې رواستم اودخپل مال نه ئې حضرت بلال آزاد کړو. الله تعالی دې په عمر باندې رحم اوکړی حق وینا کوی اګرچه ترخه وی. حقه وینا هغه دې ځائې ته را اورسلو چې څوک دوست ئې نشته دې. الله تعالی دې په عثمان باندې رحم اوکړی چې دهغه نه فرښتې هم حیا کوی. الله تعالی دې په علی باندې رحم اوکړی. اے الله ! حق هغه طرف ته کړې کوم طرف ته چې دعلی مخ وی..

د دې نه دخلفاء په ترتیب باندې ښکاره تعریض کیږی ـ

⑨- حضرت عبدالله بن عمر اوحضرت ابوهریره رضی الله عنهما نه .. حدیث قلیب،، مروی دې، حضور اکرم ﷺ فرمائی

.. رايت الناس مجتمعين فی صعيد، فقام ابوبكر فنزع ذنوبا او ذنوبين، وفی بعض نزعه ضعف، والله يغفرله، ثم اخذها عمر، فاستحالت بيده غربا، فلم ار عبقريا فی الناس ضعف، والله يغفرله، ثم اخذها عمر، فاستحالت بيده غربا، فلم ار عبقريا فی الناس يفری فريه، حتی ضرب الناس بعطن،، ـ[2] (اللفظ لحديث ابن عمر)

يعني .. حضوراکرم ﷺ فرمائی چې ما (په خوب کښې) اولیدل چې خلق په یوځائې کښې ولاړ دی، حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه پاسېدواوهغوی یودوه ډوله اوبهٔ راخکلې، په دغه راخکلوکښې څه کمزروی وه (په دې کښې دې خبرې طرف ته اشاره وه چې دحضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه په دورخلافت کښې چونکه دمانعین زکوة فتنه پیداشوې وه اوبل طرف ته څه دمدعیانو دنبوت شور اوزور وو، ځکه هغه دفتنوپه ختمولوکښې مصروف شوې وو. ددې وجې نه هغوی داسلام داشاعت اوتبلیغ هغه کارنامه انجام نه کړه کومه چې دحالاتو سازګار کیدو نه پس حضرت عمر رضی الله عنه انجام کړه) الله تعالی دې دهغوی کمزوری معاف کړی،،ـ

ددې نه پس حضرت عمر رضی الله عنه هغه ډول سنبهال کړو، دهغوی په لاس کښې راتلوسره هغه ډول چرس (دڅرمنې لوئ ډول) جوړشو. ماڅوک قوی اومضبوط سړې دحضرت عمرپشان ډول راخکونکې اونه لیدلو. تردې پورې چې خلقوهلته دخپلواوښانو باړې جوړې کړې، (هلته ئې مستقل قیام شروع کړو. ددې وجې نه چې دحضرت عمر دکارکردګۍ نه هغوی ته راحت اواطمینان زیات حاصل شی اوهغوی داسلام په اشاعت کښې لوئیه برخه واغستله ـ)

ددې حدیث نه په واضحه توګه باندې اشاره ملاویږی چې حضور اکرم ﷺ نه پس حضرت

[1]) جامع الترمذی، کتاب المناقب، باب مناقب علی بن ابی طالب رضی الله عنه، رقم (۳۷۱۴)ـ

[2]) صحیح البخاری (ج۱ص۵۱۳) کتاب المناقب، باب علامات النبوة فی الاسلام، رقم (۳۶۳۳)، و (ج۱ص۵۱۷) کتاب فضائل اصحاب النبی صلی الله علیه وسلم، باب (بدون ترجمة، بعد باب قول النبی صلی الله علیه وسلم : لوکنت متخذا خلیلا ......)، رقم (۳۶۶۴)، وصحیح مسلم، کتاب فضائل الصحابة، باب من فضائل عمر رضی الله عنه، رقم (۶۱۹۲ـ ۶۱۹۷)ـ

ابوبکرصدیق رضی الله عنه اودهغه نه پس به حضرت عمر رضی الله عنه خلیفه وی.ځکه چې دانبیاء کراموخوبونه هم وحی وی ـ

⑦ـ دحضرت عبدالله بن عمر نه مروی په یوحدیث کښې حضوراکرم صلی الله علیه وسلم دخلفاء اربعه تذکره دهغوی دبعضې مناقبوسره اوکړه، داتذکره هم علی ترتیب الخلافت شوې دې .. اراف امتی

بامتی ابوبکر، واشدهم فی الاسلام عمر، واصدقهم حیاء عثمان، واقضاهم علی، . ـ (١)

یعنی .. زما په امت کښې په دې امت باندې دټولونه زیات شفیق ابوبکر دې.داسلام په باره کښې دټولونه سخت عمر دې، دټولونه رشتونې حیا والا عثمان دې اوپه عدل اوانصاف کښې دټولونه زیات علی دې، ،

⑧ـ هم دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه یوروایت مروی دې. دکوم داشارې نه چې د شیخینو ترتیب معلومیږی :

,,قال رسول الله صلی علیه وسلم : انا اول من تنشق عنه الارض، ثم ابوبکر، ثم عمر........ ـ (٢)

یعنی ,, دټولونه وړاندې به زما قبرشق کیږی. بیا دابوبکر بیا . دعمر. ،ـ

⑨ـ دحضرت علی رضی الله عنه نه مرفوعا مروی دی :

,,قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لابی بکر: یا ابابکر، ان الله اعطانی ثواب من آمن بی منذ خلق آدم الی ان بعثنی، وان تعالی اعطاك یا ابابکر ثواب من آمن بی منذ بعثنی الی یوم القیامة، . ـ (٣)

یعنی ,, اے ابوبکر! الله تعالی مالره دحضرت آدم دپیدائش نه زمادبعثت پورې څومره خلقوچې ایمان راوړو دټولوثواب عطاکړو اوتالره زما دبعثت نه ترقیامته پورې چې څومره خلق ایمان راوړی دهغه ټولو خلقو ثواب عطاکړو ـ

⑩ـ دحضرت عائشه رضی الله عنها نه مرفوع روایت منقول دې :

,,قال رسول الله صلی الله علیه وسلم : لاینبغی لقوم فیهم ابوبکر ان یؤمهم غیره، ، ـ (٤)

یعنی ,, په کوم قوم اوجماعت کښې چې ابوبکر وی نوبل چالره امامت نه دې کول پکار، ، ـ

⑪ـ دحضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه نه مروی دی :

,,قال رسول الله صلی علیه وسلم : ان اهل الدرجات العلی یراهم من اسفل منهم کما یری الکواکب الطالع فی الافق من آفاق السماء، وان ابابکر وعمر منهم وانعما، ، ـ (٥)

---

(١) رواه ابو یعلی فی مسنده.انظر المطالب العالیة بزوائد المسانید الثمانیة (ج ٤ ص٨٥) باب ماشترک فیه جماعة من الصحابة، رقم (٤٠٣١) ـ

(٢) جامع الترمذی، ابواب المناقب، باب بلاترجمة، تحت مناقب عمربن الخطاب رضی الله عنه، رقم(٣٦٩٢) .

(٣) کنزالعمال (ج ١١ ص٥٥٩)،کتاب الفضائل، الباب الثالث فی ذکر الصحابة وفضلهم،رقم (٣٢٦٤٢)ـ

(٤) جامع الترمذی، ابواب المناقب، باب مناقب ابی بکرصّدیق رضی الله عنه، رقم(٣٦٧٣) ـ

(٥) سنن ابن ماجه، المقدمة، فضل ابی بکرصدیق رض الله عنه،رقم (٩٦)و جامع الترمذی، ابواب المناقب، باب مناقب ابی بکرصدیق رضی الله عنه، رقم(٣٦٥٨) ـ

یعنی ,, بلند درجاتو والا حضراتو لره به ښکته والا داسې ګوری څنګه چې د آسمان په افق باندې راختونکې ستورې ښکاره کیږی او ابوبکر او عمرهم په هغې کښې دی اودوی ته به مزید ډیر څه ملاؤیږی، ،۔

⑫۔ حضرت انس رضی الله عنه د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کوی، کوم چې ئې حضرت علی ته خطاب کولوسره فرمائیلې وو:

,, هذان سیدا کهول اهل الجنة من الاولین والاخرین، الا النبیین والمرسلین، لاتخبرهما یاعلی، ،۔ (۱)

⑬۔ د حضرت حذیفه رضی الله عنه نه روایت دې:

,, قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: اقتدوا بالذین من بعدی: ابی بکر وعمر، ،۔ (۲)

یعنی ,, زما نه پس چې کوم دوه کسان دی، یعنی ابوبکر او عمر، ددوی اقتدا اوکړئ، ،۔

⑭۔ د حضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنه نه روایت دې:

,, ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال: اری اللیلة رجل صالح، ان ابابکر نیط برسول الله صلی الله علیه وسلم، ونیط عمر بابی بکر، ونیط عثمان بعمر، قال جابر: فلما قمنا من عند رسول الله علیه وسلم: قلنا: اما الرجل الصالح فرسول الله صلی الله علیه وسلم، واما ذکر رسول الله صلی الله علیه وسلم من نوط بعضهم ببعض، فهم ولاة هذا الامر الذی بعث الله به نبیه صلی الله علیه وسلم، ،۔ (۳)

یعنی ,, مانن شپه یونیک سړې خوب کښې اولیدو چې ابوبکر د حضور صلی الله علیه وسلم سره لګیدلې دې او حضرت عمر د ابوبکر سره، او عثمان عمر سره۔ حضرت جابر رضی الله عنه فرمائی چې کله مونږ د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم نه پاسیدو نو مونږ داتعبیر اوکړو چې دانیک سړې خو یه خپله رسول الله صلی الله علیه وسلم دې، باقی حضور اکرم صلی الله علیه وسلم، دیوبل سره د معلق کیدو چې کوم ذکر اوکړونو دا ددین او د خلافت د زمه دارو تذکره ده، د څه د پاره چې حضوراکرم صلی الله علیه وسلم مبعوث شوې دې، ،۔

ددې روایت نه نه صرف دا معلومه شوه چې حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه احق بالخلافت دې، بلکه دا هم معلومه شوه چې دهغه نه پس به حضرت عمر رضی الله عنه خلیفه وی او دهغه نه پس به حضرت عثمان رضی الله عنه خلیفه وی۔

⑮۔ د حضرت جبیر بن مطعم رضی الله عنه نه روایت دې:

,, اتت امراة النبی صلی الله وسلم، فامرها ان ترجع الیه، قالت: ارایت ان جئت ولم اجدك؟ کانها تقول: الموت، قال علیه الصلاة والسلام: ان لم تجدینی فاتی ابابکر، ،۔ (۴)

---

(۱) جامع الترمذی، ابواب المناقب، باب مناقب ابی بکرصدیق رضی الله عنه، رقم (۳۶۶۴) ۔

(۲) جامع الترمذی، ابواب المناقب، باب مناقب ابی بکرصدیق رضی الله عنه، رقم (۳۶۶۲ و ۳۶۶۳) ۔

(۳) مسند احمد (ج۳ص۲۵۵)، مسندجابربن عبدالله رضی الله عنه،رقم (۱۴۸۸۱)،والمستدرک للحاکم (ج۳ص۷۱)، کتاب معرفة الصحابة، فضائل ابی بکرالصدیق رض الله عنه ۔

(۴) صحیح البخاری (ج۱ص۵۱۶) کتاب فضائل اصحاب النبی صلی الله علیه وسلم، باب (بدون ترجمة، بعد باب قول النبی صلی الله علیه وسلم، لوکنت متخذا خلیلا)، ... [بقیه حاشیه په راروانه صفحه۔

يعني ,, يوه ښځه حضوراكرم ﷺ ته راغلله. هغوی ﷺ هغې ته ددوباره راتلو حکم اوکړو. هغې عرض اوکړوچې که چرې زۀ راشمه اوتاسونه اونه مومه ګويا چې هغې دنبی ﷺ وصال طرف ته اشاره کوله. نوهغوی ﷺ ارشاداوفرمانيلوکه زۀ نه ووم نوتۀ ابوبکرته ورشه..

ددې روايت نه دحضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه خلافت باندې په واضحه توګه دلالت کيږی.

⑯۔ دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه مروی دی:

,, كنا نخير بين الناس فی زمن النبی صلی الله عليه وسلم، فنخير ابابكر، ثم عمرابن الخطاب، ثم عثمان بن عفان رضی الله عنهم،،۔ (۱)

يعني ,,مونږ دحضور اكرم ﷺ په زمانه كښې بعضې حضراتوته په بعضې باندې فضيلت وركولو، نومونږ به دټولونه رومبې افضل ابوبكرلره، بيا عمربن خطاب لره اوبيا عثمان بن عفان رضی الله عنهم لره ګرځولو،،۔

دغه شان ددې حديث ديو بل طريق الفاظ دی: ,, كنا فی زمن النبی صلی الله عليه وسلم لانعدل بابی بكر احدا، ثم عمر، ثم عثمان، ثم نترك اصحاب النبی صلی الله عليه وسلم لانفاضل بينهم،،۔ (۲)

يعني ,, مونږبه دحضور ﷺ په زمانه كښې هيڅ څوک دحضرت ابوبكرسره نه برابرول. بيا دعمر درجه وه بيا دعثمان، بيا دنوروحضراتو صحابه په مينځ كښې به مو مفاضلت معامله نه كوله،،۔

دا روايت هم ددې حضراتو دترتيب افضليت اوبيا ترتيب احقيت بالخلافت باندې صريح ګويا دې.

⑰۔ حضرت عمر رضی الله عنه فرمائی: ,, ابوبكر سيدنا وخيرنا واحبنا الی رسول الله صلی الله عليه وسلم،،۔ (۳)

يعني ,, ابوبكرزمونږ سردار، په مونږ ټولوكښې دټولونه افضل او حضوراكرم ﷺ ته دټولونه محبوب وو،،۔

⑱۔ دحضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه نه روايت دې: ,, مرض النبی صلی الله عليه وسلم، فاشتد مرضه، فقال: مروا ابابكر فليصل بالناس، قالت عائشه: انه رجل رقيق، اذا قام مقامك لم يستطع ان

---

بقيه حاشيه د تيرمخ] رقم (۳۶۵۹)،و(ج۲ص۱۰۷۲) كتاب الحكام،باب الاستخلاف،رقم (۷۲۲۰)،و (ج۲ص۱۰۹٤) كتاب الاعتصام بالكتاب والسنة،باب الاحكام التی تعرف بالدلائل وكيف معنی الدلالة وتفسيرها؟، رقم (۷۳۶۰)،وصحيح مسلم،كتاب فضائل الصحابة،باب من فضائل ابی بكرالصديق رضی الله عنه،رقم (۶۱۷۹و ۶۱۸۰)۔

(۱) صحيح البخاری (ج۱ص۵۱۶) كتاب فضائل اصحاب النبی صلی الله عليه وسلم، باب فضل ابی بكربعد النبی صلی الله عليه وسلم، رقم (۳۶۵۵)۔

(۲) صحيح البخاری (ج۱ص۵۱۶) كتاب فضائل اصحاب النبی صلی الله عليه وسلم، باب مناقب عثمان بن عفان ابی عمروالقريشی رضی الله عنه، رقم (۳۶۹۷)۔

(۳) جامع الترمذی، ابواب المناقب، باب مناقب ابی بكرصديق رضی الله عنه، رقم (۳۶۵۶)۔

يصلى بالناس، قال مروا ابابكر فليصل بالناس، فعادت، فقال : مرى ابابكر فيصل بالناس، فانكن صواحب يوسف، فاتاه الرسول، فصلى بالناس فى حياة النبى صلى الله عليه وسلم،،۔(۱)

يعني .. دحضوراكرم ﷺ په مرض كښې چې كله شدت پيدا شو نوهغوى اوفرمائيل چې ابوبكرته اوائي چې هغه مونځ وركړي. حضرت عائشه عرض اوكړو چې هغه نرم دل سړې دې، ستاسو په ځائي باندې چې اوردیدريږي نو مونځ به اونه كړې شي. نوهغوى اوفرمائيل چې اوبوبكر ته اوائي چې مونځ وركړي حضرت عائشه بياځپله خبره دوباره كړه. هغوى اوفرمائيل چې ابوبكرته اوائې چې مونځ وركړي اوتاسو د يوسف عليه السلام د ښځو پشان ئې، قاصد ابوبكر ته ورغلواوهغوى دحضوراكرم ﷺ په ژوند كښې خلقوته مونځ وركړو..۔

دا روايت دحضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه نه علاوه دحضرت عائشه (۲) دحضرت عبدالله بن مسعود (۳) دحضرت عبدالله بن عباس (۴) دحضرت عبدالله بن عمر (۵) دحضرت عبدالله بن زمعه (۶) اودحضرت على بن ابى طالب (۷) رضي الله عنهم نه هم مروى دې۔

نوحافظ سيوطى رحمه الله فرمائى چې دا حديث متواتر دې۔(۸)

⑲۔ دحضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه روايت دې :

،، خطب النبى صلى الله عليه وسلم، فقال : ان الله خير عبدا بين الدنيا وبين ما عنده، فاختار ما عند الله، فبكى ابوبكر رضي الله عنه ......قال : يا ابابكر، لاتبك، ان من امن الناس على فى صحبته وماله ابوبكر، ولوكنت متخذا خليلا لاتخذت ابابكر، ولكن اخوة الاسلام ومودته، لايبقين فى المسجد باب الا سد، الاباب ابى بكر،،۔(۹)

يعنى،، حضور ﷺ خطبه وركوله او وې فرمائيل چې الله تعالى يوبنده ته اختيار وركړو چې

---

(۱) صحيح البخارى (ج۱ص۹۳) كتاب الاذان،باب اهل العلم والفضل احق بالامامة. رقم (۶۷۸)،و (ج۱ص۴۷۹) كتاب احاديث الانبياء باب قول الله تعالى (لقد كان فى يوسف واخوته آيات للسائلين)،رقم (۳۳۸۵)، وصحيح مسلم،كتاب الصلاة،باب استخلاف الامام .........،رقم (۹۴۸)_

(۲) صحيح البخارى (ج۱ص۹۳) كتاب الاذان،باب اهل العلم والفضل احق بالامامة. رقم (۶۷۹)_

(۳) التمهيد (ج۲۲ص۱۳۱)_

(۴) مسنداحمد (ج۱ص ۲۳۱و۲۳۲)، رقم (۲۰۵۵)،و(ج۱ص۳۵۶) مسندعبدالله بن عباس،رقم (۳۳۵۵)_

(۵) صحيح البخارى (ج۱ص۹۳) كتاب الاذان،باب اهل العلم والفضل احق بالامامة. رقم (۶۸۲)_

(۶) مسند احمد (ج ٤ص۳۲۲) مسند عبدالله بن زمعة، رقم (۱۹۱۱۳)_

(۷) الاستيعاب بها مش الاصابة (ج۲ص ۲۵۱)، والتمهيد(ج۲۲ص۱۲۹)_

(۸) تاريخ الخلفاء (ص۵۵)،فصل فى الاحاديث والايات المشيرة الى خلافته وكلام الائمة فى ذلك _

(۹) صحيح البخارى (ج۱ص۶۶و۶۷) كتاب الصلاة، باب الخوخة والممرفى المسجد. رقم (۴۶۶)، و(ج۱ص۵۱۶) كتاب فضائل اصحاب النبى صلى الله عليه وسلم. باب قول النبى صلى الله عليه وسلم : سدو ا الابواب الا باب ابى بكر. رقم (۳۶۵٤)،و(ج۱ص۵۵۲) كتاب مناقب الانصار،باب هجرة النبى صلى الله عليه وسلم واصحابه الى المدينة،رقم (۳۹۰٤)، وصحيح مسلم، كتاب فضائل الصحابة،باب من فضائل ابى بكرالصديق رضى الله عنه، رقم (۶۱۷۰و۶۱۷۱)

ياخودنيا كښې پاتې كيدل خوښ كړۀ يا څه چې ماسره دى هغه اختيار كړۀ ـ نوهغه بنده الله تعالى سره چې څه دى هغه ئې اختيار كړۀ، دې اوريدلوسره حضرت ابوبكر په ژړا شو. هغوى اوفرمائيل اے ابوبكر! مه ژاړه! او وې فرمائيل كه چرې ماځوک خليل جوړولو نوابوبكر به مې جوړكړې وو، البته اسلامى اخوت اواسلامى مودت كافى دې. جمات طرف ته دكهولاؤدو هره دروازه دې بنده كړې شى، او' دابوبكر دروازه مستثنى ده...

علامه سيوطى رحمه الله فرمائى چې په دې حديث كښې دحضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه خلافت طرف ته اشاره ده ـ [1]

دلته دا اشكال كيدې شى چې په مسند احمد كښې دحضرت سعدبن ابى وقاص رضي الله عنه حديث دې ,, امر رسول الله صلى الله عليه وسلم بسد الابواب الشارعة فى المسجد وترك باب على،. ـ [2] يعنى .. حضوراكرم ﷺ حكم اوكړو چې دجمات طرف ته كومې دروازې دى هغه دې بندې كړې شى البته دحضرت على دروازه دې پريخودې شى..ـ

ددې يوجواب خودا دې چې په مسند احمد كښې دا روايت دصحيحينودروايت متعارض دې، په كوم كښې چې استثناء صرف دحضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه دپاره شوې ده. بيا دمسنداحمد والا روايت ,, حجاج عن فطر، عن عبدالله بن شريك، عن عبدالله بن الرقيم الكنانى،. په طريق سره مروى دې، داروايت دصحيحينود روايت معارضه نه شى كولې. ځكه چې فطربن خليفه شيعى دې ـ [3] عبدالله بن شريک عامرى هم شيعى دې [4] اوعبدالله بن الرقيم مجهول دې ـ [5]

اوكه صحيح هم وى نوبيا هم وئيلې كيدې شى چې دحضرت على رضي الله عنه په باره كښې هغوى په شروع شروع كښې ارشاد فرمائيلې دې،اودحضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه په باره كښې بالكل په آخره كښې كړې وو ـ والله اعلم ـ

⑳ ـ حضرت ابوعبيده بن الجراح رضي الله عنه ته څه كسان دحضرت ابوبكر صديق دبيعت په وخت كښې راغلل اودهغوى په لاس باندې دبيعت خواهش ئې ظاهركړو، نويه دې باندې هغوى اوفرمائيل : ,, تاتونى وفيكم ثالث ثلاثة، يعنى ابابكر، فقلت لمحمد : من الثالث ثلاثة ؟ قال: قول الله : (ثانى اثنين اذهما فى الغار)،، ـ [6]

---

[1] تاريخ الخلفاء (ص ٥٤)ـ
[2] مسند احمد (ج١ص ١٧٥) مسند ابى اسحاق سعد بن ابى وقاص رضى الله عنه. رقم (١٥١١)ـ
[3] شيعى جلد. انظر الكاشف (ج٢ص١٢٥) رقم (٤٤٩٤) ـ
[4] ذكره ابن حبان فى المجروحين ـ فقال : ,,كان غاليا فى التشيع. يروى عن الاثبات مالايشبه حديث الثقات. فالتنكب عن حديثه اولى من الاحتجاج به. وقد كان مع ذلک مختاريا(اى من اصحاب المختار)،،ـ انظر تعليقات الكمال (ج١٥ص٨٩)ـ
[5] تهذيب الكمال (ج ١٤ص٥٠٥و٥٠٦)ـ
[6] المصنف لابن ابى شيبة (ج٧ص٤٣٣و ٤٣٤) كتاب المغازى باب ماجاء فى خلافة ابى بكررضى الله عنه وسيرته فى الردة. رقم (٣٧٠٤٠)ـ

يعني ,, تاسومالره راروان ئې اوپه تاسوکښې په دريوکښې دريم سړې موجود دې ؟ مراد ابوبکردې، ما دمحمد نه تپوس اوکړو چې دا دريم سړې څوک دې ؟ اوفرمائيل ئې چې دالله تعالى ارشاد دې ,, په دوو کښې دويم، کله چې هغه دواړه په غار کښې وو،،۔

(۲۱)۔ حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائي:

,, اجعلوا امامکم خيرکم، فان رسول الله صلى الله عليه وسلم جعل امامنا خيرنا بعده،،۔ (۱)

يعني ,, خپل امام هغه سړې جوړکړئ کوم چې په تاسوټولوکښې بهتروي. ځکه چې رسول الله ﷺ دخپل خان نه پس زمونږ امام هغه سړې جوړ کړو کوم چې په مونږ ټولوکښې دټولو نه بهتروو،،۔

(۲۲)۔ او حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائي: ,, ماراى المسلمون حسنا فهوعند الله حسن، وما راوا سيئا فهوعند الله سيئ، وقد راى اصحابه جميعا ان يستخلف ابابکر،،۔ (۲)

يعني ,, چې کوم څيزلره مسلمانان بهتر اوګڼړی نوهغه بهتردې اوکوم څيز لره چې مسلمانان بدتراوګڼړی هغه بدتردې اوهغوی رضي الله عنهم ټولوصحابه کراموحضرت ابوبکرلره خليفه جوړلودپاره بهتراوګڼړلو،،

(۲۳)۔ دحضرت علی رضي الله عنه نه دحضرات شيخينو رضي الله عنهما په باره کښې تپوس اوکړې شونوهغه اوفرمائيل:

,, کانا امامی هدی، راشدين مرشدين مصلحين منجحين خرجا من الدنيا خميصين،،۔ (۳)

يعني ,, دا دواړه حضرات دهدايت امامان او رهنماوو، مصلح وو، په مقاصدو دخيرکښې کامياب اوکامران وو، ددنيانه اوګې تږې رخصت شوی وو، يعنی طمع اولالچ يې خپل خان ته نزدې پرې نه خودل،،۔

(۲۴)۔ دحضرت علی رضي الله عنه ارشاد دې:

,, ان الله جعل ابابکر وعمر حجة على من بعدهما من الولاة الى يوم القيامة، فسبقا والله سبقا بعيدا، واتعبا والله من بعدهما اتعابا شديدا .........،،۔ (۴)

يعني ,, الله تعالى ابوبکر اوعمر لره روستوترقيامته پورې خلفاؤ باندې حجت جوړکړو، نوپه خدای قسم ! هغې دواړو ډير وړاندې پورې سبقت اوکړواودخپل مابعد لره ئې ډيرپه سخت تعجب اومشقت کښې واچول،،۔

(۲۵)۔ دحضرت علی رضي الله عنه يو طويل اثردې، په کوم کښې چې هغوی ډيرپه واضحه ټوګه باندې د حضرات شيخينو منقبت بيان فرمائيلوسره دهغوی داحق بالخلافت کيدو ذکر فرمائيلې دې:

(۱) الاستيعاب بهامش الاصابة (ج۲ص۲۵۱). والتمهيد (ج۲۲ص۱۳۱)۔
(۲) المستدرک للحاکم (ج۳ص۷۸). کتاب معرفة الصحابة ۔
(۳) طبقات ابن سعد (ج۳ص۲۱۰)۔
(۴) اسد الغابة (ج۴ص۱۵۷) ترجمة عمر الفاروق رضي الله عنه

"...... فلما حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم الوفاة قال: مروا ابابكران يصلى بالناس، وهويرى مكانى، فصلى بالناس سبعة ايام فى حياة رسول الله صلى الله عليه وسلم، فلما قبض الله نبيه ارتد الناس عن الاسلام، فقالوا: نصلى ولانعطى الزكاة، فرضى اصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم وابى ابوبكر منفردا برايه، فرجح برايه رايهم جميعا، وقال: والله، لومنعونى عقالا مافرض الله ورسوله لجاهدتهم عليه، كما اجاهدهم على الصلاة فاعطى المسلمون البيعة طائعين، فكان اول ماسبق فى ذلك من ولد عبد المطلب انا، فمضى ﷺ وترك الدنيا وهى مقبلة، فخرج منها سليما، فسار فينا بسيرة رسول الله صلى الله عليه وسلم، لاتنكر من امرة شيئا، حتى حضرته الوفاة، فراى عمر اقوى عليها ولوكانت محاباة لاثربها ولده، واستشار المسلمين فى ذلك، فمنهم من رضى ومنهم من كره، وقالوا: اتؤمر علينا من كان عنانا وانت حى؟ فماذا تقول لربك اذا قدمت عليه؟ قال: اقول لربى اذا قدمت عليه: الهى! امرت عليهم خير اهلك، فامرعلينا عمر، فقام فينا بامرصاحبيه، لاتنكر منه شيئا، نعرف فيه الزيادة كل يوم فى الدين والدنيا وفتح الله به الارضين، ومصر به الامصار، لاتاخذه فى الله لومة لائم، البعيد والقريب سواء فى العدل والحق، وضرب الله بالحق على لسانه وقلبه، حتى ان كنالنظن ان السكينة تنطق على لسانه، وان ملكا بين عينيه يسدده ويوفقه ......... الحديث_"[1]

يعني، كله چې دحضور اكرم ﷺ دوصال وخت راغللونوهغوى ارشاد اوفرمانيلوچې ابوبكرته اوائې چې هغه خلقوته مونځ وركړى حالانكه حضوراكرم ﷺ ته زما دموجودگې اودقرب خاص علم وو. نوهغوى دحضوراكرم ﷺ په ژوند كښې اوو ورځوپورې مونځونه اوكړه بيا كله چې الله تعالى خپل نبى خپل خان ته اوبللو نوځه خلق مرتد شول، اووئيل به نې چې مونږبه مونځونه كووخوزكوة به نه وركوو، ټول صحابه كرام راضى شو، ليكن ابوبكر يواځې په خپله راې باندې كلك ولاړ وو، بلكه دنورو دراې په مقابله كښې ئې خپله راې برترثابته كړه او اوفرمانيل ئې: په الله قسم! كه چرې داخلق ماته ديورسې راكولونه هم انكار اوكړى كومه چې الله اورسول په هغوى باندې لازمه كړى وى نوزۀ به دهغې په وجه باندې هغوى سره جهاد كومه، څنگه چې دمونځ دپاره جهاد لازم وى _ نوټولو مسلمانانو دهغوى په لاس باندې په خوشحالې سره بيعت اوكړو. په دې سلسله كښې زۀ دعبدالمطلب په اولاد كښې دټولونه رومبې يم، ابوبكر_ دالله تعالى رحمتونه دى په هغه باندې دې نازل وى _ لاړو اودنيا ئې په دې حالت كښې پريخودله چې دنيا دهغوى طرف ته رورانډې كيدله، ليكن هغوى ددنيا نه خپل خان بچ كړو اولاړه.په مونږ كښې هغه دحضوراكرم ﷺ په سيرت اوطريقه مطابق روان وو. نومونږ دهغوى يوه معامله لره كوته اونه موندله. تردې پورې چې دهغوى دوفات وخت راغللو، هغوى اوكتل چې دخلافت دپاره عمرډير مضبوط دې كه صرف دپرزونې اراده ئې وه نو خپل اولاد كښې به ئې چاله ترجيح وركړې وه خو هغوى مسلمانانو سره مشوره اوكړه بعضې راضى شول او بعضې خپل خفگان ښكاره كړو او وئې

[1] اسد الغابة (ج ٤ص ١٥٦و١٥٧)_

ونيل چې تاسو په مونږ باندې يو داسې سړې امير جوړ ول غواړئ چې ستاسو په ژوند كښې
ني تاسو د خپلې رائې نه اړولې، الله ته په مخامخ كيدو سره به څه جواب وركوې؟ هغوى ورته
اوفرمائيل چې څه به عرض اوكړم چې اې الله!ما په مسلمانانو باندې ستا په بندګانو كښې د
ټولو نه بهتر كس مقرر كړې دې. دغه شان هغوى په مونږ باندې حضرت عمر ﷺ امير جوړ
كړو هغوى د مخكښې دواړو ملګرو په شان په مونږ باندې حكومت اوكړو.يو خبره قابل د
اعتراض نه وه.روزانه به دينې او دنياوى ترقى شروع وه الله تعالى د هغه په لاسونو باندې
ملكونه فتح كړل ښارونه ني آباد كړل. هغوى ته به د چا د ملامتګر د ملامتيا ويره نه وه.
عدل و انصاف كښې به لرې او نزدې يو شان وو. الله تعالى د هغوى په زړه او ژبه باندې حق
وراچولې وو تردې چې مونږ ته به پته اولګيده چې سكينت او وقار د هغوى د ژبې تابع دې او
دا چې يو فرښته د هغوى مخكښې وى چې هغوى ته نيعه لار وربنائى.

(۲۶) دحضرت على ﷺ ارشاد دې: ان اول من يدخل الجنة من هذه الامة ابوبكر وعمر،قال:فقال
رجل:يا امير المومنين،يدخلانها قبلك؟قال:والذى فلق الحبة وبرا النسمة ليدخلانها قبلى ويشبعان من
ثمارها، وليرويان من مائها وانى لموقوف مع معاوية فى الحساب.[1]
يعنى په دې امت كښې د ټولو نه مخكښې جنت ته داخليدو والا ابوبكر او عمر ﷺ به وى يو
كس عرض اوكړو اې امير المومنين: آيا هغوى دواړه به ستاسو نه هم مخكښې داخليږى؟
وئې فرمائيل:او!د هغه ذات قسم چاچې دانه اوشلوله او زنده سر ني پيدا كړل،هغوى دواړه
به څما نه مخكښې جنت ته داخليږى د هغه ځائى د ميوو نه به مړيږى او د اوبو نه به تنده
ختمووى. او څه به اميرمعاويه سره به په حساب كتاب كښې ولاړ يم.

(۲۷) د حضرت على ﷺ ارشاد دې:
سبق رسول الله ﷺ وصلى ابوبكر وثلث عمرثم خبطتنا او اصابتنا فتنة فما شاء الله عزوجل.[2]
يعنى حضورپاك ﷺ د ټولو نه اول دويم نمبر ابوبكر ﷺ او دريم نمبر حضرت عمر ﷺ وو، او
بيا دې نه پس مونږ فتنو او نيولو.

(۲۸) عن ابى الزناد قال: قال رجل لعلى: يا امير المومنين ما بال المهاجرين والانصار قدموا ابابكر وانت اولى
منه منقبة واقدم منه سلما و اسبق سابقة؟قال: ان كنت قرشيا فحسبك من عائذة قال: نعم قال لولا ان
المومن عائذ الله لقتلتك ولئن بقيت لتاتينك منى روعة حصرا ويحك! ان ابابكر سبقنى الى اربع سبقنى الى
الامامة، وتقديم الامامة و تقديم الهجرة والى الغار وافشاء الاسلام ويحك ان الله ذم الناس كلهم و مدح
ابابكر فقال: الا تنصروه فقد نصره الله.[3]

---

[1] كتاب الكنى والاسماء للدولابى(۱/۱۱۹و ۱۲۰)-
[2] مسند احمد (۱/ ۱۲٤)رقم (۱۰۲۰) و(۱/ ۱٤۷) رقم (۱۲۵۶) و(۱۲۵۹)-
[3] كنزالاعمال (۱۲ ۵۱٤) رقم (۳۵۶۷۶)-

یعني: یو کس د حضرت علي رضي الله عنه نه تپوس اوکړو چې دا څه خبره ده چې انصارو او مهاجرینو ابوبکر رضي الله عنه مخکښې کړو حالانکه تاسو د هغوی په مقابله کښې د اوچتو مناقبو جوګه، په اسلام راوړلو کښې د هغوی نه مخکښې او په کارنامو کښې د هغوی نه زیات هم یئ؟هغوی ورته اوفرمائیل که ته چرې قریشي ئې نو ستا تعلق به عائذه سره وی. هغه عرض اوکړو چې او. ونې فرمائیل که چرې ایمان والا د الله پناه نه وه اخستې نو ما به ته قتل کړې وې او که ته ژوندې پاتې شوې نو خما طرف نه به په تا باندې د سختې ویرې معامله رازی. هلاک شي ابوبکر رضي الله عنه خما نه څلور ځیزونو کښې مخکښې دې امامت کښې.هجرت کښې. په غار کښې پاتې کیدو د وجه او د اسلام په خورولو کښې. او هلاک شي الله تعالی د ټولو خلقو مذمت بیان کړې دې او د ابوبکر رضي الله عنه ئې تعریف کړې دې او ونې فرمائیل که چرې ته د ابوبکر مدد نه کوې نو الله تعالی د هغوی مددګار دی.

(۲۹) صلة بن زفر رحمه الله فرمائی: کان علي اذا ذکر عنده ابوبکر قال: السباق یذکرون! السباق یذکرون! والذی نفسي بیده ما استبقنا الی خیر قط الا سبقنا الیه ابوبکر.(۱)

یعني: هر کله چې به د حضرت علي رضي الله عنه په وړاندې د حضرت ابوبکر رضي الله عنه ذکر کیدلې شو نو وئیل به ئې چې د ټولو نه مخکښې تللو والا ذکر شروع دې.په هغه ذات مې دې قسم وی چې د چا په قبضه کښې خما ساه ده چې هر کله به یو نیک کار کښې خمونږ مقابله کیدله نو ابوبکر رضي الله عنه به همیشه خمونږ نه مخکښې والې کولو.

(۳۰) حضرت علي رضي الله عنه ارشاد فرمائی:

لقد امرنا النبی صلی الله علیه وسلم ابابکر ان یصلی بالناس وانی لشاهد وما انا بغائب وما بی مرض فرضینا لدنیانا ما رضی به النبی صلی الله علیه وسلم لدیننا.(۲)

یعني حضور پاک صلی الله علیه وسلم چې کله خلقو ته د جمع ورکولو حکم ابوبکر صدیق ته اوکړو نو زه هم هلته کښې حاضر ووم غائب نه ووم، زه بیمار هم نه ووم، هغوی چې زمونږ دین د پاره کوم کس مقرر کړو هغه مونږ د خپلې دنیا د پاره هم خوښ کړو.

(۳۱) د حضرت علي رضي الله عنه نه منقول دی. ان اکرم الخلق من هذه الامة علی الله بعد نبیها وارفعهم درجة: ابوبکر، لجمعه القران بعد رسول الله صلی الله علیه وسلم وقیامه بدین الله مع قدیم سوابقه وفضائله.(۳)

یعني: د الله تعالی په نیز باندې د حضور پاک صلی الله علیه وسلم نه پس ددې امت د ټولو نه عزتمند ترین سړې او د درجه په اعتبار سره د ټولو نه اوچت ابوبکر صدیق رضي الله عنه دې ځکه چې هغوی د حضور پاک صلی الله علیه وسلم نه پس قران جمع کړو.د الله د دین حفاظت ئې اوکړو او ددې نه علاوه نور فضائل او کارنامې ئې هم دی.

(۱) کنزالاعمال (۱۲/۵۱٤) رقم (۳۵۶۷۵)-
(۲) کنزالعمال (۱۲۵۱۳) رقم (۳۵۶۷۰) وانظر الطبقات الابن سعد(۳/۸۳)-
(۳) کنزالاعمال (۱۲/۵۱۶) رقم (۳۵۶۸۳)-

(۳) حضرت اسید بن صفوان رضی الله عنه فرمائی: "لما توفی ابوبکر سجوہ ثوبا، وارتجت المدینة بالبکاء ودهش الناس کیوم قبض رسول الله ﷺ جاء علی بن ابی طالب مسرعا باکیا مسترجعا وهو یقول الیوم انقطعت خلافة النبوة حتی وقف علی باب البیت الذی فیه ابوبکر، ثم قال: رحمك الله ابابکر، کنت اول القوم اسلاما واخلصهم ایمانا واکثرهم یقینا واعظمهم غنی واحدبهم علی الاسلام، واحوطهم علی رسول الله ﷺ وامنهم علی الصحابة احسنهم صحبة واعظمهم مناقب واکثرهم سوابق وارفعهم درجة اقربهم من رسول الله ﷺ اشبههم به هدیا وسمتا وخلقا ودلا واشرفهم منزلة واکرمهم علیه واوثقهم عنده" (۱)

یعنی هر کله چې ابوبکرصدیق رضی الله عنه وفات شو نو هغه باندې یو کپړا واچولې شوه، په مدینه کښې غوغا شوه په خلقو داسې حالت جوړ شو څنګه چې د حضورپاک ﷺ د وفات په موقع باندې وو په دغه وخت کښې حضرت علی رضی الله عنه په تیزئی سره انا لله وئیلو سره او په ژړا رالو او دا به ئې وئیل چې نن نبوت والا خلافت ختم شو تردې چې د کور دروازې سره اودریدو او وئې فرمائیل: الله دې په تا باندې اې ابوبکر رحمتونه نازل کړی تاسو د ټولو نه مخکښې اسلام راوړلو والا، په ایمان کښې د ټولو نه مخلص، په یقین کښې د ټولو نه زیات، په استغناء کښې د ټولو نه اوچت، د اسلام د پاره د ټولو نه زیات مهربانه، د رسول الله ﷺ د پاره د ټولو نه زیات محافظ، تاسو په صحابه باندې د ټولو نه زیات احسان کولو والا، د ملګیرتیا په اعتبار سره د ټولو نه اعلی، د مناقب په اعتبار سره اوچت، په فضائل کښې د ټولو نه زیات، په درجه کښې اوچت، حضورپاک ﷺ ته د ټولو نه نیزدې، طریقه کار، اخلاق او عادت په اعتبار سره تاسو د هغوی مشابه، په درجه کښې د ټولو نه اشرف او د حضورپاک ﷺ په نیز د ټولو نه عزتمند او اعتباری وې.

(۳) عن عبد خیر قال: سمعته یقول: قام علی رضی الله عنه المنبر فذکر رسول الله فقال: قبض رسول الله واستخلف ابوبکر رضی الله عنه فعمل بعمله وسار بسیرته حتی قبضه الله عزوجل علی ذالك ثم استخلف عمر فعمل بعملهما وسار بسیرتهما حتی قبضه الله علی ذالك" (۲)

یعنی حضرت علی رضی الله عنه په منبر باندې تشریف فرما شو او د حضورپاک ﷺ ذکر ئې اوکړو، وئې فرمائیل چې د حضورپاک ﷺ وفات اوشو نو ابوبکر صدیق رضی الله عنه خلیفه جوړ شو، هغوی هم د حضورپاک ﷺ په عمل او سیرت باندې روان وو، تر دې چې الله تعالی هغوی خپل خان ته راوغوښتل. بیا حضرت عمر رضی الله عنه خلیفه جوړ شو هغوی هم د مخکښې دواړو په عمل او سیرت باندې عمل ساتلو تر دې چې هغوی هم وفات شول.

(۳) حضرت علی رضی الله عنه د یوم الجمل په موقع باندې ارشاد اوفرمائیلو: "ان رسول الله ﷺ لم یعهد الینا عهدا ناخذ به فی امارة ولکنه شیء رایناه من قبل انفسنا، ثم استخلف ابوبکر، رحمة الله علی ابی بکر،

---

(۱) کنزالاعمال (۵٤۲،٥٤۳/۱۲)-

(۲) مسند احمد (۱۲۸/۱) مسند علی رضی الله عنه رقم (۱۰۵۵) و(۱۰۵۹)-

فأقام واستقام، ثم استخلف عمر، رحمة الله على عمر، فأقام واستقام، حتى ضرب الدين بجرانه"[1]
يعني حضور پاک ﷺ د امارت په سلسله کښې مونږ ته څه حکم نه وو کړې چې مونږ په هغې باندې چليدلې وې البته دا معامله مونږ په خپلې رائې سره حل کړه بيا ابوبکر خليفه شو الله دې په ابوبکر رضي الله عنه رحمت نازل کړي په خپله هم صحيح وو او نور ئې هم صحيح کړل، بيا حضرت عمر رضي الله عنه خليفه شو الله تعالى دې په عمر رضي الله عنه باندې هم رحمت نازل کړي هغوی هم په استقامت باندې روان وو او نور ئې هم روان کړل تر دې چې دين مکمل توګه باندې پوخ شو.

⑮.. محمد بن حنفيه رحمه الله فرمائي: قلت لأبي: أي الناس خير بعد رسول الله ؟ قال أبوبكر: قلت ثم من؟ قال عمر وخشيت أن يقول عثمان قلت: ثم أنت؟ قال: ما أنا إلا رجل من المسلمين"[2]
يعني: ما خپل پلار نه تپوس اوکړو چې د رسول الله ﷺ نه پس څوک د ټولو نه افضل دې؟ وئې فرمائيل: ابوبکر، ما تپوس اوکړو چې بيا څوک؟ وئې فرمائيل: عمر، دې نه پس ماته وېره اوشوه چې د عثمان رضي الله عنه نوم به اخلي څکه ما ترې نه تپوس اوکړو چې بيا تاسو يئ؟ وئې فرمائيل چې څه خو په عام مسلمانو کښې يو مسلمان يم.
په دې روايت کښې حضرت علي رضي الله عنه د شيخينو په ښکاره سره افضليت بيان کړې دې.
حضرت شاه ولي الله رحمه الله فرمائي چې:
"اما بيان افضليت شيخين، پس ازوې متواتر شده مرفوعا وموقوفا،هر چند اين مسئله مذهب جميع اهل حق است اما کسې از صحابه آن را مصرح تر ومحکم تر چون علي مرتضى نياورده"[3]
مطلب دادې چې: د شيخينو افضليت د حضرت علي رضي الله عنه نه متواتر ثابت دې اګرچې د شيخينو افضليت د ټولو اهل حق مذهب دې خو بيا هم په صحابو کښې دا مسئله د حضرت علي رضي الله عنه په شان په وضاحت او مضبوطئ سره چا بيان کړې نه ده.
دغه شان د حضرت علي رضي الله عنه نه دا روايت نقل کوونکو کښې ددوی خوی محمد بن الحنفيه نه علاوه عبدالله بن سلمه[4]، علقمه بن قيس[5]، عبدخير[6]، حضرت ابوجحيفه[7]، النزال بن سبره[8] رحمهم الله وغيره ډير حضرات دی.
⑯.. حضرت علي رضي الله عنه ته چې کله دا معلومه شوه چې بعضې خلق ده لره د شيخينو نه افضل

---

[1]) مسند احمد(١٤/١) مسند علي رضي الله عنه رقم (٩٢١)-
[2]) صحيح البخاري(٥١٨/١) كتاب الفضائل اصحاب النبي ﷺ باب (بدون ترجمة بعد باب قول النبي ﷺ لو كنت متخذا خليلا) رقم (٣٦٧١)_
[3]) ازالة الخفاء عن خلافة الخلفاء مترجم(٢٥٤/١)-
[4]) سنن ابن ماجه المقدمة باب في فضائل اصحاب النبي ﷺ فضل عمر رضي الله عنه رقم(١٠٦)-
[5]) رواه احمد انظر ازالة الخفاء(٢٥٦/١)-
[6]) مسند احمد(١١٣/١) رقم(٩٠٨و٩٠٩)-
[7]) مسند احمد(١٠٦/١) رقم(٨٣٣)-
[8]) الاستيعاب بهامش الاصابة(٢٥٢/٢) ترجمة سيدنا ابي بكر الصديق رضي الله عنه-

ګنړی نو په منبر باندې اودريدو او حمد وثنا نه پس ئې اوفرمائيل.

"ايها الناس انه بلغنى ان قوما يفضلونى على ابوبكر و عمر، ولو كنت تقدمت فيه لعاقبت فيه فمن سمعته بعد هذا اليوم يقول هذا فهو مفتر عليه حد المفترى ثم قال: ان خير هذه الامة بعد نبيها ابوبكر ثم عمر ثم الله تعالى اعلم بالخير بعد قال: وفى المجلس الحسن بن على، فقال: والله، لو سمى الثالث لسمى عثمان." [1]

يعنى اې خلقو ماته دا خبره رارسيدلې ده چې څه خلق ماله په ابوبكر او عمر رضي الله عنهما باندې فضيلت راكوى كه مخكښې نه خما د طرف نه تنبيه شوې وه نو ما به داسې خلقو ته سزا وركړې وه، د نن نه پس چې د چا نه ما دا واوريدل نو پوه دې شى چې دې الزام لګوونكې دې، ده باندې به د الزام لګولو حد لګى، بيا ئې اوفرمائيل چې د نبى نه پس په دې امت كښې د ټولو نه بهترين ابوبكر دې بيا عمر دې دې نه پس د الله په علم كښې ده چې څوك افضل دې په دې مجلس كښې حسن هم وو، وئې فرمائيل كه د دريم نوم ئې اخستلې وې نو د عثمان نوم به ئې اخستلو.

⑭ . عن ابى وائل قال: قيل لعلى بن ابى طالب رضي الله عنه الا تستخلف علينا؟ قال: ما استخلف رسول الله صلى الله عليه وسلم فاستخلف، ولكن ان يرد الله بالناس خيرا فسيجمعهم بعدى على خيرهم كما جمعهم بعد نبيهم على خيرهم [2]

صححه الحاكم وقرره الذهبى)

يعنى حضرت على رضي الله عنه نه تپوس اوكړې شو چې تاسو به څوك زمونږ د پاره خليفه مقرر كړې وو نو وئې فرمائيل چې حضور پاك صلى الله عليه وسلم څوك خوښ كړې نه وو نو بيا زه ولې خوښ كړم البته كه الله تعالى انسانانو سره د خير فيصله كړې وى نو خما نه پس چې څوك بهتر وى الله تعالى به خلقو لره په هغه باندې جمع كړى څنګه چې الله تعالى د خپل نبى صلى الله عليه وسلم نه پس په يو بهترين كس باندې دوى جمع كړې وو.

⑱ . صحيح بخارى كښې د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه د حضرت على او حضرت عباس رضي الله عنهما واقعه منقول ده:

ان على بن ابى طالب خرج من عند رسول الله صلى الله عليه وسلم فى وجعه الذى توفى فيه، فاخذ بيده عباس بن عبد المطلب فقال له: انت والله بعد ثلاث عبد العصا وانى والله لارى رسول الله صلى الله عليه وسلم سوف يتوفى من وجعه هذا انى لاعرف وجوه بنى عبد المطلب عند الموت اذهب بنا الى رسول الله صلى الله عليه وسلم فلنسأله فيمن هذا الامر ان كان فينا علمنا ذالك وان كان فى غيرنا علمناه فاوصى بنا فقال: على: انا والله لئن سألناها رسول الله صلى الله عليه وسلم فمنعناها لا يعطيناها الناس بعده وانى لا اسألها رسول الله صلى الله عليه وسلم." [3]

---

[1]) ازالة الخفاء (۱/۲٦۱ و ۲٦۲)-

[2]) المستدرک للحاكم (۳/۷۹) كتاب معرفة الصحابة باب ابى بكر الصديق رضي الله عنه-

[3]) صحيح البخارى (۲/٦۳۹) كتاب المغازى باب مرض النبى صلى الله عليه وسلم ووفاته رقم (٤٤٤۷) و (۲/۹۲۷) كتاب الاستيذان باب المعانقة وقول الرجل كيف اصبحت؟ رقم (٦۲٦٦)-

یعنی حضرت علی رضی الله عنه د حضورپاک ﷺ نه هغه وخت بهر اووتلو هر کله چې هغوی په مرض الوفات کښې وو، حضرت عباس رضی الله عنه د هغه لاس اونیولو او ورته ئې ووئیل چې په الله قسم! ته به درې ورځې پس د عصا تابع شې ماته یقین دې چې د حضورپاک ﷺ به په دې مرض کښې وفات کیږي ماته د مرګ په وخت د بنوعبدالمطلب د مخونو پیژندل کیدل معلوم دی مونږ خان سره حضورپاک ﷺ ته بوځه چې مونږ ترې تپوس اوکړو چې دا خلافت به چاته میلاویګي؟ که زمونږ طرف ته راتلونکې وی نو پته به اولګی او که خمونږ طرف ته نه وی نو چې چاته میلاویږي چې هغوی ته څه تاکیدی وصیت اوفرمائی حضرت علی رضی الله عنه اوفرمائیل:
په الله قسم که چرې مونږه حضورپاک ﷺ نه خلافت اوغوښتلو او انکار ئې اوکړلو نو بیا دا خلق چرې هم مونږ له به رانکړي، څه به حضور ﷺ نه تپوس نه کوم.

**سقیفه بنوساعده کښې د ابوبکر رضی الله عنه په لاس باندې د خلافت بیعت:** مناسب معلومیږي چې لږ تفصیل سره په سقیفه بنی ساعده کښې د انصارو را جمع کیدل او د حضرات شیخین رضی الله عنهما هلته رسیدلو نه پس د حضرت ابوبکر رضی الله عنه په رشتونی لاس باندې د خلافت د بیعت واقعه ذکر شی چې په هغې سره د استحقاق دخلافت دې بحث کښې کافی وضاحت کیږي.

حضورپاک ﷺ د ګل په ورځ د ماسپښین په وخت د عالم فانی نه عالم جاودانی طرف ته تشریف یوړلو.

د ماښام په وخت یو کس رالو او ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته ئې خبر ورکړو چې انصار سقیفه بنی ساعده کښې جمع شوې دی او د سعد بن عباده رضی الله عنه په لاس باندې بیعت کول غواړی او بعضې انصار دا هم وائی چې یو امیر خمونږ نه او یو د قریشو نه به وی.

د انصارو خیال دا وو چې د خلافت حق غوښتل انصارو ته حاصل دې ځکه چې انصارو د دین مدد اوکړو او حضورپاک ﷺ ئې ځان سره ایسار کړو او بیا دوی سره شول او د الله دشمنانو سره ئې جهاد اوکړو، بعضې په کښې ددې مخالفت هم اوکړو او خپل مینځ کښې په ئې خبرې واړولې.

هر کله چې ددې خبرې اطلاع شیخینو ته اوشوه نو دې دواړو بزرګانو ابوعبیده بن الجراح خان سره کړو اوددې اختلاف د بندولود پاره سقیفه ته روان شول چې الله مه کړه څه فتنه پیدا نشی. کله چې دا دواړه هلته اورسیدل نو حضرت سعد رضی الله عنه اودریدلو او تقریر ئې اوکړلو:

**اما بعد: فنحن الانصار وکتیبة الاسلام وانتم یا معشر قریش، رهط بیننا، وقد دفت الینا دافة من قومکم، فاذا هم یریدون ان یعصبونا الامر.** (۱)

یعنی مونږ انصار د دین اسلام مددګاران یو او د اسلام لښکر یوو او تاسو ای د مهاجرینو ډلې! په مونږ کښې یو وړه ډله یئ (یعنی تاسو لږ یئ او مونږه ډیر یوو) او ستاسو د قوم یو وړې ډلې خمونږ سره پناه اخستې ده او اوس هغوی د خلافت حق خمونږ نه په زور اخستل غواړی.

د یو روایت مطابق حضرت سعد بن عباده رضی الله عنه خپل تقریر کښې اوفرمائیل:

**یا معشر الانصار لکم سابقة فی الدین وفضیلة فی الاسلام، لیست لاحد من العرب، ان محمد ﷺ لبث فی قومه**

(۱) الکامل لابن الاثیر (۲/۲۲۱) حدیث السقیفة وخلافة ابی بکر رضی الله عنه وارضاه)-

بضع عشرة سنة، يدعوهم الى عبادة الرحمن وخلع الانداد والاوثان، فما آمن به الاقليل، ما كانو يقدرون على منعه ولا على اعزاز دينه ولا على دفع ضيم حتى اذا اراد الله بكم الفضيلة ساق اليكم الكرامة، وخصكم بالنعمة، ورزقكم الايمان به وبرسوله، والمنع له ولاصحابه، والاعزاز له ولدينه، والجهاد لاعدائه، فكنتم اشد الناس على عدوه، حتى استقامت العرب لامر الله طوعا وكرها واعطى البعيد المقادة صاغرا، فدانت لرسوله باسيافكم العرب وتوفاه الله وهو عنكم راض، وبكم قرير العين، استبدوا بهذا الامر دون الناس، فانه لكم.[1]

يعنی اې د انصارو خلقو تاسو ته په دين کښې مخکښې والې حاصل دې او اسلام تاسو ته فضيلت درکړو چې عربو کښې چاته هم حاصل نه دې،محمد ﷺ په خپل قوم کښې د لسو کالو نه زيات پاتې شو،هغوی خلقو ته د الله تعالى د عبادت او د بتانو د پرېښودلو دعوت ورکولو،په دوی باندې ايمان راوړلو والا ډير لږ وو،هغوی نه دحضورپاک ﷺ دفاع کولې شوه او نه ئې د دين مدد کولې شو،او نه ئې يو ظلم لرې کولې شو،پس هر کله چې د الله تعالى اراده د هغوی د اوچتولو اوشوه نو دا عزت ئې ستاسو په تقدير کښې واچولو،او دا نعمت ئې تاسو سره خاص کړو،تاسو ئې په الله او رسول ايمان راوړلو والا، د دوی او د اصحابو ئې دفاع کولو والا، د دوی او د دوی د دين مدد کولو والا او دشمنانو سره د جهاد کولو توفيق ئې درکړو تاسو د هغوی په دشمنانو باندې د ټولو نه زيات سخت وئی،تردې چې د ټول عرب، که خوښه ئې وه او که نا، خو د الله تعالى حکم پورا کولو د پاره تيار شول، هغه کس چې تابعدار نه وو هغه هم ذليل او عاجز راغې او تابعدار شو،تردې چې ټول عرب ستاسو د تورې په زور سره د رسول الله ﷺ تابعدار شو،د هغوی وفات په داسې حالت کښې اوشو چې هغوی زمونږ نه خوشحاله وو،خمونږ د وجه د هغوی سترګې يخې وې،لهذا د خلافت دا معامله خپل لاس کښې واخلئ ځکه چې دا ستاسو د پاره دې.

حاضرينو دا تقرير ډير خوښ کړو او هر طرف نه د ستاينې آوازونه اوچت شول،تقرير نه پس په دې مسئله باندې بحث شروع شو او خپل مينځ کښې اووئيل که د قريشو مهاجرينو ددې نه انکار اوکړو او دا ئې اووئيل چې مونږ هجرت کولو والا يوو او اولنی صحابه يوو چې په دوی باندې مو رومبې ايمان راوړو،او هم د هغه د قبيله او ډلې نه يوو،زمونږ حق زيات جوړيږی،نو داسې حالت کښې به څه کوئی؟!

په دې باندې بعضې صحابه کرامو اوفرمائيل چې مونږ به اووايو چې يو امير به زمونږ نه وی او يو امير به ستاسو نه وی،او داوړه اميران به په صلاح اومشوره سره د خلافت کار سر ته رسوی.حضرت سعدبن عباده په اوريدو سره اوفرمائيل چې دا رومبې کمزوری ده.

حضرت عمر رضی الله عنه په دې موقع غوښتل چې څه اووائی او په زړه زړه کښې ئې د ويلو د پاره ډير سوچ کړې وو،خو هر کله چې هغه پاسيدلو والاوو دغه وخت ابوبکر صديق رضی الله عنه پاسيدو او د الله تعالى حمدوثنا نه پس ئې اوفرمائيل:

ان الله قد بعث فينا رسولا الى خلقه وشهيدا على امته ليعبدوه ويوحدوه، وهم يعبدون من دونه آلهة شتى

---

[1]) الكامل لابن الكثير (٢/٢٢٢)-

من حجر وخشب، فعظم على العرب ان يتركوا دين آبائهم، فخص الله المهاجرين الاولين من قومه بتصديقه، والايمان به والمواساة له و الصبر معه على شدة اذى قومهم وتكذيبهم اياه وكل الناس لهم مخالف زار عليهم فلم يستوحشوا القلة عددهم وشنف الناس لهم فهم اول من عبدالله فى هذه الارض وآمن بالله وبالرسول، وهم اولياؤه وعشيرته، واحق الناس بهذا الامر من بعده لا ينازعهم الا ظالم انتم يا معشر الانصار من لا ينكر فضلهم فى الدين ولا سابقتهم فى الاسلام رضيكم الله انصار لدينه، ورسوله وجعل اليكم هجرته، وفيكم جلة ازواجه واصحابه، فليس بعد المهاجرين عندنا بمنزلتكم فنحن الامراء وانتم الوزراء لا تفاوتون بمشورة ولا تقضى دونكم الامور.»[1]

يعنى الله تعالى په مونږ كښې دخپل مخلوق د پاره رسول شهيد او ګواه راوليګو، چې خلق د الله تعالى عبادت اوكړى او د هغه توحيد اختيار كړى، چې په دغه وخت كښې ددوى دا حالت وو چې د مختلف كاڼړو او لرګى جوړ شوې خدايانو عبادت ئې كولو، د عرب خلقو ته د خپل پلار نيكه دين پريښودل ګران شو نو دغه وخت كښې الله تعالى ددوى تصديق د پاره اولنى مهاجرين خوښ كړل چې هغوى په دوى باندې ايمان راوړلو، په غم كښې ورسره شريک شول، ورسره كلک اودريدل چې كوم وخت د خپل قوم نه ورته سخت تكليفونه ورپيښ وو، هغوى دوى نه منلو، هر سړى مخالف وو، خو دا خلق په تعداد كښې د كموالى باوجود په ويره كښې او نه غورزيدل، حالانكه كفار به مسلمانو سره ډير په تكبر سره مخښې ته راتلل، خو هم دغه مسلمانان په دې زمكه باندې د ټولو نه مخكښې د الله تعالى عبادت كولو والا، په هغه باندې او په هغه د رسول باندې ايمان راوړونكې وو، او هم دا د هغه خپلوان او خاندان والا وو. هم دغه حضرات ددوى نه پس د خلافت ډير حقداره دى، او هم دوى سره به مقابله كولو والا ډير ظالم وى، اې د انصارو ډلې ستاسو د لوړ مقام او شرافت، او په دين كښې ستاسو د كارنامو نه انكار نشى كيدلې الله تاسو د خپل دين او د خپل رسول مددګاران جوړ كړئ، ستاسو طرف ته هجرت اوشو، په تاسو كښې د هغوى بيبيانې او لوئې لوئې صحابه كرام رضي الله عنهم موجود دى، د اول مهاجرينو نه پس ستاسو د درجه برابر هيڅ څوک نشته، چې مونږ اميران يو نو تاسو به وزيران يئ، په يو مشوره كښې تاسو هيريدلې نه شئ او نه به ستاسو نه بغير څه فيصله كيږى.

په يو روايت كښې ابوبكر صديق رضي الله عنه انصارو ته په جواب كښې اوفرمائيل: ما ذكرتم فيكم من خير فانتم له اهل ولن يعرف هذا الامر الا لهذا الحى من قريش هم اوسط العرب نسبا ودارا.»[2]

يعنى تاسو چې خپل كوم فضيلت بيان كړو واقعى تاسو ددې جوګه يئ خو د خلافت حقدار هم قريش دى ځكه چې دوى په عربو كښې د نسل او قبيله په اعتبار سره د ټولو نه افضل دى. د حضرت صديق اكبر رضي الله عنه دې تقرير نه پس حباب بن منذر پاسيدو او وئې فرمائيل چې

[1] الكامل لابن الاثير(٢/٢٢٣)-
[2] صحيح البخارى(٢/١٠١٠)كتاب المحاربين باب رجم الحبلى من الزنا اذا احصنت رقم(٦٨٣٠)-

مناسب داده چې یو امیر خمونږ نه وی او یو ستاسو نه[1]

صدیق اکبر رضی الله عنه دې موقع باندې اوفرمائیل چې د حضورپاک ﷺ ارشاد دې "الائمة من قریش"[2] یعنی خلفاء او امراء به د قریشو نه وی.

حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه دا هم اوفرمائیل: "انه لا یحل ان یکون للمسلمین امیران فانه مهما یکن ذلکم یختلف امرهم واحکامهم وتتفرق جماعتهم ویتنازعون فیما بینهم هنالك تترك السنة وتظهر البدعة وتعظم الفتنة ولیس لاحد علی ذالك صلاح وان هذا الامر فی قریش ما اطاعوالله واستقاموا علی امره قد بلغکم ذالك او سمعتموه عن رسول الله ﷺ ولا تنازعوا فتفشلو وتذهب ریحکم واصبروا ان الله مع الصابرین فنحن الامراء وانتم الوزراء اخواننا فی الدین وانصارنا علیه"[3]

یعنی د مسلمانانو دوه امیران په یو وخت نه شی کیدې خکه که داسې اوشوه نو په ټولو احکامو معاملو کښې به اختلاف پیدا شی او ددوی ډله به ګډه وډه شی. په خپل مینځ کښې به په جنګ شی. او په داسې موقع به سنت پریښودې شی او بدعات به ښکاره شی. فتنه به غټه شی او بیا به ددې صحیح والې د چا اختیار کښې نه وی، دا خلافت به قریشو کښې وی تر کومې چې قریش د الله تابعدار وی او په دین باندې کلک وی. او دا خبره تاسو ته رارسیدلې ده یا هغوی دا اوفرمائیل چې دا خبره تاسو ته حضورپاک ﷺ نه اوریدلې ده چې جنګونه مه کوی کمزورې به شئ، او ستاسو دبدبه به ختمه شی. د صبر نه کار واخلئ الله صبر والا سره دې. مونږ امیر یوو او تاسو وزیر. تاسو زمونږ دینی روریان او په دین کښې خمونږ مددګاران یئ.

حضرت عمر فاروق رضی الله عنه هم اوفرمائیل "سیفان فی غمد واحد لا یکونان" او په یو روایت کښې دی "هیهات لا یجتمع فحلان فی مغرس"[4] یعنی په یو همیانۍ کښې دوه تورې او په یو خائې دوه نران نشی خائې کیدلې.

ددې حضراتو عقلی او نقلی دلائلو اوریدلو نه پس انصار رضی الله عنهم سر کیښودلو.

په دې موقع باندې صدیق اکبر رضی الله عنه حضرت سعدبن عباده رضی الله عنه ته خطاب کښې اوفرمائیل:

"ولقد علمت یا سعد ان رسول الله ﷺ قال، وانت قاعد، قریش ولاة هذا الامر، خیر الناس تبع لبرهم وفاجرهم

---

[1]) الشمائل للترمذی مع شرحه للقاری(۲/۲۱۹)-

[2]) المستدرک للحاکم (٤/٧٦)کتاب معرفة الصحابة ذکر فضائل قریش من حدیث علی رضی الله عنه والمسند لاحمد(۳/۱۲۹) رقم(۱۲۳۳۲) قال القاری:وهو حدیث صحیح ورد من طرق نحو اربعین صحابیا"جمع الوسائل فی شرح الشمائل(۲/۲۱۹)-

[3]) کنز العمال (٥/٥٩٦) کتاب الخلافة والامارة الباب الاول فی خلافة الخلفاء. خلافة ابی بکر رضی الله عنه رقم (١٤٠٥٩)-

[4]) السیرة الحلبیة(۳/۳٥۸)باب ما یذکر فیه مدة مرضه وما وقع فیه وفاته صلی الله علیه وسلم)-

تبع لفاجرهم".(۱)

يعني اې سعد: تاته پته ده چې رسول الله ﷺ يو موقع باندې چې ته هلته كښې هم موجود وې فرمائيلي وو چې قريش به د خلافت ذمه دار وي ځكه چې ښه خلق ددې د نيكانو تابع دى او خراب خلق ئې د خرابو تابع دى.

حضرت سعد رضي الله عنه اومنله او وئې فرمائيل "صدقت نحن الوزراء وانتم الامراء"(۲) يعني واقعى تا صحيح خبره اوكړه مونږ به وزير يوو او تاسو به امير.

په دې روايت كښې ښكاره ده چې حضرت ابوبكر رضي الله عنه حضرت سعد رضي الله عنه ته قسم وركړو چې ستا په موجودګۍ كښې حضورپاك ﷺ دا فرمائيلي وو چې د خلافت د كار واليان به د قريشو نه وي او حضرت سعد رضي الله عنه "صدقت" وئيلو سره ددې تصديق هم اوكړو.

د شمائل ترمذى يو روايت كښې دى چې هر كله انصارو "منا امير ومنكم امير" اوفرمائيل نو حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه درې خصوصيات بيان كړل او په اعلان سره ئې اوفرمائيل چې اووايئ په چا كښې د ابوبكر رضي الله عنه نه علاوه دا خصوصيات شته؟

اول: دا چې حضرت ابوبكر رضي الله عنه ته الله تعالى په قرآن كښې "ثانى اثنين اذهما فى الغار"(۳) اوفرمائيل، ابوبكر رضي الله عنه ته ئې دويم اوئيلو او دوى ته ئې د غار ملګرې هم اوئې.

دويم: دا چې ابوبكر رضي الله عنه ئې د حضورپاك ﷺ خاص ملګرې او د هغه محبت سره خاص اوفرمائيلو(۴)

دريم: داچې الله تعالى ددوى د پاره خپل معيت خاصه ذكر كړو "ان الله معنا".(۵)

ګنى دعلم اواحاطه په لحاظ سره د الله تعالى مرسته عام ده او ټولو ته شامله ده "وهو معكم اينما كنتم".(۶)

دا درې فضيلتونه د ابوبكر صديق رضي الله عنه دقران د نص نه ثابت دى چې په هغې كښې دې طرف ته اشاره ده چې ابوبكر صديق رضي الله عنه افضل دې او هم هغه د خلافت حقدار دې(۷)

حضرت عمر رضي الله عنه د ابوبكر رضي الله عنه د فضائلو دليلونو كښې صرف درې دليلونه واخستل چې د رڼا ورځ په شان واضح دى ګنى د آيت په سياق وسباق كښې د صديق اكبر رضي الله عنه د فضيلت دليلونه نور هم ډير دى: نو هغې كښې اول: د الله تعالى ارشاد دې "الا تنصروه فقد نصره الله اذ اخرجه الذين كفروا".(۸)

---

(۱) المسند لاحمد(۵/۱)رقم(۱۸) مسند ابى بكر الصديق رضي الله عنه-

(۲) حواله باله

(۳) التوبة/۳۹)-

(۴) التوبة/۳۹)-

(۵) التوبة/۳۹)-

(۶) الحديد/۴)-

(۷) شمائل الترمذى مع جمع الوسائل (۲/۲۲۰)-

(۸) التوبة/۳۹)-

په دې آيت كښې د ابوبكر ﷛ نه علاوه ټولو ته د نصرت په پرېښودو باندې زورنه ده څكه چې ابوبكرصديق ﷛ خو هغوى سره وو او د حضورپاک ﷺ مددګار وو،نو دوى د زورنې نه بهر دى

دويم: دا چې د الله د طرف نه د حضورپاک ﷺ په امداد كښې د ابوبكر صديق ﷛ امداد هم شامل دې څكه دوى حضورپاک ﷺ سره وو، نو دوى هم د حضورپاک ﷺ پشان د الله د طرف نه په امداد او مرسته كښې شامل وو،نو هم دوى به د خلافت حقدار وى.

دريم: دا چې "فانزل الله سكينته عليه" كښې د عليه ضمير د صحيح قول په اعتبار سره ابوبكر صديق ﷛ ته راجع دې،يعنى د الله د طرف نه سكون او اطمينان ابوبكرصديق ﷛ ته شامل دې څكه چې هم دوى به د حضورپاک ﷺ په محبت كښې انتهائى درجه پريشانه او بې چين وو،الله دوى ته خاص سكون او اطمينان وركړو.

څلورم: دا چې دې آيت كښې ابوبكر ﷛ ته "ثانى اثنين" وئيلې شوې دى چې په هغې كښې دې طرف ته اشاره ده چې ابوبكر ﷛ د علم او عمل په كمالاتو كښې د حضورپاک ﷺ ثانى او قائم مقام دې او په نزديكت او د غار په انواراتو او تجلياتو كښې د حضورپاک ﷺ ملګرې او يارغار دې.

پنځم: دا چې "اذيقول لصاحبه" كښې د "صاحب" نه مراد په اجماع د مفسرينو ابوبكرصديق ﷛ مراد دې الله تعالى په قران كښې خاص توګه باندې دوى د حضورپاک ﷺ خاص دوست،خاص مرستوال او د اخلاص نه ډک ريشتونې محبت كولو والا اوخودلو، اشاره دې طرف ته ده چې د ابوبكر ﷛ مرسته او دوستانه د هميشه د پاره قائم ده،د دنيا په ژوند كښې د حضورپاک ﷺ دوست دې او په عالم برزخ،عالم آخرت،ميدان حشر او په حوض كوثر باندې هم دوى د هغوى به دوست وى، دغه وجه نه بعضې علماؤ ليكلې دى چې څوک د ابوبكر صديق ﷛ د صحابي كيدو نه انكار اوكړى نو هغه كافر دې چې دې د الله تعالى د دې قول "لصاحبه" انكار كونكې دې.

شپږم: دا چې ابوبكر ﷛ باره كښې ئې دا اوفرمائيل "لاتحزن" يعنى اې ابوبكر ته غمګين او پريشانه كيږه مه" دا د دې خبرې دليل دې چې ابوبكرصديق ﷛ په حضورپاک ﷺ باندې ځان قربانه وونكې عاشق او دوى هغوى د پاره غم شريک وو،

اووم: دا "لاتحزن" نه پس "ان الله معنا" ئې اوفرمائيل او د الله تعالى دَ خصوصى مرستې زيرې وركړو[1]

دې نه پس ابوبكرصديق ﷛ اوفرمائيل چې دا عمر او ابوعبيده ﷛ دواړه دلته موجود دى تاسو دې دواړو كښې چې د چا په لاس كول غواړئى بيعت اوكړئى[2]

دلته حضرت عمر او ابوعبيده ﷛ اوفرمائيل:چې په الله قسم!تاسو په ټولو مهاجرينو كښې افضل يئ،مونږ چې د دين ستن ده او د دين اسلام د ټولو نه اوچت او افضل ركن دې په هغې

[1] هذا كله توضيح ما افاده القارى فى شرح الشمائل(۲/ ۲۲۰و ۲۲۱)-
[2] السنن الكبرى للبيهقى(۸/ ۱۴۲)كتاب اهل البغى جماع ابواب الرعاة باب الائمة من قريش)-

کښي تاسو د حضورپاکﷺ خلیفه او قائم مقام شوئی، اې ابوبکر! تاسو خپل لاس رامخکښې کړئی مونږ ستاسو په لاس باندې بیعت کوو.([1])
په یو روایت کښې دی چې ابوبکرؓ حضرت عمرؓ ته اوفرمائیل چې لاس رامخکښې کړه چې ستا په لاس باندې بیعت اوکړم، حضرت عمرؓ ورته اوفرمائیل چې تاسو افضل یئ، ابوبکر صدیق جواب ورکړو 'انت اقوی منی' تاسو څما نه زیات قوی یئ، په دې باندې خبرې اترې اوشوې، په آخر کښې حضرت عمرؓ اوفرمائیل 'ان قوتی لك مع فضلك' څما قوت به ستاسو فضیلت سره یو ځائې کار کوی، یعني امیر به تاسو افضل یئ او 'اقوی' به د هغه وزیر وی.([2])
دې نه پس حضرت عمرؓ ابوبکرؓ ته اوفرمائیل چې بیعت د پاره لاس رامخکښې کړئی، د غه وخت چې کله حضرت عمرؓ او حضرت ابوعبیدهؓ بیعت د پاره مخکښې راتلل غوښتل نو دغه وخت حضرت بشیربن سعد انصاری رامخکښې شو او پاسیدو او د ابوبکر صدیقؓ په لاس یې بیعت اوکړو، دې نه پس حضرت عمر او حضرت ابوعبیدهؓ بیعت اوکړو([3])
کله چې حباب بن منذر اوکتل چې بشیر بن سعدؓ د ابوبکرؓ په لاس باندې بیعت اوکړو نو وئې ووئیل چې تا د خپلولئ خیال او نه ساتلو او د خپل تره خوی سعدبن عباده امارت دې قبول نه کړو او په هغه دې حسد اوکړو، بشیربن سعدؓ ورته جواب ورکړو چې په الله قسم! داخبره نه ده بلکه خبره دا ده چې د مهاجرینو حق د هغوی نه اخستل نه غواړم([4])
بیا د قبیله اوس خلق د قبیله خزرج امارت هم نه خوښه وو او هغه ته ویره وه که یو ځل سعدبن عباده امیر جوړ کړې شو او امارت خزرج طرف ته لاړو نو بیا به قبیله اوس ته دې فضیلت کښې چرې هم حصه میلاؤ نه شي.
د قبیله اوس نقیب او سردار حضرت اسیدبن حضیر هلته کښې موجود وو هغوی قبیله اوس خلقو ته مشوره ورکړه چې پاسئ او د ابوبکر په لاس باندې بیعت اوکړئی، دا خلق پاسیدل او د ابوبکرؓ په لاس باندې ئې بیعت اوکړو، او دا بیعت کول وو چې د سعدبن عبادهؓ د بیعت خبره بالکل ختمه شوه، دې نه پس خلورو طرفو نه خلق د ابوبکرصدیقؓ په بیعت باندې راجمع شول تردې چې د پښې لګیدلو ځائې هم پاتې نه شو([5])
**بیعت عامه:** دا عام بیعت وو چې د ګل په شپه باندې اوشو، په کومه ورځ چې حضورپاکﷺ وفات شو، او دې نه پس په دویمه ورځ د نهې باندې د مسجدنبوی په منبر باندې بیعت عامه اوشو.([6])

---

[1]) کنزالاعمال(۶۴۰/۵) رقم(۱٤۱۲۷)-
[2]) کنزالاعمال(۶۵۲/۵) رقم(۱٤۱٤۰) وجمع الوسائل(۲۲۱/۲)-
[3]) السیرة الحلبیة(۳۵۸/۳)-
[4]) حواله بالا)-
[5]) سیرة المصطفی(۲۱۱/۳و۲۱۲)-
[6]) السیرة الحلبیة(۲۵۹/۳)-

د سقيفه بني ساعده د بيعت په دويمه ورځ يعنى د نهې په ورځ عام خلق په مسجدنبوى كښې راجمع شول. ټول مشران صحابه كرام او انصار او مهاجرين ﷺ موجود وو. اول حضرت عمر ﷺ په منبر باندې يو مختصر او جامع تقرير اوكړو او په هغې كښې د ابوبكر ﷺ مخكښې والې اوفضائل ئې شمير كړل چې تاسود ابوبكرصديق ﷺ په لاس باندې بيعت اوكړئ.
دې نه پس حضرت ابوبكر ﷺ ئې په منت سره په منبر كينولو او عام خلقو د هغوى په لاس باندې بيعت اوكړو.[1]
د بيعت نه پس صديق اكبر ﷺ يو مختصر خطبه اولوستله او په هغې كښې ئې ارشاد اوفرمائيلو چې "اې خلقو! ستاسو دا خيال دې چې ما دا خلافت خكه قبول كړو چې ما د خلافت يا د امارت شوق ساتلو. يا په مسلمانانو باندې مې خپل فضيلت او اوچتوالې غوښتلو .نو قسم دې وى په هغه ذات د چا په قبضه كښې چې ځما ساه ده؛ ما په دې اراده باندې خلافت قبول كړې نه دې.په الله قسم! ما د امارت يا خلافت لپ وخت د پاره هم خواهش نه دې كړې،نه په پټه نه په ښكاره مې ده دې غوښتنه كړې ده.
"ځما خو دا خوښه وه چې ځما نه علاوه بل صحابى ته دا منصب اوسپارلې شى چې په مسلمانانو كښې ئې انصاف كولو اوس څه تاسو ته صفا وايم چې ستاسو دا خلافت دې تاسو ته واپس وى چې كوم بيعت تاسو ځما په لاس كړې وو هغه ټول ختم دې اوس چې چا ته غواړئ مشرى او خلافت ورته حواله كړئ ځكه چې زه تاسو نه يو كس يم".[2]
**د حضرت على او حضرت زبير ﷺ بيعت:** چې كله ټولو بيعت اوكړو نو حضرت ابوبكر ﷺ په خلقو باندې نظر واچولو نو حضرت على او حضرت زبير ﷺ په نظر رانغلل.وئې فرمائيل چې زه دې مجمع كښې حضرت على او زبير ﷺ نه وينم هغوى هم راوغواړئ،د انصارو نه څو كسان پاسيدل او هغوى دواړه ئې راوغوښتل.
ابوبكر ﷺ ورته اوفرمائيل چې اې د الله د رسول د ترۀ خويه او د هغوى خومه!آيا تاسو په مسلمانانو كښې اختلاف اچوئى؟ او هم دا يې حضرت زبير ﷺ ته هم اوفرمائيل،
دې دواړو حضراتو اووئيل چې اې د الله د رسول خليفه! تاسو مونږ ملامت كوئى مه. مونږ په مسلمانانو كښې اختلاف نه اچوو.نه مونږ په څه باندې خفه يو .صرف دا خيال دې چې مونږ د خلافت په مشوره كښې شامل نه كړې شو باقى مونږ يقين سره وايو چې د خلافت حقدار ابوبكر ﷺ دې هغوى د حضورپاك ﷺ د غار ملګرې دې.مونږ ته د هغوى فضيلت او مرتبه ډيره ښه معلومه ده حضورپاك ﷺ هغوى په خپل ژوند كښې امام مقرر كړې وو چې خلقو ته مونځ وركړى.[3]

په يو روايت كښې دى چې حضرت على ﷺ اوفرمائيل "انه رضيه لديننا افلا نرضاه لدنيانا".[4]

[1] البداية والنهاية(۲٤۸/۵)-
[2] كنز الاعمال(۶۱۵/۵)رقم(۱٤۰۸۱)-
[3] البداية والنهاية(۲۵۰/۵)-
[4] جمع الوسائل(۲۲۰/۲)-

يعني حضورپاک ﷺ حضرت ابوبکر رضي الله عنه خمونږ دين د پاره خوښ کړې وو نو آيا مونږ به ئې دنيا د پاره نه خوښه وو؟
دې ونيلو سره دواړو د ابوبکر صديق رضي الله عنه په لاس باندې بيعت اوکړو.
شيعه ګان وائی چې د حضرت علي رضي الله عنه نه چا تپوس اوکړو او نه ئې راوبللو.نو شيعه ګان دې دا اووائی چې د ابوبکر او عمر رضي الله عنهما نه چا تپوس کړې وو او چا راوغښتې وو؟ بلکه په خپله د فتنې د ويرې نه راغلې وو.
بهرحال حضرت علي او زبير رضي الله عنهما په شروع کښې د صديق اکبر په لاس باندې بيعت اوکړو.
او حقيقت دادې چې حضرت علي رضي الله عنه د ابوبکر رضي الله عنه په لاس باندې په دغه ورځ بيعت کړې وو يا په بله ورځ باندې؟ خو امام بيهقى د حضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه نه په يو روايت کښې نقل کړې دی چې د هغې خلاصه داده:
د حضورپاک ﷺ د وفات نه پس خلق د حضرت سعد بن عباده په کور(سقيفه بنی ساعده) کښې راجمع شول په دې حضراتو کښې ابوبکر او عمر فاروق رضي الله عنهما هم موجود وو.د انصارو يو خطيب(زيدبن ثابت رضي الله عنه) اودريدلو او وئې فرمائيل چې تاسو حضراتو ته معلومه ده چې حضورپاک ﷺ د مهاجرينو نه وو او مونږ هميشه د هغوی د انصارو او مددګارانو نه يو.اوس چې څوک خليفه وی مونږ به د هغه هم انصار او مددګار يو څنګه چې دحضورپاک ﷺ مددګار وو.
دې نه پس عمرفاروق رضي الله عنه اودريدلو او وئې فرمائيل چې ستاسو خطيب صحيح اووئيل، که د دې نه علاوه بل صورت ئې خودلې وو نو مونږ به منلې نه وه.بيا د حضرت ابوبکر رضي الله عنه لاس ئې اونيولو او وئې فرمائيل چې اې حاضر خلقو!دا ستاسو ټولو امير دې ددوی په لاس باندې بيعت اوکړئی.په خپله حضرت عمر رضي الله عنه او په دغه وخت موجوده انصارو او مهاجرينو د ابوبکر صديق رضي الله عنه په لاس باندې بيعت اوکړو.
بيا حضرت ابوبکر رضي الله عنه مسجدنبوی ته تشريف راوړلو سره په منبر باندې کيناستلو او په موجوده خلقو ئې نظر واچولو نو حضرت علي رضي الله عنه په نظر رانغلو هغوی د خلقو نه تپوس اوکړو نو د انصارو څه کسان په منډه هغوی پسې لاړلو.بيا حضرت علي رضي الله عنه راورسيدلو نو ابوبکر رضي الله عنه ترې تپوس اوکړو اې حضورپاک ﷺ ده تره خوئيا او د هغوی خومه!آيا تاسو د مسلمانانو يو ځائې والې ټکړې ټکړې کول غواړئی؟ حضرت علي رضي الله عنه اوفرمائيل چې دالله د رسول خليفه!تاسو مونږ ملامت کوئی مه او فورا ئې بيعت اوکړو
بيا حضرت زبير رضي الله عنه ښکاره نه شو نو د هغه تپوس ئې اوکړو هغه هم حاضر شو هغه ته هم ابوبکر رضي الله عنه اوفرمائيل اې د الله د رسول د ترور خوئيا!آيا تاسو د مسلمانانو په مينځ کښې جدا والې غواړئی؟ هغوی هم اوفرمائيل چې اې د الله د رسول خليفه!تاسو مونږ ملامت کوی مه. او بيعت ئې اوکړلو[1]
امام بيهقى رحمه الله فرمائی چې محمدبن اسحاق خزيمه ته امام مسلم رحمه الله راغللو او دا حديث ئې

[1] السنن الکبرى للبيهقى(١٤٣/٨) کتاب قتال اهل البغى جماع ابواب الرعاة باب: الائمة من قريش)-

واوریدلو نو هغوی اوفرمائیل "هذا حديث يسوى بدنة" چې دا حديث د قربانۍ د اوښ يا د غوا برابر دې، ابن خزيمه فرمائی چې "بدنة" نه بلکه "بدره" يعنی د زرو دينارو د تهيلۍ برابر دې[1]
حافظ ابن کثير رحمه الله ده دې حديث ذکر کولو نه پس فرمائی:

وهذا اسناد صحيح محفوظ من حديث ابی نضرة المنذر بن مالك بن قطعة عن ابی سعيد سعد بن مالك بن سنان الخدری وفيه فائدة جليلة وهی مبايعة علی بن ابی طالب اما فی اول يوم او فی اليوم الثانی من الوفاة وهذا حق فان علی بن ابی طالب لم يفارق الصديق فی وقت من الاوقات ولم ينقطع فی صلاة من الصلوات خلفه وخرج معه الی ذی القصة لما خرج الصديق شاهرا سيفه يريد قتال اهل الردة"[2]

يعنی "د ابونضره عن ابی سعيد په طريق سره روايت شوې دا سند بالکل صحيح او محفوظ دې او په دې کښې د يوې غټې فائدې خبره دا هم ده چې حضرت علی رضی الله عنه د ابوبکر رضی الله عنه په لاس باندې بيعت په ړومبۍ ورځ يا په دويمه ورځ کړې وو او هم دا خبره صحيح ده ځکه چې حضرت علی رضی الله عنه د ابوبکر رضی الله عنه نه يو وخت هم جدا شوې نه دې نه په يو مونځ کښې د هغوی شاته مونځ کولو نه روستو شوې دې او هر کله چې ابوبکر رضی الله عنه توره تياره کړه او ذی القصه مقام ته د مرتدو سره جنګ کولو د پاره اووتلو نو حضرت علی رضی الله عنه هم د مدد ګار په طور دوی سره وتلې وو"

ښکاره دې وی چې ذکر شوې روايات شيعه علماؤ په خپل کتابونو کښې خپل سند سره ذکر کړې دې او په دې باندې څه نقد او جرح کړې نه ده، چنانچه د نهج البلاغة مشهور شارح ابن ابی الحديد شيعی په خپله شرح نهج البلاغة کښې دا روايات نقل کړې دی، هغه ليکی:

قال علی وزبير رضی الله عنهما: ما غضبنا الا لانا اخرنا عن المشورة وانا لنری ابابكر احق الناس بها انه صاحب الغار وانا لنعرف له سنه وامره رسول الله صلی الله عليه وسلم بالصلاة وهو حی"[3]

يعنی "حضرت علی او حضرت زبير رضی الله عنهما اوفرمائيل چې زمونږ ناراضګی صرف په مشوره کښې د نه شامليدو د وجه نه اوشوه حالانکه مونږ ابوبکر رضی الله عنه د نورو خلقو نه زيات د خلافت حقدار ګڼړو، او د غار د ملګيرتيا فضيلت هم هغوی ته حاصل دې مونږ د هغوی بزرګی منو، او حضور پاک صلی الله عليه وسلم هغوی ته په خپله زندګۍ کښې د مونځ ورکولو حکم ورکړې وو"

تعجيلا د بيعت په سلسله کښې د سعيدبن زيد رضی الله عنه دا روايت هم ډير اهم دې چې هغه ابن جرير طبری خپل سند سره ذکر کړې دې:

قال عمرو بن حريث لسعيد بن زيد: اشهدت وفاة رسول الله صلی الله عليه وسلم؟ قال نعم، قال: فمتی بويع ابوبكر؟ قال: يوم مات رسول الله صلی الله عليه وسلم كرهوا ان يبقوا بعض يوم وليسوا فی جماعة، قال: فخالف عليه احد؟ قال: لا الا مرتد او من قد كاد ان يرتد لولا ان الله ينقذهم من الانصار، قال: فهل قعد احد من المهاجرين؟ قال: لا، تتابع .

[1] السنن الکبری للبيهقی (١٤٢/٨)-
[2] البداية والنهاية (٣٤٩/٥)-
[3] شرح نهج البلاغة لابن ابی الحديد (١٥٣/١) رحماء بينهم (٢١٥/١)-

المهاجرون علی بیعته من غیر ان یدعوهم.(۱)
یعنی عمرو بن حریث د سعید بن زید رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چې تاسو د رسول الله د وفات موقع کښې موجود وئ؟ وئې فرمائیل چې او. بیا تپوس اوکړو چې د ابوبکر رضی الله عنه بیعت څه وخت اوشو؟ وئې فرمائیل چې په کومه ورځ د حضورپاک ﷺ انتقال اوشو په هغه ورځ بیعت اوشو، صحابه کرامو دا خبره خوښه نه وه چې د ورځې څه حصه بغیر جماعت او امیر نه تیره شوه، تپوس ئې اوکړو چې آیا چا مخالفت هم کړې وو؟ وئې فرمائیل چې نا. خو او مرتدینو بیعت نه وو کړې او انصار الله بچ کړل ګنې هغوی هم اوړیدلو والا وو. تپوس ئې اوکړو چې مهاجرینو کښې څوک پاتې وو؟ نو وئې فرمائیل چې نا. مهاجرینو بغیر رابللو مسلسل بیعت اوکړو.
دغه شان حبیب بن ابی ثابت فرمائی:

کان علی فی بیته اذ اتی، فقیل له: قد جلس ابوبکر للبیعة فخرج فی قمیصه ما علیه ازار ولا رداء، کراهیة ان یبطئ عنها حتی بایعه ثم جلس الیه وبعث الی ثوبه فاتاه فتخلله ولزم مجلسه.(۲)
یعنی حضرت علی رضی الله عنه په خپل کور کښې وو چې خبر ورته راورسیدلو چې ابوبکر رضی الله عنه د بیعت د پاره ناست دې، حضرت علی رضی الله عنه کرته اغوستې وه په جسم ئې څادر نه وو او په دې حالت کښې په تیزئی سره راووتلو ځکه چې هغوی ته دا خبره خوښه نه وه چې په دې سلسله کښې دې روستوالې اوشی، هلته رسیدو سره ئې بیعت اوکړو بیا هلته کیناستلو او خپلو کپړو د پاره ئې څوک اولیږل، هغه کپړې ئې هم هلته واغوستلې او د ابوبکرصدیق رضی الله عنه مجلس ئې خپل کړو.
**ایا حضرت علی رضی الله عنه شپږو میاشتو پورې بیعت نه وو کړې؟:** دلته د صحیحینو یو روایت نه معلومیږی چې حضرت علی رضی الله عنه د حضرت فاطمه رضی الله عنها د وفات پورې یعنی د حضورپاک ﷺ د تلو نه شپږ میاشتو پورې بیعت نه وو کړې، دا روایت د ابن شهاب عن عروة عن عائشة په طریق سره مروی دې ددې الفاظ دادی:
فوجدت فاطمة علی ابی بکر فی ذلك فهجرته فلم تکلمه حتی توفیت وعاشت بعد النبی ﷺ ستة اشهر فلما توفیت استنکر علی وجوه الناس فالتمس مصالحة ابی بکر ومبایعته ولم یکن یبایع تلك الاشهر.(۳)
حقیقت دادې چې ددې روایت نور طرق جمع کیدلو او کتلو نه پس ښکاره کیږی د بیعت نه کولو دا خبره د امام زهری کلام دې چې د روایتو په مینځ کښې راغلې ده، د امام زهری رحمه الله دا عادت وو چې د حدیث په مینځ کښې به ئې (ادراج) څه شاملول.(۴)

(۱) تاریخ ابن جریر الطبری (۴۴۷/۲) حدیث السقیفة)-
(۲) تاریخ الامم والملوک (۴۴۷/۲)-
(۳) صحیح البخاری (۶۰۹/۲) کتاب المغازی باب غزوة خیبر رقم (۴۲۴۰و۴۲۴۱) وصحیح المسلم کتاب الجهاد باب قول النبی ﷺ لا نورث ما ترکنا فهو صدقة رقم (۸۵۸۰)-
(۴) وکذا کان الزهری یفسر الاحادیث کثیرا وربما اسقط اداة التفسیر فکان... [بقیه حاشیه په راروانه صفحه.

چنانچه امام ابن جریر طبری رحمہ اللہ دا روایت نقل کړې دې، ده هغې الفاظ دادي:
"قال معمر: فقال رجل للزهري: افلم يبايعه على ستة اشهر؟ قال لا، ولا احد من بني هاشم" (۱)
دغه شان سنن کبری بیهقی الفاظ دي
"قال معمر: قلت للزهري: كم مكثت فاطمة بعد النبي ﷺ؟ قال: ستة اشهر، قال: رجل للزهري: فلم يبايعه علي رضي الله عنه حتى ماتت فاطمة رضي الله عنها قال: ولا احد من بني هاشم" (۲)
په دې دواړو روایاتو کښې دا خبره بالکل ښکاره کیږي چې د صحیحینو روایتونو کښې د روای د طرف نه "قال رجل للزهري" یا "قلت للزهري" الفاظ غورزیدلي دي. دا په حقیقت کښې د حضرت عائشه رضي الله عنها د کلام حصه نه ده.
چنانچه امام بیهقي رحمہ اللہ فرمائي
"وقول الزهري في تعود علي عن بيعة ابي بكر حتى توفيت فاطمة: منقطع وحديث ابي سعيد الخدري في مبايعته اياه حين بويع بيعة العامة بعد السقيفة اصح" (۳)
یعنې د حضرت فاطمة رضي الله عنها د وفات پورې د حضرت علي رضي الله عنه د حضرت ابوبکر رضي الله عنه د بیعت نه د ایساریدلو چې د زهري کوم قول دې هغه منقطع دې او بیعت عامه موقع باندې د واقعه سقیفه نه پس ددوی د بیعت چې کوم روایت د ابوسعید خدري رضي الله عنه نه مروی دې هغه اصح دې.
دغه شان هغوی په خپل یو بل تصنیف کښې د ادراج وضاحت کړې دې فرمائي:
"والذي روى ان عليا رضي الله عنه لم يبايع ابابكر رضي الله عنه ستة اشهر ليس من قول عائشة انما هو من قول الزهري فادرجه بعض الرواة في الحديث عن عائشة في قصة فاطمة وحفظه معمر بن راشد فرواه مفصلا وجعله من قول الزهري منقطعا من الحديث وقد روينا في الحديث الموصول عن ابي سعيد الخدري ومن تابعه من اهل المغازي ان عليا بايعه في بيعة العامة بعد البيعة التي جرت في السقيفة" (۴)
مطلب دادې چې دا کوم روایت دې چې حضرت علي رضي الله عنه د شپږو میاشتو پورې بیعت نه وو کړې دا د حضرت عائشه رضي الله عنها قول نه دې بلکه دا د امام رازی قول دې چې هغه بعضې راویانو د حضرت فاطمه رضي الله عنها دقصې لاندې د حضرت عائشه رضي الله عنها نه نقل کړو، او دې خبرې لره امام معمر بن راشد صحیح یاده کړې ده. او دا نې تفصیلا نقل کړې دې، او مونږ د ابوسعید خدري رضي الله عنه موصول روایت نقل کړې دې او د دوی تابعداری نورو اهل مغازیو هم کړې ده چې حضرت علي رضي الله عنه د بیعت سقیفه نه فورا پس د بیعت عامه موقع کښې بیعت کړې وو.

---

بقیه حاشیه د تیرمخ] اقرانه ربما یقول له: افصل کلامک من کلام النبي ﷺ انظر النکت علی کتاب ابن الصلاح(۸۶۹/۲) النوع العشرون :المدرج وفتح المغیث للسخاوی(۲۸۸/۱)-
۱) تاریخ الامم والملوک(۴۴۸/۲)-
۲) السنن الکبری للبیهقی(۳۰۰/۶)کتاب قسم الفئ والغنیمة باب بیان مصرف اربعة اخماس الفئ)-
۳) حواله بالا
۴) رحماء بینهم (۲۲۷/۱) نقلا عن "الاعتقاد علی مذهب السلف"(ص ۱۸۰)-

دغه شان امام ابن حبان رحمه الله هم د ابوسعید خدری رضی الله عنه روایت ته اصح گرزولې دې چې حضرت علی رضی الله عنه شروع کښې بیعت کړې وو[1]
لهذا د حضرت عائشه په روایت کښې چې د کوم بیعت ذکر دې د هغې باره کښې به دا اونیلې شی چې دا دویم بیعت وو، امام بیهقی فرمائی: "ولعل الزهری اراد قعوده منها بعد البیعة ثم نهوضه الیها ثانیا وقیامه بواجباتها" [2]
مطلب دادې چې حضرت علی رضی الله عنه اول بیعت کړې وو بیا چې کله د حضرت فاطمه رضی الله عنها او د ابوبکر رضی الله عنه په مینځ کښې د میراث معامله راغله او په دې سلسله کښې د حضرت فاطمه رضی الله عنها په زړه کښې لږ خفګان راغلو نو حضرت علی رضی الله عنه د هغې تپوس او ډاډ د پاره حضرت ابوبکر رضی الله عنه سره د عملی تعاون وغیره نه ناست وو بیا چې کله د فاطمه رضی الله عنها انتقال اوشو نو دوباره ئې ابوبکر رضی الله عنه سره تعاون شروع کړو.
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: وجمع غیره بانه بایعه بیعة ثانیة مؤکدة للاولی لازالة ما کان وقع بسبب المیراث کما تقدم وعلی هذا فیحمل قول الزهری "لم یبایعه علی رضی الله عنه فی تلک الایام" علی ارادة الملازمة له والحضور عنده وما اشبه ذلک فان فی انقطاع مثله عن مثله مایوهم من لا یعرف باطن الامرانه بسبب عدم الرضا بخلافة فاطلق من اطلق ذلک وبسبب ذلک اظهرعلی المبایعة التی بعد موت فاطمة رضی الله عنها لازالة هذه الشبهة" [3]
یعنی د امام بیهقی نه علاوه نورو حضراتو د دواړو روایاتو داسې تطبیق کړې دې چې حضرت علی رضی الله عنه د ړومبی بیعت تاکید د پاره دویم بیعت کړې وو چې د میراث د مسئلې د وجه چې کوم واقعات راغلې دی هغه ختم شی ددې مطلب په بنیاد باندې د امام زهری دا قول چې "حضرت علی رضی الله عنه دغه ورځو کښې بیعت نه وو کړې" به په دې محمول کړې شی چې د حضرت علی رضی الله عنه حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته مخامخ کیدنه نه وه، وجه دا وه چې حضرت علی رضی الله عنه په شان شخصیت د ابوبکر رضی الله عنه نه لرې وو نو د حقیقت نه ناخبره خلقو ته دا شک کیدې شی چې حضرت علی رضی الله عنه د ابوبکر رضی الله عنه د خلافت نه خوشحاله نه وو، چنانچه بعضې نقل کونکو داسې خبره کړې هم ده، ددې غلط فهمی لرې کولو د پاره حضرت علی رضی الله عنه د فاطمه رضی الله عنها د وفات نه پس دوباره بیعت اوکړو، والله اعلم.
**د حضرت سعد بن عباده رضی الله عنه بیعت:** سقیفه د بنی ساعده موقع کښې هلته کښې موجود مشران مهاجرینو او انصارو د ابوبکر رضی الله عنه په لاس باندې بیعت اوکړو ددې نه پس بیعت عامه اوشو چې هغې کښې ټول مهاجرین او انصار شریک شول دغه شان د ابوبکر رضی الله عنه په خلافت باندې د ټولو صحابه کرامو رضی الله عنهم اجماع جوړه شوه.

---

[1] فتح الباری(۸/۴۹۵)کتاب المغازی باب غزوة خیبر)-
[2] السنن الکبری(۶/۱۲۰۰)-
[3] فتح الباری(۷/۴۹۵)-کتاب المغازی اواخر باب غزوة خیبر)-

البته د سعدبن عباده رضي الله عنه په باره کښې روايت کښې رازى چې هغوى تر آخره پورې بيعت اونکړو.بلکه د بيعت نه ئې انکار اوکړو،حضرت عمر رضي الله عنه رائې ورکړه چې د حضرت سعد رضي الله عنه نه خامخا بيعت اخستل پکار دى،خو بشيربن سعد اوفرمائيل چې هغه په دې معامله کښې بالکل يواځې دې هغه ته معافى اوکړئى او په خپل حالت کښې ئې پرېږدئى هغوى يو ځل انکار کړې دې او د ده په زور تنګولو سره خطره ده چې د هغه قبيله او خاندان په مرسته کښې راپاسى او خبره قتل وقتال ته اورسى.دغه شان دا رائې ټولو ته خوښه راغله،د حضرت ابوبکر رضي الله عنه په دور خلافت کښې هم په مدينه منوره کښې پاتې وو.بيا د حضرت عمر رضي الله عنه په دور خلافت کښې شام ته لاړو او هم هلته کښې وفات شو.([1])

ددې نه په ظاهره دا معلوميږى چې د ابوبکر رضي الله عنه په خلافت باندې د ټولو صحابه کرام رضي الله عنهم اجماع نه وه.خو حقيقت دادې چې د ابوبکر رضي الله عنه په خلافت باندې د ټولوصحابه اجماع شوې وه.

امام طبرى رحمه الله نقل کړې دى"ان سعد بايع يومئذ"([2])يعنى حضرت سعد رضي الله عنه هم په دغه ورځ بيعت کړې وو.

د قراينو نه هم دا معلوميږى چې حضرت سعد رضي الله عنه بيعت کړې وو، ځکه چې د سقيفه بنى ساعده موقع کښې ابوبکر رضي الله عنه هغه ته په خطاب کښې فرمائيلې وو چې: "ولقد علمت يا سعد،ان رسول الله قال وانت قاعد: قريش ولاة هذا الامر فبر الناس تبع لبرهم وفاجرهم تبع لفاجرهم"

يعنى اې سعد! تاته ښه معلومه ده چې تاسو د حضور صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې ناست وئى چې حضورپاک صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چې ددې خلافت ذمه دار قريش به وى ځکه چې د دوى نيکان خلق د دوى د نيکانو او فاجران د دوى د فاجرانو تابع دى.

په دې باندې هغوى د ابوبکر رضي الله عنه تصديق کولو سره اعتراف اوکړو"صدقت نحن الوزراء وانتم الامراء"([3])

ددې تصديق او اقرار نه پس د هغوى د بيعت نه انکار کول په ظاهره په عقل کښې نه راځى.ځکه اوونيلې به شى چې هغوى بيعت کړې وو.

او تر څو چې د بيعت نه د انکار کولو د روايت تعلق دې د هغې باره کښې به اوونيلې شى چې کله حضرت سعدبن عباده د ابوبکر رضي الله عنه د خلافت د حق کيدلو اقرار اوکړو،نو لاس ئې په لاس کښې ورکول ضرورى او نه ګڼړله،حضرت عمر رضي الله عنه دې پسې زور اولګولو چې په ظاهره هم د هغوى نه بيعت واخستلې شى، چې د هغې نه هغوى انکار اوکړو

ددې نه دا لازم نه رازى چې هغوى د ابوبکر رضي الله عنه خلافت د زړه نه تسليم کړې نه وو،بلکه حقيقى واقعه هم دغه ده چې هغوى د ابوبکر رضي الله عنه د خلافت اقرار هم کړې وو او د زړه نه ئې

---

[1]) الطبقات الكبرى لابن سعد(۲۱۶/۳و۲۱۷) ترجمه سعدبن عباده رضي الله عنه وكنز العمال(۶۲۷/۵و۶۲۸) رقم (۱٤۱۰۷)-

[2]) تاريخ ابن خلدون(۴۰۰/۲)-

[3]) المسند لاحمد(۵/۱) رقم(۱۸)-

مثلې هم وو، دغه وجه ده چې هغوی د ابوبکر ﷺ په ټول دور خلافت کښې هم په مدينه منوره کښې پاتې وو، د صديق اکبر ﷺ د وفات نه پس شام ته ئې تشريف يوړو. په دغه وخت کښې د دوی نه يو داسې کار اونشو چې هغې ته د ابوبکر ﷺ د خلافت نه خلاف اوونيلې شي.
تر څو چې د صديق اکبر ﷺ پسې د مونځ نه کولو او په مجلس کښې د شرکت نه کولو تعلق دې نو دا يو فطری ردعمل دې چې يو کس څوک د خليفه جوړولو د پاره د کور نه راولى او خلق د هغه په لاس باندې د بيعت د پاره جذباتی هم وی، او هغه معمولی کس هم نه، د قبيله خزرج سردار چې په سخاوت کښې بې مثاله وو، حضورپاک ﷺ به اکثر د انصارو علم دوی ته ورکولو، او بيا ددوی د خوددارئی او غيرت په مخکښې! د دې ټولو صفاتو نه ډک کس چې دحق د اعتراف سره سره د خلافت د کار نه فارغ کړې شو نو فطری طور سره يو شرم په هغه کښې پيدا وو، چې د هغې د وجه هغه څانله والې اختيار کړو.
څکه يقينی طور سره دا ونيلې شی چې د ابوبکر ﷺ په خلافت باندې د ټولو صحابه کرامو ﷺ اجماع وه.

**د خلافت مسئله باندې د اهل سنت او د اهل تشيع منشاء د اختلاف:** ددې خائې پورې د قرآن د اشاراتو، بې شميره احاديثو او آثارو، او د صحابه کرامو ﷺ دعمل او اجماع نه ثابته کړه چې حضرت ابوبکر ﷺ د خلافت د ټولو نه زيات حق لرلو او صحابه کرامو د هغوی بالکل په حقه سره خوښونه کړې وه.
دلته د اهل سنت او د اهل تشيع په مينځ کښې د اختلاف منشاء جائزه اخستلو سره دا مسئله نوره زياته هم واضح کيږی.
د اهل تشيع په نيز باندې د خلافت دارومدار په قرابت او علاقه مصاهرت باندې دې څکه د شيع ګانو په نيز د حضورپاک ﷺ نه پس خلافت حضرت علی ﷺ له پکار وو، چې هغوی د دوی نزدې رشته دار او څوم وو،
اهل سنت فرمائی چې د خلافت دارومدار په تقرب باندې دې په رشته دارئ نه دې، کوم کس چې الله او رسول ﷺ ته نزدې وی هغه کس به د رسول ﷺ خليفه او جانشين وی، خلافت نبوت له قرابت او مصاهرت يعنی رشته دارئی ته څه ضرورت دې؟
که د خلافت دارومدار نسبی رشته دارئی باندې وو نو حضورپاک ﷺ نه پس به د هغوی خليفه د هغوی تره حضرت عباس ﷺ وو يا د هغوی لور حضرت فاطمه ﷺ وه، بيا د فاطمه ﷺ نه پس حضرت حسن ﷺ دويم خليفه وو، د هغې نه پس به حضرت حسين ﷺ دريم خليفه وو، د هغې نه پس که حضرت علی ﷺ ژوندې وو نو بيا به هغوی څلورم خليفه جوړ شوې وو.
حاصل دا دې چې که چرې دخلافت دارومدار په رشته دارئی باندې وو نو د شيع ګانو د دې قاعدې مطابق د حضرت علی ﷺ به څلورم خليفه جوړيدلو. لهذا که اهل سنت حضرت علی ﷺ څلورم خليفه جوړ کړو نو څه ګناه ئې اوکړه؟ او بيا چې حضرت علی ﷺ ته خپل دور کښې کوم خلافت ميلاؤ شو نو د مهاجرينو او انصارو بيعت نه ورته ميلاؤ شو، اهل تشيع خو حضرت علی ﷺ ته هيڅ هم ورنه کړل.

او كه د خلافت مدار علاقه مصاهرت(خخرگنئ) او گنړلې شي نو بيا هم د حضرت علي ﷺ په مقابله كښې حضرت عثمان ﷺ بغير د څه روكاوټ نه د خلافت حقدار دې، ځكه چې حضرت عثمان ﷺ د حضورپاك ﷺ دوچنده خُوم وو، چې د هغوی په نكاح د حضورپاك ﷺ دوه لورياڼې يو بل پسې راغلې، او هم دغې وجه نه هغوی په اسلام كښې په "ذوالنورين" لقب مشهور شو.

پاتې شوه دا خبره چې د عثمان ذوالنورين ﷺ په نكاح كښې چې كومې دوه لورياڼې راغلې وې هغوی د حضورپاك ﷺ په ورانديې وفات شوې وې، نو دا خبره د خلافت حق نه ختموئي، ځكه چې د دې وجه نه هغوی ته كومه خاص مرتبه ميلاؤ شوې وه هغه صرف د نكاح نه حاصله شوې وه، د بي بي ژوندئي پاتې كيدلو يا نه پاتې كيدلو ته پكښې حاجت نشته ځنګه چې حضرت علي ﷺ ته د فاطمه ﷺ نه پس د خُومتوب عزت حاصل وو، د حضرت علي ﷺ دا شرف د فاطمه ﷺ د وفات سره ختم نه شو.

پاتې شوه دا خبره چې شيعه ګان وائي چې دا دواړه لورياڼې رقيه او ام كلثوم ﷺ د حضور پاك ﷺ نه وې، بلكه د خديجه ﷺ د ړومبي خاوند نه وې نو دا صفا دهوكه او فريب دې.

د شيعه ګانو كتاب "اصول كافي" كښې صفا موجود دی: "وتزوج خديجة وهوابن بضع وعشرين سنة فولد له منها قبل مبعثه القاسم ورقية وزينب وام كلثوم، وولد له بعد المبعث الطيب والطاهر وفاطمة"[1]

يعنی حضورپاك ﷺ خديجه ﷺ سره نكاح اوكړه په هغه وخت كښې د هغوی عمر د شلو نه زيات وو، چنانچه د پيغمبرئی نه مخكښې د خديجه ﷺ د بطن نه د هغوی ځوئی قاسم او لورياڼې رقيه، زينب او ام كلثوم پيدا شوې، او د پيغمبرئی نه پس طيب، طاهر او فاطمه پيدا شوه،

مطلب دادې چې د فاطمه ﷺ په شان رقيه او ام كلثوم هم د هغوی لورياڼې وې چې په هغې كې د فاطمه ﷺ پيدائش د پيغمبرئی نه بعد شوې دې او د رقيه او ام كلثوم ﷺ پيدائش د پيغمبر ئی نه مخكښې شوې دې، او په پيدا كيدلو كښې مخكښې والې او روستو والې په خلافت كښې څه فرق نه پيدا كوی، د حضرت علي ﷺ ته د خُومتوب كوم عزت حاصل وو هغه د فاطمه ﷺ نه وفات نه پس هم باقي وو او د وفات نه پس دا عزت ختم نه شو، دغه شان دحضرت عثمان ﷺ دوچنده دخُومتوب شرف اوګنړئی[2] والله سبحانه وتعالى اعلم وعلمه اتم واحكم

د خلافت مسئله دلته مونږ په مختصر انداز سره د مخكښې كولو كوشش كړې دې. د تفصيل د پاره "ازالة الخفاء" از شاه ولي الله "رحماء بينهم" از مولانا محمدنافع صاحب دامت بركاتهم "سيرت مصطفى" از مولانا محمدادريس كاندهلوی ﷺ مطالعه به فائده مند وی.

**فخرج ابن عباس يقول: ان الرزية كل الرزية ما حال بين رسول الله ﷺ وبين كتابه.**

حضرت عباس ﷺ دې وونيلو سره اووتلو چې دا ډير غټ مصيبت دې چې د حضور ﷺ او د

---

[1] اصول كافي كليني(۲۷۸)-

[2] سيرت مصطفى(۲۳۲/۳-۲۳٤)-

هغوی د کتابت په مینځ کښې دیوال شو.
ده دې جملې نه ظاهرا دا ښکاره کیږی چې ابن عباس رضي الله عنهما دغه مجلس کښې موجود وو خو حقیقت دادې چې هغوی دې مجلس کښې موجود نه وو هغوی به دا جمله عموما وئیله چې کله به ئې دا حدیث اورولو چنانچه امام بخاری د دې حدیث په یو طریق کښې نقل کړې دی قال عبید الله : فكان ابن عباس يقول: ان الرزية،،[۱] دغه شان د مستخرج ابی نعیم په حدیث کښې دی قال عبید الله فسمعت ابن عباس يقول.. الخ[۲]
ددې حاصل دا شو چې ابن عباس رضي الله عنهما کله دا حدیث عبید الله رحمه الله ته واورولو نو په آخره کښې د جملې سره د هغه خائې نه اووتلو کوم خائې نه ئې چې جدیث اورولو.
په دې غیر ظاهری صورت باندې محمول کولو وجه داده چې عبید الله تابعی دې او د هغوی شمیر په دویمه طبقه کښې کیږی، هغوی د قصې او واقعې دوران کښې موجود نه وو ځکه د هغوی پیدائش د حضورپاک صلی الله علیه وسلم د وفات نه پس شوې وو او بیا هغوی دا حدیث د ابن عباس رضي الله عنهما نه ډیره موده پس هم واوریدلو.[۳]
د ابن عباس رضي الله عنهما خپله رائې دا وه چې حضورپاک صلی الله علیه وسلم دا خط لیکلې وې. والله اعلم
**د ترجمة الباب سره مناسبت:** د ابن عباس رضي الله عنهما د حدیث الباب مناسبت د ترجمې نه بالکل ښکاره دې، چې په هغې کښې لیکلې شوې دی چې حضورپاک صلی الله علیه وسلم د خط د لیکلو اراده کړې وه چې په هغې سره به د امت اختلاف لرې شوې وو او د هغوی اراده هم په حقه او جائز ده، ددې نه د حدیث د لیکلو جائز کیدل معلومیږی.
**فائده:** امام بخاری په دې باب کښې څلور احادیث ذکر کړې دی:
اول حدیث د حضرت علی رضي الله عنه دې چې په هغې کښې ذکر دی چې حضرت علی رضي الله عنه یوه صحیفه لیکلې وه چې کومه به هغوی د توری په کاش کښې ساتله،
په دې روایت کښې دا امکان موجود دې چې هغوی دا احادیث د حضورپاک صلی الله علیه وسلم د وفات نه پس لیکلې وی او چه د کوم کتابت نه هغوی منع فرمائیلې وه هغه خبره علی رضي الله عنه ته رسیدلې نه وه، ځکه ئې دې نه پس دویم حدیث د ابوهریره رضي الله عنه ذکر کړو چې په هغې کښې د کتابت حکم دې چونکه دا د نهی نه پس وارد شوې دې ځکه د نهی عن کتابة الحدیث منسوخ شو.
دې نه پس د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه حدیث دې د هغې په بعضې طرقو کښې موجود دی چې هغوی د حضورپاک صلی الله علیه وسلم نه د کتابت اجازت غوښتلې وو او هغوی ورته اجازت ورکړو[۴]
دا حدیث د ابوهریره رضي الله عنه حدیث "اکتبوا لابی شاه" په مقابله کښې ددې وجه قوی دې چې د امر بالکتابة والاحادیث کښې دا احتمال شته چې د یو کس د ناپوهیدلو یا ړندوالی وغیره

---

[۱] صحیح البخاری(۲/۸۴۶و۸۴۷) کتاب المرضی باب قول المریض قوموا عنی رقم(۵۶۶۹)-
[۲] فتح الباری(۱۲۰۹)-
[۳] حواله بالا
[۴] اخرجه العقیلی کما فی فتح الباری(۱/۲۰۹)-

يعنې د عذر د وجه هغوی ورته اجازت ورکړې وی.
او په آخر کښې د ابن عباس ﷠ په حديث سره د باب ختميدنه ئې اوکړه، چې په هغې کښې د حضورپاک ﷺ د داسې خط په باره کښې ذکر دې چې هغې سره اختلافات ختميږی او د ضلالت و گمراهئ دوازه بنديږی(١)والله اعلم

## ٤٠- باب: العلم والعظة بالليل

ترجمة الباب کښې دلته "العظة" دې او په بعضو نسخو کښې "اليقظة" دې او هم دا د حديث زيات مناسب دې، دغه شان په بعضو نسخو کښې د مخکښې باب نه پس دې(٢)

**تير شوې باب سره مناسبت:** د دې باب د مخکښې باب سره تعلق څه دا شان دې چې په مخکښې باب کښې د کتابت علم ذکر دې، چې د علم په پوخ والی او کوشش او محنت باندې دلالت کوی او په دې باب کښې د شپې په وخت کښې د تعليم او نصيحت ذکر دې، دا هم د محنت، جدوجهد او د علم د حاصلولو په گران والی باندې دليل دې، (٣)والله اعلم

**د ترجمة الباب مقصد:** حافظ ابن حجر فرمائی چې مصنف په دې باب سره خبرداري ورکوی چې د ماسخوتن نه پس خبرې په دې صورت کښې منع دی چې کله د خير خبره نه وی(٤)

حضرت گنگوهی ﷫ فرمائی چې د دې باب نه پس "باب السمر فی العلم" راروان دې دا دواړه بابونه نزدې دی خو دواړو کښې فرق دې د دې فرق ښکاره کولو د پاره دا دوه بابونه جدا جدا راوړلې شوی دی.
د دې باب غرض په دې خبره باندې تنبيه ورکول دی چې خوب اوکړې او بيا راپاسې نو د هغې نه پس خبرې "سمر" کښې داخلې نه دی او هم دغه وجه ده چې امام بخاری ﷫ دلته د سمر ذکر او نه کړلو.
د بل ترجمة الباب نچوړ دادې چې عام سمر خو منع دې البته سمر فی العلم منع نه دې(٥)

حضرت شيخ الهند ﷫ فرمائی: د حضرت عبدالله بن مسعود روايت دې "كان النبى ﷺ يتخولنا بالموعظة فى الايام كراهة السآمة علينا"(٦)

دغه شان د حضرت انس ﷠ حديث دې "يسروا ولا تعسروا"(٧)

---

(١) فتح البارى(١/٢١٠)-
(٢) عمدة القارى(٢/١٧٢)-
(٣) عمدة القارى(٢١٧٢)-
(٤) فتح البارى(١/٢١٠)-
(٥) لامع الدرى مع الكنز المتوارى فى معادن لامع الدرى(٢/٣٥٩و ٣٦٠)-
(٦) صحيح البخارى(١/١٦) كتاب العلم باب ما كان النبى ﷺ يتخولهم بالموعظة..رقم(٦٩)-
(٧) صحيح البخارى(١/١٦) كتاب العلم باب ما كان النبى ﷺ يتخولهم بالموعظة..رقم(٦٩)-

دغه شان د ابن عباس ؓ ارشاد دې "لاتمل الناس هذا القرآن".[1]
د دې ټولو رواياتو او آثارو نه ظاهره ده چې د تذكير او تعليم د پاره د آوريدونكو تازګى ضرورى ده، او شپه چونكه د خوب او آرام د پاره وى نو ددې نه د شپې تعليم او تذكير مكروه والې په خيال كښې رازى.
نو مولف "باب العلم والعظة بالليل" لګولو سره د داسې روايت بيان اوفرمائيلو چې د هغې نه صفا معلوميږى چې په وخت د ضرورت كښې اوده پاسول او تعليم او تذكير وركول ورته لازم دى.[2]

[۱۱۵] حَدَّثَنَا صَدَقَةُ أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ هِنْدٍ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ وَعَمْرٍو وَيَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ هِنْدٍ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتِ اسْتَيْقَظَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - ذَاتَ لَيْلَةٍ فَقَالَ «سُبْحَانَ اللَّهِ مَاذَا أُنْزِلَ اللَّيْلَةَ مِنَ الْفِتَنِ، وَمَاذَا فُتِحَ مِنَ الْخَزَائِنِ أَيْقِظُوا صَوَاحِبَاتِ الْحُجَرِ، فَرُبَّ كَاسِيَةٍ فِي الدُّنْيَا عَارِيَةٍ فِي الآخِرَةِ»
[۶۶۵۸، ۵۸۴۴، ۵۵۰۶، ۳۴۰۴، ۱۰۷۴]

## رجال الحديث

① **صدقه:** دا صدقة بن الفضل ابو الفضل مروزى رحمه الله دى.[3]
هغوى د اسماعيل بن عليه، حجاج بن محمد، سفيان بن عيينه، عبدالله بن وهب، عبدالرحمن بن مهدى، محمدبن جعفرغندر، ابومعاويه، معتمر بن سليمان، وكيع بن الجراح، يحيى بن سعيد القطان او يزيدبن هارون رحمهم الله وغيره نه د حديث روايت كړې دې.
د دوى نه روايت كونكو كښې امام بخارى، امام عبدالله بن عبدالرحمن، محمدبن نصر مروزى، يعقوب بن سفيان فارسى، او عبيد الله بن واصل بخارى رحمهم الله وغيره دى.[4]
وهب بن جرير رحمه الله فرمائى "جزى الله اسحاق بن راهويه وصدقة ويعمرعن الاسلام خيرا احيوا السنة بارض المشرق".[5]
عباس بن عبدالعظيم عنبرى رحمه الله فرمائى "رايت ثلاثة جعلتهم حجة فيما بينى وبين الله: احمد بن حنبل، ويزيدبن المبارك، وصدقة بن الفضل".[6]
امام نسائى فرمائى "ثقة".[7]

---

[1] صحيح البخارى (۹۳۸/۲) كتاب الدعوات باب ما يكره من السجع فى الدعاء رقم (۶۳۳۷)-
[2] ابواب والتراجم (ص۵۵)-
[3] تهذيب الكمال (۱۴۴/۱۳)-
[4] تهذيب الكمال (۱۴۴/۱۳ و۱۴۵)-
[5] تهذيب الكمال (۱۴۵/۱۳)-
[6] حواله بالا
[7] تهذيب الكمال (۱۴۶/۱۳)-

حافظ ذهبى فرمائى "الامام الحافظ القدوة شيخ الاسلام"[1]

ابو بشير دولابى رحمه الله فرمائى "ثقة"[2]

حافظ ذهبى بيا فرمائى "امام ثبت"[3]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى "ثقة"[4]

ابن حبان رحمه الله دوى په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دى او فرمائى "كان صاحب حديث وسنة"[5]

د دوى انتقال ۲۲۳ هجرى يا ۲۲۲ هجرى كښې اوشو[6] رحمه الله تعالى رحمة واسعة

۲ **ابن عيينه**: دا مشهور محدث سفيان بن عيينه بن ابى عمران هلالى رحمه الله دې، د دوى مختصر حالات د بدء الوحى په ړومبى حديث كښې تير شوې دى[7] او څه تفصيل سره په كتاب العلم "باب قول المحدث: حدثنا او اخبرنا وانبانا" لاندې تير شوې دى[8]

۳ **معمر**: دا امام معمر بن راشد ازدى بصرى رحمه الله دې د دوى حالات اوس روستو باب "باب كتابة العلم" لاندې تير شول،

۴ **عمرو**: دا مشهور امام او فقيه عمرو بن دينار مكى جمحى رحمه الله دې د دوى حالات اوس روستو باب "باب كتابة العلم" لاندې تير شوې دى.

۵ **يحيى بن سعيد**: دا امام يحيى بن سعيد انصارى مدنى رحمه الله دې، د دوى مختصر حالات د "بدء الوحى" په ړومبى حديث كښې دى[9] او لږ تفصيل سره په "كتاب الايمان" "باب صوم رمضان احتسابا من الايمان" كښې تير شوې دى[10]

**تنبيه**: بعضې حضراتو دلته د يحيى بن سعيد مصداق يحيى القطان ګرزولې دې دا خبره صحيح نه ده ځكه چې د يحيى القطان د امام زهرى رحمه الله سره ملاقات او اوريدنه ثابت نه ده[11]

---

[1] سير اعلام النبلاء (۴۸۹/۱۰)-

[2] كتاب الكنى والاسماء (۸۰/۲)-

[3] الكاشف (۵۰۲/۱) رقم (۲۳۸۶)-

[4] تقريب التهذيب (ص ۲۷۵) رقم (۲۹۱۸)-

[5] الثقات لابن حبان (۳۲۱/۸)-

[6] سير اعلام النبلاء (۴۹۰/۱۰)-

[7] كشف البارى (۲۳۸/۱)-

[8] كشف البارى (۱۰۲/۳)-

[9] كتاب البارى (۲۳۸/۱)-

[10] كشف البارى (۳۲۱/۲)-

[11] فتح البارى (۲۱۰/۱) وعمدة القارى (۱۷۲/۲)-

⑥الزهري دا امام محمدبن مسلم بن عبيد الله بن عبدالله بن شهاب زهري رحمه الله دې د دوی مختصر حالات د "بدء الوحی" د دريم حديث لاندې تير شوي دي.[1]

⑦هند دا هندبنت الحارث الفراسية بكسر الفاء بعدها را مهملة ثم الف ثم سين مهملة ـ رضي الله عنها ده، دوی ته به قرشيه هم ونيلې شو[2]، دا د معبدبن المقدادبن الاسود بی بی ده[3].
دا د ام سلمه رضي الله عنها نه روايت کوی، د هغوی سره خصوصی تعلق لرونکو نه وه[4].
ددې نه امام زهري رحمه الله روايت کوی[5].
ابن حبان دا په کتاب الثقات کښې ذکر کړې ده[6].
حافظ ابن حجر فرمائی "ثقة"[7]، د دوی حديث د مسلم نه علاوه باقی د صحاح په کتابونو کښې موجود دی[8]، رحمها الله تعالى رحمة واسعة
تنبيه: دا هندبن الحارث فراسيه صرف د ام سلمه رضي الله عنها نه روايت کوی او ددې نه روايت کونکو کښې د امام زهري نه علاوه بل څوک نشته، د دې باره کښې د جرح وتعديل علماؤ نه څه قسم تعديل او تجريح هم نقل نه دې، البته صرف امام ابن حبان دوی په "کتاب الثقات" کښې ذکر کړې ده، ځکه چې هغه هر هغه راوی ثقه ګڼړی چې د چا باره کښې جرح منقول نه وی، اګرچه تعديل د چا نه منقول وی يا نه[9].
خو د جمهور په نيز داسې راوی مجهول ګڼړلې شی او د هغه حديث د "صحيح" مرتبې ته رسيدلې نه شی[10].
د دې جواب دا دې چې بعضې حضراتو دې ته صحابيه ونيلې دی، نو په دې صورت کښې خو هيڅ اعتراض نشته او که دا صحابيه نه وی نو تابعيه به وی او په تابعينو کښې که داسې حضرات وی چې د هغوی تعديل او تجريح منقول نه وی د هغوی روايات بعضې حضرات نه قبلوی او بعضې ئې ير نېي قبلوی، چنانچه حافظ سخاوی رحمه الله فرمائی:

---

[1] كشف الباري (۳۲۶/۱)-
[2] كما في الصحيح البخاري: حدثني هند القرشية (۱۱۷/۱) كتاب الاذان باب مكث الامام مصلاه بعد السلام رقم (۸۵۰)-
[3] تهذيب الكمال (۳۲۰/۳۵)_
[4] حواله بالا
[5] حواله باله
[6] الثقات لابن حبان (۵۱۷/۵)-
[7] تقريب التهذيب (ص ۷۵٤) رقم (۸۶۹۵)-
[8] تهذيب الكمال (۳۲۰/۳۵)-
[9] قال ابن حبان: لان العدل من لم يعرف منه الجرح ضد التعديل فمن لم يعلم بجرح فهو عدل اذا لم يبين ضده. الثقات لابن حبان (۱۳/۱)-
[10] فتح المغيث للسخاوي (٤٤/٢)-

"وقد قيل هذا القسم مطلقا من العلماء من لم يشترط في الراوي مزيدا على الاسلام وعزاه ابن المواق للحنفية حيث قال: انهم لم يفصلوا بين من روى عنه واحد وبين من روى عنه اكثر من واحد بل قبلوا رواية المجهول على الاطلاق" (١)

يعني: علماؤ په راوي كښې د مسلمان كيدو شرط نه علاوه بل شرط لګولې نه دې دا حضرات داسې مجهول رواى روايت قبلوى، او دا خبره ابن المواق احنافو ته منسوب كړې ده، چنانچه هغه وائى چې احنافو په يو راوى كښې دا فرق نه دې كړې چې د ده نه يو كس روايت كوى يا د يو نه زيات روايت كوى، بلكه مطلقا د مجهول روايت قبلوى"

حافظ سخاوى فرمائى چې: "مجهول راوى، چې د چا نه صرف يو راوى روايت كوى هغه قبلول ددې علماؤ حضراتو په مذهب باندې لازم دى چې وائى چې د يو عادل راوى د چا نه روايت كول د هغه تعديل دې، بلكه امام نووى خو ډيرو محققينو پسې دا خبره منسوب كړې ده چې د هغوى په نيز داسې راوى قابل احتجاج دې، دغه شان ابن خزيمه رحمه الله هم د دې خبرې قائل دې چې عين جهالت د يو مشهور راوى په روايت كولو سره ختمیږى، او دې طرف ته د هغه د شاګرد ابن حبان كلام هم اشاره كوى(٢)

حافظ سخاوى فرمائى: "وبالجملة: فرواية امام ناقل للشريعة لرجل ممن لم يرو عنه سوى واحد في مقام الاحتجاج: كافية في تعريفه وتعديله(٣)

يعني"يو امام چې د شريعت ناقل او راوى مشهور وى او هغه د احتجاج او استدلال په ځائي كښې د يو داسې راوى نه روايت اوكړى چې د هغه نه سوا د يو كس نه چا روايت نه وى كړې، نو د هغه د تعريف او تعديل د پاره ډيره ده"

دې حيثيت سره كه اوكتلې شى نو د امام بخارى په شان د شريعت نقل كونكې امير المومنين فى الحديث د هندبنت الحارث يا ددې پشان نور راويانو نه حديث نقل كول، دغه راوى لره به د جهالت نه اوباسى،

دغه شان حافظ ابن كثير رحمه الله فرمائى :

"اذا كان في عصر التابعين والقرون المشهود لهم بالخير فانه يستانس بروايته ويستضاء بها في مواطن" (٤)

يعني"هغه راوى چې هغه نه صرف يو كس روايت كړې وى، تابعين يا قرون فاضله سره تعلق لرى نو د هغه روايت به د استيناس په طور سره اخستلې شى او مختلف ځايونو كښې د هغې نه فائده هم اخستلې شى" والله سبحانه اعلم

---

(١) فتح المغيث للسخاوى(٢/٤٥)-

(٢) فتح المغيث(٢/٤٥)-

(٣) فتح المغيث للسخاوى(٢/٥٠)-

(٤) اختصار علوم الحديث (ص ٨١) النوع الثالث والعشرون:معرفة من تقبل روايته ومن لاتقبل وبيان الجرح والتعديل)-

(٨) ام سلمه رضي الله عنها: دا ام سلمه هند بنت ابى امية بن المغيرة بن عبدالله بن عمر بن مخزوم قرشيه مخزوميه رضي الله عنها ده، د ابوامیه نوم سهیل یا حذیفه وونیلې شی.[1]
ام سلمه رضي الله عنها د حضورپاک صلی الله علیه وسلم په زوجیت کښې د راتلو نه مخکښې د خپل تره ځوی حضرت ابوسلمه رضي الله عنه په نکاح کښې وه، د هغه نه د دوی اولاد عمر، بره، سلمه، عمره او دره پیدا شوې وو، دا ابوسلمه د حضورپاک صلی الله علیه وسلم د ترور بره بنت عبدالمطلب ځوئې وو.[2]
ابوسلمه رضي الله عنه او ام سلمه رضي الله عنها دواړو حبشې طرف ته هجرت کړې وو.[3]
کله چې حضرت ابوسلمه د غزوه احد نه پس وفات شو نو دصحیح قول مطابق په ۴هجرئی کښې حضورپاک صلی الله علیه وسلم دوی سره نکاح اوکړه.[4]
حضرت ام سلمه رضي الله عنها يو ځل خپل تير شوې خاوند ابوسلمه رضي الله عنه سره خبرې کولې چې ما اوریدلې دی چې د کومې ښځې خاوند مړ شی او هغه جنتی وی. او د هغه بی بی د هغه نه پس بل چا سره واده اونه کړی نو الله تعالی به دا دواړه په جنت کښې یوځائې کوی، دغه شان که ښځه وفات شی او خاوند پاتې شی بیا به هم دا حالت وی. په دې باندې ابوسلمه رضي الله عنه اوفرمائیل چې ته خما نه وعده اخستل غواړې چې خه ستا نه پس بل چا سره واده او نه کړم او ته خما نه پس بل چا سره واده اونه کړې؟ بیا ئې اوفرمائیل چې خما خبره به ته اومنې؟ ام سلمه رضي الله عنها اوفرمائیل چې د منلو په غرض سره خو مشوره کوم، په دې سره ابوسلمه رضي الله عنه اوفرمائیل چې ته خما نه پس نکاح اوکړه او دعا ئې اوکړه "اللهم ارزق ام سلمة بعدی رجلا خیرا منی لایخزیها ولا یؤذیها" یعنی "ام سلمه رضي الله عنها ته داسې کس ورکړه چې خما نه خه وی او نه هغه رسوا کړی او نه تکلیف ورکړی" حضرت ام سلمه رضي الله عنها فرمائی چې د ابوسلمه رضي الله عنه د وفات نه پس ما سوچ کولو چې د ابوسلمه رضي الله عنه نه ځوک خه کیدلې شی.[5]
دلته حضورپاک صلی الله علیه وسلم هغوی ته د خاوند د وفات نه پس اوفرمائیل چې:

"ما من عبد تصيبه مصيبة فيقول: انا لله وانا اليه راجعون اللهم اجرنى فى مصيبتى واخلف لى خيرا منها الا اجره الله فى مصيبته واخلف له خيرا منها"

یعنی: چې کوم بنده په مصیبت کښې مبتلا وی او هغه "انا لله وانا الیه راجعون" وئیلو نه پس عرض اوکړی چې اې الله! ماته په دې مصیبت باندې اجر راکړې او د دې نه خه بدله راکړې، نو الله تعالی ده ته به دې مصیبت باندې اجر ورکوی او د دې نه خه بدله ورته ورکوی.
ام سلمه رضي الله عنها فرمائی چې کله د ابوسلمه رضي الله عنه انتقال اوشو نو ما سوچ کولو چې د ابوسلمه نه ځوک خه کیدلې شی، خو بیا مې زړه اوکړو او مې وئیل، نو الله تعالی د هغه په ځائې باندې

---

[1] تهذيب الكمال(٣٥٣١٧)-
[2] السيرة الحلبية(٣١٩/٣)-
[3] حواله بالا
[4] تهذيب التهذيب(٤٥٦/١٢)-
[5] الاصابة(٤٢٣/٤)-

رسول الله ﷺ را کړو.[1]

هر کله چې ابوسلمه رضی الله عنه وفات شو نو ابوبکر رضی الله عنه مخکښې هغې ته د نکاح خبر ور واستولو، هغوی انکار اوکړو، د هغې نه پس حضرت عمر رضی الله عنه خبر اولیګلو هغوی انکار اوکړو، دې نه پس حضور پاک ﷺ حاطب بن ابی بلتعه قاصد جوړ کړو او وئې لیږلو، هغوی د حضور پاک ﷺ پیغام اورسولو.

ام سلمه رضی الله عنها چې کوم ځانې حوشحاله شوه هلته هغې د هوښیارتیا نه هم کار واخستلو، هغې اوفرمائیل چې ځما عمر اوس ډیردې ځما واړه واړه بچی دی او په ما کښې غیرت هم ډیر دې. حضور پاک ﷺ ورته تسلی ورکړه او د هغوی نکاح حضور پاک ﷺ سره اوشوه.[2]

د ام سلمه رضی الله عنها فراست او هوښیارتیا منلې شوې ده، د غزوه حدیبیه په موقع کښې حضور پاک ﷺ صحابه کرامو رضی الله عنهم ته د هدی د ذبح کولو او د سر خریلو حکم درې پیرې ورکړو خو نه چا هدی ذبح کړه او نه چا حلق اوکړو،

ام سلمه رضی الله عنها ته چې خبر اوشو نو مشوره ئې ورکړه چې اې رسول الله! صحابه کرام په دې روغې باندې خفه دی، تاسو چاته څه وایئ مه، تاسو خپله هدی ذبح کړی او حلق اوکړئی،

حضور ﷺ په دې مشوره باندې عمل اوکړو بس د هغوی هدی ذبح کول وو چې ټولو صحابه کرامو رضی الله عنهم فورا خپل خپل ځناور ذبح کړل او حلق ئې اوکړو، دغه شان دا غټه مسئله د ام المومنین رضی الله عنها په مشورې سره په آسانئ سره حل شوه.[3]

ام سلمه رضی الله عنها د حضور ﷺ نه علاوه د ابوسلمه رضی الله عنه او فاطمه رضی الله عنها نه هم حدیث نقل کوی.

د ام سلمه رضی الله عنها نه روایت کونکو کښې عمربن ابی سلمه، زینب بنت ابی سلمه، عامربن ابی امیه، مصعب بن عبدالله بن ابی امیه، عبدالله بن رافع، نافع، سفینه، خیره (د حسن بصری مور)، سلیمان بن یسار، اسامه بن زید، هندبنت الحارث، صفیه بنت شیبه، ابوعثمان النهدی، عروه بن الزبیر، امام شعبی او کریب مولی ابن عباس رضی الله عنهما وغیره ډیر صحابه کرام او تابعین شامل دی.[4]

د ام سلمه رضی الله عنها نه تقریبا دوه سوه او اته اویا (٢٧٨) احادیث روایت شوې دی، په هغې کښې دیارلس احادیث متفق علیه دی، په دریو کښې امام بخاری متفرد دې او په دریو کښې امام مسلم متفرد دې.[5]

د ام سلمه رضی الله عنها د وفات په کال کښې ډیر اختلاف دې بعضو ٥٩ هجری یاده کړې ده او بعضې فرمائی چې ٦١ هجرئی کښې وفات شوې ده.[6]

---

[1] صحیح المسلم کتاب الجنائز باب ما یقال عند المصیبة رقم(٢١٢٦-٢١٢٩)-

[2] الاصابة(٤٢٣/٤)-

[3] السیرة الحلبیة(٢٣/٣)-

[4] تهذیب الکمال(٣١٧/٣٥-٣١٩)-

[5] خلاصة الخزجی(ص٤٩٦)-

[6] تهذیب التهذیب(٤٥٦/١٢و٤٥٧)-

ام سلمه رضي الله عنها د حضورپاک ﷺ په بيبيانو کښې د ټولو نه په آخره کښې وفات شوه(١)

رضی الله عنها وارضاها

**قوله:** حدثنا صدقة اخبرنا ابن عيينة، عن معمر، عن الزهري، عن هند عن ام سلمة وعمرو ويحيى بن سعيد عن الزهري عن هند عن ام سلمة: په دې سند کښې د کشميهنى په روايت کښې "عن هند" په ځائې "عن امرأة" راغلې دې، دغه شان په بل سند کښې هم د ابوذر په روايت کښې د "هند" په ځائې "امرأة" لفظ راغلې دې.

ګويا امام زهري رحمه الله بعضې وخت نوم ښکاره ذکر کوی او بعضې وخت پټ ذکر کوی.(٢)

**قوله:** وعمرو ويحيى بن سعيد: دا دواړه نومونه يا خو مرفوع دی يا مکسور دی.

د مرفوع په صورت کښې استيناف دې ګويا ابن عيينه چې کوم ځائې د معمر نه روايت کوی هلته کښې د عمرو بن دينار او يحيى بن سعيد نه هم روايت کوی. البته د عمرو نه مخکښې صيغه د اداءحديث ئې حذف کړه، چنانچې په مسند الحميدى کښې د دې سند څه دا شان دې: حدثنا الحميدى قال: حدثنا سفيان، قال: حدثنا عمرو بن دينار ويحيى بن سعيد عن الزهرى.. وحدثنا معمر..(٣) او د کسرې په حالت کښې به په "معمر" باندې عطف وی(٤)

**قوله:** استيقظ النبي ﷺ ذات ليلة: حضورپاک ﷺ يو ورځ د خوب نه پاسيدلو.

**قوله:** فقال: سبحان الله!: هغوی اوفرمائيل: سبحان الله!

دا لفظ مصدر دې خو د حيرانتيا د پاره استعماليږی، او دلته هم د تعجب د پاره استعمال شوې دې(٥)

**قوله:** ماذا انزل الليلة من الفتن وماذا فتح من الخزائن؟: نن شپه کومې کومې فتنې نازلې شوې دی او د رحمت کومې کومې خزانې کولاؤ شوې دی؟

"ماذا" کښې "ما" سواليه ده او "ذا" اسم اشاره ده، ګويا "ماذا الوقوف" په معنی کښې ده، يعنی دا څنګه واقفيت دې،

دا هم ممکن دی چې "ما" خو سواليه وی او "ذا" موصوله وی، نو اوس مطلب به دا شی "ما الذی انزل الليلة" يعنی نن شپه نازليدونکې فتنې کومې کومې دی؟

دا هم احتمال دې چې "ماذا" ټوله استفهاميه کلمه وی،

---

(١) سيرة المصطفى(٣/٣٠٦)-

(٢) فتح البارى(١/٢١٠)-

(٣) مسند الحميدى(١/١٤٠)- احاديث ام سلمة زوج النبى ﷺ رقم (٢٩٢٠)-

(٤) فتح البارى(١/٢١٠)-

(٥) عمدة القارى(٢/١٧٣)-

یو احتمال دا دې چې "ما" نکره موصوفه یعني د "شيء" په معنی کښې وی.
یو امکان دا هم دې چې "ما" استفهام د پاره وی او "ذا" زائده وی.[1]
"انزل" د مجهول صیغې سره دې او د کشمیهني په روایت کښې "انزل الله" راغلې دې.
"انزال" لغوی معنی اقامت یعني اودرول دی، څنګه چې ونیلې شی "انزل الجیش بالبلد" او "نزل الامیر بالقصر" او یا ددې معنی په لغت کښې یو څیز لره د بره نه لاندې حرکت ورکولو ته او راکوزولو ته ونیلې شی.
دلته د لغوی معنی نه علاوه "خوب" مراد دې، ګویا الله تعالی حضورپاک ﷺ ته د وحی په ذریعه په خوب کښې دا ذکر شوې څیزونه اوخودل، چې د هغې نه په "انزل" سره تعبیر اوکړې شو.[2] بیا دلته د "فتن" نه مراد عذاب دې او د "خزائن" نه مراد رحمت دې.
"عذاب" ئې "فتنة" سره تعبیر اوکړو څکه چې دا فتنې په اصل کښې عذاب ته رسوونکې اسباب دی.[3]
علامه داؤدی رحمه الله فرمائی چې "ما ذا انزل اللیلة من الفتن" او "ماذا فتح من الخزائن" دواړه یو دی، دویمه جمله د ړومبۍ تاکید دې څکه چې فتح کړې شوې خزانې د فتنې سبب جوړیږی.[4]
خو ښکاره داده چې دا جدا جدا دی او مطلب دادې چې حضورپاک ﷺ اول په خوب کښې اولیدل چې د هغوی نه پس ډیرې فتنې راتلونکې دی او د هغوی امت ته به خزانې حاصلیږی. دخوب نه پاسیدو نه پس د تعبیر په ذریعه یا د وحی په ذریعه سره ددې حقیقت معلوم شو.
ددوی د دې پیشن ګوئۍ مطابق د هغوی نه پس څومره فتنې په امت کښې پیدا شوې او صحابه کرامو رضی الله عنهم او د هغوی نه پس خلقو ته څومره خزانې میلاؤ شوې او هغوی څومره ملکونه فتح کړل دا ټول د حضورپاک ﷺ د معجزاتو نه وو.[5]
**قوله: ایقظوا صواحب الحجر:** حجرې واله راپاسوئی.
"ایقظوا" د باب افعال نه د امر صیغه ده او "صواحب" د "صاحبة" جمع ده په بعضو نسخو کښې "صواحبات الحجر" دې او دا جمع الجمع ده، ددې نه مراد ازواج مطهرات رضی الله عنهن دی. ګویا چې په دغه شپه د ام سلمه رضی الله عنها نمبر وو، حضورپاک ﷺ چې کله دا کلمات اوفرمائیل نو ام سلمه رضی الله عنها دا واوریدل او نقل ئې کړل.[6]

---

[1] عمدة القاری(۲/۱۷۳و ۱۷٤)-
[2] عمدة القاری(۲/ ۱۷٤) وفتح الباری(۱/ ۲۱۰)-
[3] حواله جات بالا
[4] حواله جات بالا
[5] عمدة القاری(۲/ ۱۷٤)-
[6] حواله بالا

علامه كرمانى رحمه الله يو احتمال دا ليكلي دي چې دا "ايقظو" مجرد دي او ددې معنى "انتبهو" ده، دي نه پس "صواحب الحجر" د منادى د وجه نه به منصوب وى[1]،
خو دا صرف احتمال دې نه د روايت نه ثابت ده او نه د لفظ نه ددې تائيد كيږى، ځكه كه چرې "ايقظو" د مجردو نه وو نو "ايقظن" جمع مونث حاضر به ئې راوړله[2]،
حضورپاك ﷺ ددې ارشاد په ذريعه ګويا دا اوفرمائيل چې دا وخت د اوده كيدلو او د ناراستئ نه دې په داسې وخت كښې الله تعالى طرف ته رجوع پكار ده چې د فتنو نه بچ شى او د الله تعالى د رحمتونو نه ډک شى
**فائده**: په دې كښې سړو ته تعليم دې چې خپل كوروالا د شپې په وخت كښې د مونځ او د ذكر د پاره راپاسونى خاص طور په داسې حالاتو كښې چې د الله تعالى ويره پيدا كيدلو والاحالات مخښې ته وى[3]

**قوله: فرب كاسية في الدنيا عارية في الاخرة**: ډيرې ښځې په دنيا كښې كپړې اغوستونكې به وى، اخرت كښې به بې پردې وى.
"رب" د تقليل د پاره استعماليږى او په زياتوالى سره د "تكثير" د پاره هم استعماليږى، او دلته د تكثير د پاره ده.

د "رب" مجروربه مكسور وى ددې صفت يا خو مفرد راوړلې شى، لكه وئيلې كيږى "رب صديق لى عرفته" او كله جمله د صفت په توګه سره راوړلې شى لكه "رب صديق لم يتغير عرفته" او كله د هغې صفت شبه جمله راوړلې شى لكه "رب صديق عندك عرفته" او "رب صديق فى الشدة عرفته" دلته هم "فى الدنيا" شبه جمله ګرځولو سره د "كاسية" صفت اوګرځولو
بيا "عارية" مجرور هم او وئيلې شو په دې صورت كښې دا براه راست د "كاسية" صفت ګرځى، او دا مرفوع هم اووئيلې شو په دې صورت كښې به دا د مبتدا د پاره خبر جوړ شى يعنى "هى عارية فى الاخرة" او بيا به دا ټوله جمله د "كاسية" صفت اوګرځولې شى،
دلته دا هم دا معلوميدل ضرورى دى چې د "رب" او ددې مجرور يو فعل ماضى سره څه معنوى اعتبار سره څه تعلق او اتصال شته، لهذا تقديرى عبارت دا شان شى "رب كاسية فى الدنيا عارية فى الاخرة عرفتها" بيا د "رب" حرف جار او ددې مجرور د پاره اعرابى اعتبار سره يو فعل يا شبه فعل سره څه تعلق ضرورى دې كه نا؟ دواړه خبرې دى، كه تعلق ضرورى اوګرځولې شى نو دا جار مجرور "عرفته" سره به متعلق شى ګنى "رب" ته به اسم وئيلو سره دا به مبتدا يا مفعول اوګرځوو، لهذا "رب كاسية" به مبتدا شى او "عرفتها" به ددې خبر شى يا "رب كاسية" به مفعول

---

[1] شرح الكرمانى (٢/ ١٣٠)-
[2] عمدة القارى (٢/ ١٧٤)-
[3] فضل البارى (٢/ ١٥٦)-

مقدم او "عرفتها" به ددې عامل شی([1])
**دلفظ كاسية تحقيق:** لفظ کاسیه د کسا یکسو نه اسم فاعل د مؤنث صیغه ده.ددې معنی کپړا ورکول او اغوستل دی،خو دلته اسم فاعل د اسم مفعول په معنی سره دې ګویا "کاسیه" د "مکسوة" په معنی سره دې لکه "ماء دافق" د "مدفوق" په معنی سره دې او "عیشة راضیة" د "مرضية" په معنی سره دې په دې معنی کښې د حطیئه شاعر دا شعر هم دې:

دع المكارم لا ترحل لبغيتها واقعد فانك انت الطاعم الكاسي

يعنی "د شرافت څیزونه پرېښودو سره دې پسې مه کیږه. کینه ځکه چې ته خو صرف د خوړلو او اغوښتلو د پاره يې"
دلته "الكاسى" د "المكسو" په معنی سره دی.چاته چې کپړې اغوښتلې شوې وی([2])
**د حديث شريف مفهوم:** ددې جملې مفهوم یا خو دادې چې دا ښځې داسې سپکې او نرئې کپړې اغوندی چې هغې سره دتنه اندامونه ښکاریږی، یا د اندامونو رنګ ترې بهر راوزی.
دغه شان ددې په حکم کښې دا هم دی چې کپړې دومره تنګې واچولې شی چې دتنه اندامونه بهر راوځی او د هغې جوړښ ښکاره شی،
دغه شان ددې مفهوم دا هم دې چې دا ښځې په دنیا کښې عمده او قیمتی لباس اغوستونکې دی خو په آخرت کښې به د حسنات او نیکو نه بالکل خالی وی([3])
علامه طیبی رحمه الله فرمائی چې حضورپاک ﷺ چې کومې خپلې بیبیانې د خوب نه راپاسولې د هغې علت په دې جمله کښې بیان شوې دی،ګویا هغوی دا فرمائی چې ازواج مطهرات په دې حیثیت سره چې د حضورپاک ﷺ کور والا او بیبیانې دی،دوی له د غفلت او ناراستې نه کار اخستل پکار نه دی،او په دې خبره بهروسه کولو سره کیناستل نه دی پکار
چې مونږ د حضورپاک ﷺ بیبیانې یوو،ځکه که عمل نه وی نو اکثر داسې تعلق په کار نه رازی.([4])
**د حديث شريف نه اخستلې شوې څه فائدې:** د حدیث باب نه دا معلومه شوه چې سړی له د شپې په وخت کښې خپل کور والا راپاسول پکار دی چې مونځ اوکړی او د الله ذکر اوکړی، خاص کر چې کله څه غټه واقعه راشی یا ویرونکې خوب اووینی.
دغه شان علماؤ لیکلې دی چې د خوب نه پاسیدو نه پس د الله ذکر کول مستحب دی،
یو خبره دا هم معلومه شوه چې عالم لره چې د کومو خبرو نه ویره وی د هغې نه خپل منونکی خبرول پکار دی،او د داسې راتلونکې حادثو نه د بچ کیدلو طریقه هم ښودل پکار دی،
بل دا حدیث په یو لوئې پیشن ګوئۍ باندې هم مشتمل دې چې په راتلونکی وخت به داسې

[1] جمع الهوامع(۲/۲۵-۲۸)-
[2] عمدة القاری(۲/۱۷۵)-
[3] عمدة القاری(۲/۱۷٤)-
[4] حواله بالا

ښځې راشي چې لباس اغوښتلو سره سره به بې پرده وی، نن سبا دا خمونږ زماني سره څنګه په ښکاره لګی، اعاذنا الله من جميع الشرور و الفتن ما ظهر منها وما بطن.(۱) والله اعلم وعلمه اتم واحکم.

# ۴۱-باب: السَّمَرِ فِي الْعِلْمِ

د "باب" اضافت "السمر" طرف ته شوې دې هم دا د ابوذر رحمه الله روايت دې او معنى ئې ده "هذا باب فى بيان السمر فى العلم"

د ابوذر نه علاوه باقی رواياتو کښې د "باب" په لفظ باندې تنوين دې ګويا اضافت نه دې او "السمر" مرفوع دې نو تقديری عبارت به داسې شی "هذا باب: فيه السمر بالعلم"(۲)

**دلفظ "سمر" تحقيق:** "سمر" د ميم فتحې سره هم وئيلې شی او دا سکون سره هم وئيلې شی، ددې معنى د شپې خبرې کول دی،

**سمر يسمر سمرًا و سمرًا:** د شپې قصې کول.

په اصل کښې "سمر" د سپوږمئ رنګ ته وئيلې شی ځکه چې عربيان به د سپوږمئ په شپو کښې ناست به وو، ګپ به ئې لګولو او قصې به ئې کولې(۳)

**تير شوې باب سره مناسبت:** په دې باب کښې او مخکښې باب کښې مناسبت ښکاره دې چې په مخکښې باب کښې د شپې د علم و نصيحت د مشغلې بيان وو، او په دې باب کښې د شپې د علمی مشغولتيا ذکر دې(۴)

**د ترجمة الباب مقصد:** حافظ ابن حجر فرمائی چې د امام بخاری مقصد دادې چې د اوده کيدو نه مخکښې که د علم قصې اوکړې شی نو منع نه دی.

په دې ترجمه کښې او تير شوې ترجمه کښې د حافظ رحمه الله په نظر کښې فرق دادې چې تيره شوې ترجمه عامه ده په دې کښې د اوده کيدو نه مخکښې تخصيص نه دې شوې او دلته د دې قيد لحاظ ساتلې شوې دی(۵)

خلاصه دا چې امام بخاری په اول کښې د شپې د وعظ وتذکير او تعليم وتبليغ جواز بيان کړې دې اواوس دلته دې باب کښې د اوده کيدو نه مخکښې دعلمی قصه ګوئ جواز بيان کوی.

حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائی چې امام بخاری په دې ترجمة الباب سره دا وئيل غواړی چې په رواياتو کښې د عشاء نه پس د قصې وئيلو نه منع راغلې ده، خو د حاجت په قدر او مناسب وخت کښې د شپې د علم قصې کول ثابت او منلې شوې دی، او دا د دې ممانعت نه بهر ده.

ګويا امام بخاری دا وئيل غواړی چې د ممانعت تعلق بې فائدې خبرو سره دې او که علمی

---

(۱) عمدة القاری (۲/۱۷٤و۱۷۵) وفتح الباری (۱/۲۱۱)-

(۲) عمدة القاری (۲/۱۷۵)-

(۳) مختار الصحاح (ص۳۱۲و۳۱۳) وعمدة القاری (۲/۱۷۵)-

(۴) عمدة القاری (۲/۱۷۵)-

(۵) فتح الباری (۱/۲۱۱)-

قصي وي او هغه بيان كړي شي نو دا جائز دى په دې كښې څه كراهت نشته.
حضرت شيخ الهند رحمه الله چې كوم مطلب بيان كړې دې په هغې كښې د دې ترجمې او د مخكښې ترجمې فرق ښكاره دې،د مخكښې ترجمې مقصد خو د شپې په وخت د وعظ او تذكير جواز بيان شوى دې ددې توهم لرې كولو د پاره چې په دې كښې به آوريدونكو ته تكليف وى،لهذا دا مكروه كيدل پكار دى، نو د حديث نه ئې اوښودله چې دا مكروه هم نه دى[1] والله تعالى اعلم

[۱۱۶] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ خَالِدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمٍ وَأَبِي بَكْرِ بْنِ سُلَيْمَانَ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ قَالَ صَلَّى بِنَا النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم - الْعِشَاءَ فِي آخِرِ حَيَاتِهِ، فَلَمَّا سَلَّمَ قَامَ فَقَالَ «أَرَأَيْتَكُمْ لَيْلَتَكُمْ هَذِهِ، فَإِنَّ رَأْسَ مِائَةِ سَنَةٍ مِنْهَا لاَ يَبْقَى مِمَّنْ هُوَ عَلَى ظَهْرِ الأَرْضِ أَحَدٌ [۵۷۶، ۵۳۹]

## رجال الحديث

① **سعيد بن عفير**:دا سعيدبن عفير دې ددوى حالات كتاب العلم باب من يرد الله به خيرا يفقهه فى الدين لاندې راغلي دى[2]

② **الليث**:دا امام ابوالحارث ليث بن سعد بن عبدالرحمن فهمى رحمه الله دې ددوى حالات د بدء الوحى د دريم حديث لاندې تير شوې دى[3]

③ **عبدالرحمن بن خالد**:دا عبدالرحمن بن خالدبن مسافر فهمي مصرى دې،ددوى كنيت ابوخالد يا ابوالوليد دې دا د امام ليث بن سعد د مشرانو نه دې[4]
هشام بن عبدالملك د طرف نه دې د مصر امير وو[5]
دوى د امام زهرى نه روايت كوى.
د دوى نه روايت كوونكو كښې امام ليث بن سعد او يحيى بن ايوب مصرى رحمهما الله دى[6]

---

[1] الابواب والتراجم(ص۵۵و۵۶)-
[2] قوله عبدالله بن عمر رضي الله عنهما الحديث اخرجه البخارى ايضا فى صحيحه (۸۰/۱) فى كتاب مواقيت الصلاة باب ذكر العشاء والعتمة ومن رآه واسعا رقم(۵٦٤) و(۸٤/۱) كتاب مواقيت الصلاة باب السمر فى الفقه والخير بعد العشاء رقم(۶۰۱) ومسلم فى صحيحه فى كتاب الفضائل باب بيان معنى قوله صلى الله عليه وسلم على راس مائة سنة لا يبقى نفس منفوسة ممن هو موجود الآن رقم(٦٤٧٩)و(٦٤٨٠)-
[3] كشف البارى(۲۷٤/۳)-
[4] تهذيب الكمال(۷۶/۱۷)-
[5] حواله بالا
[6] حواله بالا

امام ابوحاتم فرمائی "صالح" [1]
امام نسائی فرمائی "لیس به باس" [2]
امام سعید بن یونس فرمائی "وکان ثبتا فی الحدیث" [3]
امام عجلی رحمه الله فرمائی "مصری ثقة" [4]
امام ذهلی رحمه الله فرمائی "ثبت" [5]
امام دارقطنی رحمه الله فرمائی "ثقة" [6]

امام نسائی رحمه الله دوی د امام زهری په شاګردانو کښې د ابن ابی ذئب رحمه الله وغیره په طبقات کښې شمیر کړې دې [7]

امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی: "کان عنده عن الزهری فیه مائتا او ثلاث مائة حدیث کان اللیث یحدث بها عنه وکان جده شهد فتح بیت المقدس مع عمر بن الخطاب رضی الله عنه" [8]

امام ابن حبان دوی په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دی [9]

البته ساجی رحمه الله فرمائی "هو عندهم من اهل الصدق وله مناکیر" [10]

دلته مناکیر د تفرد په معنی باندې په محمول کیږی [11]

ددوی وفات په ۱۲۷ هجرئی کښې اوشو [12] رحمه الله تعالی رحمة واسعة

④ ابن شهاب: دا امام محمد بن مسلم بن عبیدالله بن شهاب زهری رحمه الله دې ددوی مختصر حالات د "بدء الوحی" د دریم حدیث لاندې تیر شوې دی [13]

⑤ سالم: دا جلیل القدر تابعی، د مدینه منوره په فقهاؤ سبعه کښې مشهور فقیه، دحضرت

---

[1]) تهذیب الکمال(۱۷/۷۷)-
[2]) حواله بالا
[3]) حواله بالا
[4]) تهذیب التهذیب(۶/۱۶۶)-
[5]) حواله بالا
[6]) حواله بالا
[7]) حواله بالا
[8]) تهذیب الکمال(۱۷/۷۷)-
[9]) الثقات لابن حبان(۷/۸۳)-
[10]) تهذیب التهذیب(۶/۱۶۶)-
[11]) تعلیقات الکاشف(۱/۶۲۶) رقم (۳۱۸۴)-
[12]) تهذیب الکمال(۱۷/۷)-
[13]) کشف الباری(۱/۳۲۶)-

عمر بن الخطاب ﷺ نوسي ابوعمر يا ابوعبدالله سالم بن عبدالله بن عمر بن الخطاب قرشي عدوي مدني رحمه الله دي ددوي حالات د "كتاب الايمان" باب الحياء من الايمان" د لاندې تير شوي دي.[1]

⑥ **ابوبكربن سليمان بن ابی حثمه:** دا ابوبكر بن سليمان بن ابی حثمه قرشي عدوی مدنی رحمه الله دی.[2]

د ابوبكر د كنيت نه مشهور دي د دوی بل نوم نشته.د ابوحثمه نوم عبدالله بن حذيفه دي،بعضو عدی بن حاتم وئيلي دي[3]

دوی د حكيم بن حزام، سعيدبن زيدبن عمروبن نفيل، عبدالله بن عمر، سليمان بن ابی حثمه، ابوهريره، ام المومنين حفصه بنت عمر بن الخطاب او الشفاء ﷺ نه روايت كوی.

ددوی نه روايت كوونكو كښې ابن شهاب زهری، اسماعيل بن محمدبن سعد بن ابی وقاص، صالح بن كيسان.محمد بن منكدر، خالد بن الياس، او يزيدبن قسيط رحمهم الله شامل دی[4]

امام زهری رحمه الله فرمائی "كان من علماء قريش".[5]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی "ثقة عارف بالنسب".[6]

ابن حبان رحمه الله دوی په كتاب الثقات كښې ذكر كړي دی[7] رحمة الله تعالى رحمة واسعة

⑦ **عبدالله بن عمر ﷺ:** د عبدالله بن عمر ﷺ حالات د "كتاب الايمان" باب الايمان وقول النبی ﷺ: بنی الاسلام علی خمس" د لاندې تير شوي دی[8]

**قوله: صلی بنا رسول الله ﷺ العشاء فی آخر حياته:** حضورپاك ﷺ مونږ ته په اخری ژوند كښې د ماسخوتن مونځ راكړو،

دحضرت جابر ﷺ په روايت كښې د حضورپاك ﷺ د وفات نه يو مياشت مخكښې وضاحت موجود دي: "سمعت النبی ﷺ يقول قبل ان يموت بشهر".[9]

د حضرت ابوسعيد خدری ﷺ روايت دي: لما رجع النبی ﷺ من تبوك سالوه عن الساعة فقال

---

[1]) كشف الباری(۲/۱۲۸)-

[2]) تهذيب الكمال(۳۳/۹۳)-

[3]) عمدة القاری(۲/۱۷۶) وتهذيب الكمال(۳۳/۹٤)-

[4]) تهذيب الكمال(۳۳/۹٤۹-

[5]) حواله بالا

[6]) تقريب التهذيب (ص۶۲۳) رقم(۷۹۶۷)-

[7]) الثقات لابن حبان(۵/۵۶۶)-

[8]) كشف الباری(۱۶۳۷)-

[9]) صحيح المسلم كتاب فضائل الصحابة باب بيان معنى قوله ﷺ:علی راس مائة سنة لا يبقی نفس منفوسة ممن هو موجود الان رقم(۶٤۸۱) و(۶٤۸۳)-

رسول الله ﷺ لا تأتي مائة سنة وعلى الارض نفس منفوسة اليوم ([1])
یعنی "د تبوک نه واپس راتلو په وخت هر کله چې حضورپاک ﷺ نه د قیامت باره کښې تپوس اوکړې شو نو دا ارشار نې اوفرمائیلو، چې د هغې حاصل دادې چې هغوې اوفرمائیل چې نن څومره خلق ژوندی دی په دوی باندې به سل کاله تیر نه وی چې ټول به ختم شی.

**قوله: فلما سلم قام، فقال:** کله چې هغوی سلام اوګرځولو نو پاسیدو او وئې فرمائیل:

ارایتکم لیلتکم هذه؟

آیا تاسو دا شپه اولیدله؟ (دا یاده ساتئ)

"ارایتکم" کښې همزه د استفهام د پاره ده اودا جمله د استخبار د پاره راځی یعنی دا د "اخبرونی" په معنی کښې ده، ځکه چې لیدل د خبر ورکولو سبب دې او مقصود دلته زورنه ده، یعنی دا شپه یاده ساتئ ([2])

مطلب دادې چې حضورپاک ﷺ چې "ارایتکم لیلتکم هذه؟" اوفرمائیل د دې معنی دا شوه چې اووایئ دا کومه شپه ده؟ او دا به هغه کس وائی چاته چې دا شپه معلومه وی، نو حضور پاک ﷺ خو د شپې متعلق صورة خبر معلوم کړې دې او په حقیقت کښې په دې باندې زورنه ده چې دا شپه یاده کړئ او یاد ئې اوساتئ.

**قوله: فان راس مائة سنة منها لا یبقی ممن هو علی ظهر الارض احد:** ځکه چې د دې شپې نه سل کاله پس به په دې زمکه کښې چې اوس څوک موجود دی، دې کښې به څوک هم پاتې نه شی.

هم دا روایت مخکښې راروان دې په هغې کښې دی "یرید بذلك انها تخرم ذلك القرن" ([3]) یعنی مطلب دادې چې دا به سلو کالو پورې ټول اهل قران ختم کړی

**د حدیث شریف مفهموم او مقصد:** د حدیث شریف مفهوم خو ښکاره دې چې حضورپاک ﷺ پیشن ګوئی فرمائیلې ده چې اوس وخت څومره خلق موجود دی د نن نه سل کاله پوره کیدو نه پس به څوک به باقی پاتې نه وی.

ابن بطال رحمه الله فرمائی چې دې ارشاد پاک سره هغوی ښودنه کول غواړی چې راتلونکې سل کښې دننه دننه ټول به ختم شی ستاسو عمرونه د مخکښې امتونو په شان اوږده نه دی نو لهذه دا لنډی عمرونه مو په کار راولئ او په عبادت کښې د څه محنت نه کار واخلئ. ([4])

امام نووی فرمائی چې د دې مقصد دا دې چې په دغه شپه څومره خلق د زمکې په مخ باندې

---

[1]) صحیح المسلم کتاب فضائل الصحابة باب بیان معنی قوله ﷺ علی راس مائة سنة لا یبقی نفس منفوسة الخ رقم(٦٤٨٥)-

[2]) فتح الباری(٢١١/١)-

[3]) صحیح البخاری(٨٤/١)-

[4]) صحیح البخاری لابن بطال(١٩٢/١)-

وو د هغوى باره كښې نې خبر وركړې دې چې دوى به سل كالو نه زيات نه پاتې كيږى، كه ددوى عمر دې نه مخكښې كم وى او كه زيات[1]

**تنبيه** امام ابوامامه بن النقاش رحمه الله ددې حديث نه په دې خبره استدلال كړې دې چې په دې امت كښې به د يو سړى عمر د سلو كالو نه نه زياتيږى[2]

خو محققين علماؤ دا رد كړې ده چې د حضورپاك ﷺ مقصد دا نه وو بلكه د هغوى دا مطلب وو چې د هغوى ارشاد په وخت كښې چې كوم خلق موجود دى په دې كښې به سل كاله پس څوک هم موجود نه وى ټول به سل كاله تيريدو سره ختم شى او هم دغه اوشوه، د ابو امامه وينا چې څوک به هم سل كاله پس ژوندې نه وى، غلطه ده[3]

چنانچه په صحابه كرامو كښې د حضرت حكيم بن حزام بن خويلد، حسان بن ثابت، حويطب بن عبدالعزى، سعيدبن يربوع، حمنن بن عوف او د مخرمه بن نوفل رضي الله عنهم عمرونه د يو سل شلو پورې وو[4]

دغه شان د حضرت انس رضي الله عنه عمر هم د سلو كالو نه اوړيدلې وو[5]

دغه شان حضرات تابعينو كښې او بيا د هغې نه پس محدثينو كښې ډير حضرات داسې تير شوې دى چې هغوى د سلو كالو نه زيات عمر اوموندلو[6]

حافظ ذهبى دې سلسله كښې يو مستقل رساله ليكلې ده چې د هغې نوم "كتاب اهل المائة فصاعدا" دې

**د ذكر شوې پيشن ګويۍ تحقيق**: حضورپاك ﷺ په ۱۰ هجرۍ كښې چې كومه پيشن ګوئى فرمائيلې وه چې د نن نه سل كاله پس به په موجوده خلقو كښې څوک هم ژوندې نه وى، تكې په تكې پورا شوه. چنانچه په صحابه كرامو كښې د ټولو نه آخر وفات كيدونكې حضرت عامر بن واثله ليثى رضي الله عنه وو، چې دهغوى د وفات په باره كښې آخرى قول ۱۱۰ هجرى دې، چې د هغې تصحيح حافظ ذهبى رحمه الله كړې دې[7]

باقى چې څومره صحابه كرام دى هغوى ټول دې هجرئى نه مخكښې وفات شوې وو.

**حيات خضر**: د حديث الباب نه د خضر د وفات منوونكى دليل نيسى، ځكه چې:

---

[1] شرح النووى على صحيح المسلم(۲/۳۱۰) كتاب فضائل الصحابة باب بيان معنى قوله ﷺ: على راس مائة سنة لا يبقى..الخ)-

[2] الاجوبة المرضية للسخاوى(۲/۳۸۰)-

[3] حواله بالا

[4] فتح المغيث للعراقى(۴۵۵-۴۵۷)-

[5] قال الذهبى فى الكاشف(۱۰/۲۵۶) رقم(۴۷۷) "جاوز المائة")-

[6] كالقاضى شريح،فانه عمر نحو مائة وثمان سنين او اكثر.انظر تقريب التهذيب(ص۲۶۵) وكالقاضى ابى طيب طاهربن عبدالله الطبرى فانه عاش مائة سنة وسنتين.انظر وفيات الاعيان لابن خلكان(۲/۵۱۴)-

[7] قال الذهبى رحمه الله فى الكاشف (۱/۵۲۷) رقم(۲۵۴۸) وبه ختم الصحابة فى الدنيا مات سنة عشر ومائة على الصحيح")-

"فان على راس مائة سنة لايبقى ممن هوعلى ظهرالارض احد"

او د حيات خضر قائلين وائى چې دې حديث كښې د "على ظهرالارض" قيد دې او خضر عليه السلام هغه وخت سمندر كښې وو، يا دا چې دې حديث د عموم نه خضر عليه السلام مخصوص دې، څنګه عيسى عليه السلام او دغه شان ابليس د دې نه برى دى.[1]

د حيات خضر بحث مونږ په كتاب العلم "باب ما ذكر فى ذهاب موسى ﷺ فى البحر الى الخضر" كښې كړې دې.[2]

**د حديث الباب د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حديث باب د ترجمة الباب سره مطابقت ښكاره دې ځكه چې په دې كښې دى "صلى بنا النبى ﷺ العشاء فى آخر حياته فلما سلم قام فقال: ارايتكم" ګويا حضور پاك ﷺ د عشاء نه پس خبرې اوكړې او دا سمر فى العلم ده، يعنى د شپې په وخت كښې د علمى خبرو ياددهانى ده_ والله سبحانه وتعالى اعلم

[۱۱۷] حَدَّثَنَا آدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا الْحَكَمُ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ[3] قَالَ بِتُّ فِي بَيْتِ خَالَتِي مَيْمُونَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ زَوْجِ النَّبِيِّ صلى الله عليه

---

[1]) فتح البارى(۶/۴۳۴)كتاب احاديث الانبياء باب حديث الحضر مع موسى عليهما السلام)-

[2]) كشف البارى(۳/۳۴۵-۳۵۰)-

[3]) قوله: عن ابن عباس رضى الله عنهما: الحديث، اخرجه البخارى أيضا فى صحيحه (ج۱ص۲۵) كتاب الوضوء باب التخفيف فى الوضوء، رقم (۱۳۸) و(ج۱ص۳۰) كتاب الوضوء، باب قراءة القرآن بعد الحدث وغيره، رقم(۱۸۳) و(ج۱ص۹۷) كتاب الأذان، باب يقوم عن يمين الامام بحذائه سواء اذا كان اثنين، رقم (۶۹۷)، وباب اذا قام الرجل عن يسار الامام، رقم (۶۹۸) وباب اذا لم ينو الامام أن يؤم ثم جاء قوم فأمهم، رقم(۶۹۹) و(ج۱ ص۱۰۰) كتاب الأذان، باب اذا قام الرجل عن يسار الامام، رقم (۷۲۶) و(ج۱ ص۱۰۱) كتاب الاذان، باب ميمنة المسجد والامام، رقم (۷۲۸) و(ج۱ ص۱۱۸) كتاب الاذان، باب وضوء الصبيان..... رقم (۸۵۹) و (ج۱ ص۱۳۵) كتاب الوتر، باب ماجاء فى الوتر، رقم (۹۹۲) و(ج۱ ص۱۵۹ و ۱۶۰)، كتاب العمل فى الصلاةو باب استعانة اليد فى الصلاة اذا كان من أمر الصلاة، رقم (۱۱۹۸) و(ج۲ص۶۵۷) كتاب التفسير، سورة آل عمران، باب (ان فى خلق السموٰت والأرض.....) الآية، رقم (۴۵۶۹)، وباب (الذين يذكرون الله قياما وقعوداً وعلى جنوبهم.....)، رقم (۴۵۷۰)، وباب (ربنا انک من تدخل النار فقد أخزيته.......) رقم (۴۵۷۱) وباب (ربنا اننا سمعنا مناديا ينادى للايمان) رقم (۴۵۷۲، و(ج۲ ص۸۷۷) كتاب اللباس، باب الذوائب، رقم (۵۹۱۹) و(ج۲ ص۹۱۸) كتاب الأدب، باب رفع البصر الى السماء، رقم (۶۲۱۵) و(ج۲ ص۹۳۴ و۹۳۵) كتاب الدعوات، باب اذا انتبه بالليل، رقم (۶۳۱۶) و(ج۲ ص۱۱۱۰) كتاب التوحيد، باب ما جاء فى تخليق السماوات والارض وغيرها من الخلائق، رقم (۷۴۵۲) ومسلم فى صحيحه فى كتاب الطهارة، باب السواک، رقم (۵۹۶) وفى كتاب الصلاة المسافرين، باب صلاة النبى (ص) دعائه بالليل، رقم (۱۷۸۸- ۱۸۰۱) والنسائى فى سننه، فى كتاب الأذان، باب ايذان المؤمنين الأئمة بالصلوة، رقم (۶۸۷) وفى كتاب الافتتاح، باب الدعاء فى السجود رقم (۱۱۲۲)... [بقيه حاشيه په راروانه صفحه..

وسلم - وَكَانَ النَّبِي صلى الله عليه وسلم - عِنْدَهَا فِي لَيْلَتِهَا، فَصَلَّى النَّبِي صلى الله عليه وسلم - الْعِشَاءَ، ثُمَّ جَاءَ إِلَى مَنْزِلِهِ، فَصَلَّى أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ، ثُمَّ نَامَ، ثُمَّ قَامَ، ثُمَّ قَالَ «نَامَ الْغُلَيِّمُ» . أَوْ كَلِمَةً تُشْبِهُهَا، ثُمَّ قَامَ فَقُمْتُ عَنْ يَسَارِهِ، فَجَعَلَنِي عَنْ يَمِينِهِ، فَصَلَّى خَمْسَ رَكَعَاتٍ ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ نَامَ حَتَّى سَمِعْتُ غَطِيطَهُ - أَوْ خَطِيطَهُ - ثُمَّ خَرَجَ إِلَى الصَّلَاةِ [۱۳۸، ۱۸۱، ۶۶۵- ۶۶۷، ۶۹۳، ۶۹۵، ۸۲۱، ۹۴۷، ۱۱۴۰، ۴۲۹۳- ۴۲۹۶، ۵۵۷۵، ۵۸۶۱، ۵۹۵۷، ۷۰۱۴]

## رجال الحديث

① **ادم**: دا آدم بن ابی ایاس عبد الرحمن العسقلانی رحمه الله دې د دوی حالات د "كتاب الايمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده" د لاندې تير شوي دی([1])

② **شعبه**: دا امام شعبه بن الحجاج بن الورد عتكى بصرى رحمه الله دې ددوی حالات هم دې ذکر شوي باب کښې تير شوي دی([2])

③ **الحكم**: دا الحكم - بفتح الحاء المهملة والكاف_بن عتيبة_مصغرا_ الكندى الكوفي رحمه الله دې ابومحمد يا ابوعبدالله يا ابو عمر ئې كنيت دې.

دوی د عدی بن عدی کندی یا قبیله کنده د یوې ښځې مولی وو([3])

دوی د ابوجحیفه السوائی رضی الله عنه نه علاوه قاضی شریح، عبدالرحمن بن ابی لیلی، ابووائل شقیق بن سلمه، ابراهیم نخعی، سعیدبن سعد، طاؤس، عکرمه، مجاهد، عمروبن میمون، عامر شعبی، عطا ابن ابی رباح، مقسم، قیس ابن ابی حازم، ابوصالح السمان او ابراهیم تیمی رحمهم الله وغیره نه روایت کوی،

د دوی نه حدیث نقل کوونکو کښې منصوربن المعتمر، امام اعمش، مسعر بن کدام، مالک بن معول، امام اوزاعی، امام شعبه، ابوعوانه اوحمزة بن حبیب الزیات وغیره ډیر حضرات دی([4])

---

بقيه حاشيه د تيرمخ] وفي كتاب قيام الليل، باب ذكر ما يستفتح به القيام، رقم (۱۶۲۰، ۱۶۲۱) وباب ذكر الاختلاف على حبيب بن أبي ثابت فى حديث ابن عباس فى الوتر رقم (۱۷۰۵- ۱۷۰۷) وأبوداؤد في سننه، فى كتاب الطهارة، باب السواک لمن قام من الليل، رقم (۵۸) وفى كتاب الصلاة، باب الرجلين يؤم أحدهما صاحبه كيف يقومان؟ رقم (۶۱۰ و ۶۱۱) وفى كتاب التطوع، باب فى صلاة الليل، رقم (۱۳۵۳- ۱۳۵۸) و (۱۳۶۴و ۱۳۶۵) و (۱۳۶۷)، والترمذى فى جامعه، فى كتاب الصلاة، باب ما جاء فى الرجل يصلى ومعه رجل، رقم (۲۳۲) وابن ماجه فى سننه، فى كتاب اقامة الصلاة، باب ما جاء فى الدعاء اذا قام الرجل من الليل، رقم (۱۳۵۵) وباب ما جاء فى كم يصلى بالليل، رقم (۱۳۶۳).

[1]) كشف البارى(۱/۶۷۸)-

[2]) كشف البارى(۱/۶۷۸)-

[3]) تهذيب الكمال(۷/۱۱٤)-

[4]) تهذيب الكمال(۷/۱۱۵-۱۱۷)-

امام اوزاعی رحمہ اللہ فرمائی "ما بین لابیتہا افقہ منہ" (۱)

مجاھد بن رومی رحمہ اللہ فرمائی "رایت الحکم فی مسجد الخیف وعلماء الناس عیال علیہ" (۲)

عباس دوری رحمہ اللہ فرمائی "وکان صاحب عبادة وفضل" (۳)

سفیان بن عیینہ رحمہ اللہ فرمائی "ماکان بالکوفة بعد ابراھیم والشعبی مثل الحکم وحماد" (۴)

عبدالرحمن بن مہدی فرمائی "ثبت ثقة" (۵)

عبداللہ بن احمد بن حنبل رحمہما اللہ فرمائی "سالت ابی: من اثبت الناس فی ابراھیم؟ قال: الحکم بن عتیبة، ثم منصور" (۶)

امام یحیی بن معین رحمہ اللہ فرمائی "الحکم بن عتیبة ثقة" (۷)

امام ابوحاتم رحمہ اللہ فرمائی "ثقة" (۸)

امام نسائی رحمہ اللہ فرمائی "ثقة ثبت" (۹)

امام عجلی رحمہ اللہ فرمائی "ثبت ثقة فی الحدیث وکان من فقہاء اصحاب ابراھیم وکان صاحب سنة واتباع" (۱۰)

یعقوب بن سفیان رحمہ اللہ فرمائی: "کان فقیہا ثقة" (۱۱)

ابن سعد رحمہ اللہ فرمائی "کان الحکم بن عتیبة ثقة، فقیہا، عالما، عالیا، رفیعا، کثیر الحدیث" (۱۲)

حافظ ذہبی فرمائی "فقیہ الکوفة مع حماد ..... عابد، قانت، ثقة، صاحب سنة" (۱۳)

البتہ عجلی رحمہ اللہ فرمائی "وکان فیہ تشیع الا ذلک لم یظہر منہ الا بعد موتہ" (۱۴)

---

۱) تہذیب الکمال(۱۱۷/۷)-
۲) حوالہ بالا
۳) تہذیب الکمال(۱۱۸/۷)-
۴) حوالہ بالا
۵) حوالہ بالا
۶) تہذیب الکمال(۱۱۸،۱۱۹/۷)-
۷) تہذیب الکمال(۱۱۹/۷)-
۸) حوالہ بالا
۹) حوالہ بالا
۱۰) تہذیب التہذیب(۴۳۴/۲)-
۱۱) تہذیب التہذیب (ج۲ ص ۴۳۴)
۱۲) الطبقات لابن سعد(۳۳۲/۶)-
۱۳) الکاشف(۳۴۴/۱) رقم(۱۱۸۵/۷)-
۱۴) تہذیب الکمال(۱۱۹/۷)-

دغه شان د امام شعبه نه نقل دی "كان الحكم يفضل عليا على ابى بكر وعمر"(١)
خو حقيقت دادې چې دا خبره شاذ او مردود ده. ډيرو حضراتو دده د "صاحب سنة" تصريح کړې ده، او چا هم د تشيع ذکر نه دې کړې.
بيا حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي چې د امام شعبه دا قول د سليمان شاذ کوني په واسطه سره نقل دې او شاذکوني اعتباري نه دې چنانچه حافظ ذهبي فرمائي "الشاذکوني ليس بمعتمد وما اظن ان الحكم يقع منه هذا"(٢)
دغه شان ابن حبان رحمه الله د دوی تذکره چې کله په الثقات کښې اوکړه نو ورسره ئې دا هم اوليکل "كان يدلس"(٣) په دې بنياد باندې حافظ ابن حجر د دوی باره کښې ليکلې دی "ثقة، ثبت، فقيه الا انه ربما دلس"(٤)
خو په خپله حافظ ابن حجر رحمه الله دوی په خپل کتاب "تعريف اهل التقديس بمراتب الموصوفين بالتدليس" کښې په دويمه طبقه د مدلسينو کښې شمير کړې دې دا دويمه طبقې والاحضرات هغه خلق دی چې د ائمه کبار نه دی او د هغوی د عمومي رواياتو په مقابله کښې تدليس ډير کم دې، لهذه د هغوی د امامت، اوچت شان، او د قلت تدليس د وجه نه ائمه د دوی د تدليس تحمل هم کړې دې او په خپل "صحيح" کښې د دوی احاديث قبول کړې هم دی(٥)
زورنه: امام بخاری د دوی د تذکرې په آخره کښې ليکی: "وقال بعض اهل النسب: الحكم بن عتيبة بن النهاس، اسمه عبدل، من بنى سعد بن عجل بن لجيم، فلا ادرى حفظه ام لا؟(٦)
يعنی بعضې نسبنامو د "حکم بن عتيبه" نسب نامه ليکلو کښې دا تفصيل ذکر کړې دې، معلومه نه ده چې هغوی په صحيح توګه باندې ياد کړې دې او ليکلې دې يا نه؟
نو ګويا امام بخاری د احتمال په درجه کښې ذکر کوی چې "الحكم بن عتيبة" چې کوم فقيه مشهور دې هغه، او دا "الحكم بن عتيبه بن النهاس" يو کس دې.
په اصل کښې دلته د بعضې علماؤ باندې خلط راغلې دې نو هشام بن الکلبی د ټولو نه مخکښې د دوی نسب نامه دغه شان ذکر کړه، د دې نه پس ابن حبان او ابواحمد الحاکم د دوی په اتباع کښې هم دا خبره نقل کړه، ښکاری چې دا دواړه د دوی په نيز په يقين سره يو سړې وو(٧)

---

(١) سير اعلام النبلاء (٥/٢٠٩)-
(٢) حواله بالا
(٣) تهذيب التهذيب (٢/٤٣٤)-
(٤) تقريب التهذيب (ص١٧٥) رقم (١٤٥٣)-
(٥) طبقات المدلسين (تعريف اهل التقديس بمراتب الموصوفين بالتدليس) (ص٥٨)-
(٦) التاريخ الكبير (٢/٣٣٣) رقم (٢٦٥٤)-
(٧) تهذيب التهذيب (٢/٤٣٥) وتعليقات التاريخ الكبير (٢/٣٣٣-٣٥)-

او حافظ ذهبى وغيره په يقين سره دا بيان كړې دې چې الحكم بن عتيبه چې مشهور فقيه دې هغه جدا دې او الحكم بن عتيبه بن النهاس يو بيل سړې دې. آخرى ذكر كړې شوې د كوفې قاضى وو او د ده نه يو روايت نقل نه دې (۱)
امام بخارى ته په يقين سره دا خبره منسوب كول صحيح نه دى معلوميږى چې هغوى دواړه يو گنړل. هغوى د بعضې اهل نسب ذكر كولو سره صرف د يو احتمال ذكر كړې دې (۲)، والله اعلم
د الحكم بن عتيبه رحمه الله ولادت د ابراهيم نخعى د پيدائش په كال ۴۲ هجرنى كښې اوشو، او په ۱۱۵ هجرنى كښې وفات شو (۳) رحمه الله تعالى رحمة واسعة

(۵) سعيدبن جبير: دا مشهور تابعى عالم امام سعيدبن جبيربن هشام اسدى والبى كوفى رحمه الله دې ابو محمد يا ابوعبدالله د دوى كنيت دې (۴)
دوى په صحابه كرامو كښې د حضرت ابن عباس، عبدالله بن مغفل. حضرت عائشه. عدى بن حاتم، ابوموسى اشعرى، ابوهريره. ابومسعود بدرى (وهو مرسل)، ابن عمر. عبدالله بن زبير. ضحاك بن قيس، انس او د ابوسعيد خدرى رضي الله عنهم نه روايت د حديث كوى.
د دوى نه روايت كوونكو كښې ابوصالح السمان، ايوب سختيانى. سلمة بن كهيل. سليمان الاحول، امام اعمش، عدى بن ثابت، عطاء بن السائب، مالك بن دينار. مجاهد. امام زهرى، موسى ابن ابى عائشه، ابواسحاق سبيعى او ابو الزبير مكى رحمهم الله په شان ډير حضرات تابعين او اتباع تابعين دى. (۵)
امام نووى رحمه الله فرمائى "كان سعيد من كبار ائمة التابعين متقدميهم فى التفسير والحديث والفقه والعبادة والورع وغيرها من صفات اهل الخير" (۶)
امام سفيان ثورى رحمه الله دوى له په ابراهيم نخعى رحمه الله باندې علمى اعتبار سره فوقيت وركوى (۷)، چې د ابن عباس رضي الله عنهما نه به اهل كوفه مسائل تپوس كولې نو وونيل به نې "اليس منكم سعيد بن جبير؟" (۸)
ميمون بن مهران رحمه الله فرمائى "لقد مات سعيد بن جبير وما على الارض احد الا وهو محتاج الى علمه" (۹)

---

(۱) ميزان الاعتدال (۵۷۷/۱)-
(۲) تهذيب التهذيب (۴۳۵/۲)-
(۳) سير اعلام النبلاء (۲۱۲/۵)-
(۴) تهذيب الكمال (۳۵۸/۱۰)-
(۵) تهذيب الكمال (۳۵۸/۱۰)- (۳۶۱)-
(۶) تهذيب الاسماء واللغات (۲۱۶/۱)-
(۷) تهذيب الاسماء واللغات (۲۱۶/۱)-
(۸) حواله بالا وسير اعلام النبلاء (۳۲۵/۴)-
(۹) سير اعلام النبلاء (۳۲۵/۴)-

حصیف رحمه الله فرمائی: "کان اعلمهم بالقران مجاهد واعلمهم بالحج عطاء، واعلمهم بالحلال والحرام طاووس، واعلمهم بالطلاق سعید بن المسیب، واجمعهم لهذه العلوم سعید بن جبیر". [1]

علی بن المدینی فرمائی "لیس فی اصحاب ابن عباس مثل سعید بن جبیر، قیل: ولا طاووس؟ قال: ولا طاووس، ولا احد". [2]

ابو القاسم هبة الله بن الحسن طبری رحمه الله فرمائی "هو ثقة امام حجة علی المسلمین". [3]
د حضرت سعید بن جبیر رحمه الله په اوچت شان او امامت باندې د علماؤ اتفاق دې، او د دوی مناقب او فضائل هم زیات دی، ۹۴ه کښې د حجاج بن یوسف د لاسه شهید شو. [4]

⑤ **ابن عباس رضي الله عنهما**: د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما حالات د "بدء الوحی" د څلورم نمبر حدیث لاندې [5] او کتاب الایمان "باب کفران العشیر وکفر دون کفر" لاندې هم راغلي دی. [6]

**بت فی بیت خالتی میمونة بنت الحارث زوج النبی صلی الله علیه وسلم وکان النبی صلی الله علیه وسلم عندها فی لیلتها.**
ما د خپلې ترور میمونه بنت الحارث، چې د حضورپاک صلی الله علیه وسلم بی بی ده، په کور کښې شپه تیره کړه، حضورپاک صلی الله علیه وسلم د هغوی د نمبر په شپه کښې هغوی سره وو.

دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما دې حدیث ته "لیلة التبییت" والا حدیث وئیلې شی، امام بخاری دلته مختصرا او مخکښې تفصیلا د دې تخریج کړې دې. [7]
حضرت ابن عباس رضي الله عنهما چې کومه واقعه بیان کړې ده. دغه وخت د هغوی عمر لس کاله وو څنګه چې مسند احمد کښې وضاحت راغلې دې. [8]
**میمونه بنت الحارث رضي الله عنها**: دا أم المومنین میمونه بنت الحارث رضي الله عنها ده، مخکښې د دې نوم "بره" وو، حضورپاک صلی الله علیه وسلم دا بدل کړو او "میمونه" ئې کېښودلو. [9]
په جاهلیت کښې ددوی نکاح مسعود بن عمر سره شوې وه، هغه دوی پرېښودل، نو د ابورهم په نکاح کښې راغله، د ابورهم د وفات نه پس د حضورپاک صلی الله علیه وسلم په زوجیت کښې راغله. [10]

---

[1] سیراعلام النبلاء (۳٤۱/٤)-
[2] حواله بالا
[3] تهذیب الکمال (۳۷۶/۱۰)-
[4] تهذیب الکمال وتعلیقات الکمال (۳۷۶/۱۰) تهذیب الکمال (۳۵۸/۱۰-۳۷۶) وسیراعلام النبلاء (۳٤۳۳۲۱/٤) والطبقات الکبری لابن سعد (۲۵۶/۶-۲۶۷) وتهذیب الاسماء واللغات (۲۱۶/۱)-
[5] کشف الباری (٤۳۵/۱)
[6] کشف الباری (۲۰۵/۲)-
[7] قد مر تخریجه آنفا)-
[8] مسند احمد (۳۶٤/۱) رقم (۳٤۳۷)-
[9] السیرة الحلبیة (۳۲۳/۳) والطبقات الکبری لابن سعد (۱۳۷/۸)-
[10] السیرة الحلبیة (۳۲۳/۳) والاصابة (٤۱۱/٤ و٤۱۲) والطبقات (۱۳۲/۸)-

حضرت میمونه رضي الله عنها د ابن عباس او خالد بن ولید رضي الله عنهما ترور وه[1] د حضرت عباس رضي الله عنه بی بی، د ابن عباس رضي الله عنهما مور، ام الفضل لبابه بنت الحارث سکه خور، اسماء بنت عمیس، سلمی بنت عمیس، زینب بنت خزیمه، دا درې واړه د حضرت میمونه مور شریک خوریانې وې[2]
په ۷ هجرئی کښې چې کله حضورپاک صلی الله علیه وسلم عمرة القضاء له تشریف اوړې وو، په دغه موقع کښې دوی سره نکاح اوکړه[3]
ابن سعد رحمه الله فرمائی چې دا د هغوی آخری بی بی وه، چې دې نه پس هغوی بله نکاح چاسره اونه کړه[4]
حضورپاک صلی الله علیه وسلم چې کله د جعفر بن ابی طالب په ذریعه د نکاح پیغام وراولیږلو، نو هغوی حضرت عباس رضي الله عنه خپل وکیل جوړ کړو، او دغه عباس رضي الله عنه د دوی نکاح اوکړه[5]
د حضرت میمونه رضي الله عنها نکاح د احرام په حالت کښې شوې وه یا حضورپاک صلی الله علیه وسلم په دغه کښې وخت کښې بغیر احرام وو؟ په دې کښې روایات مختلف دی دا ځائې د هغې تفصیل نه دې، خو بیا هم ابن حجر رحمه الله لیکی: "ومنهم من عقد علیها وهو محرم وبنی بها بعد ان احل من عمرته بالتنعیم وهوحلال فی الحل، وذلك بین من سیاق القصة عند ابن اسحاق"[6]
د حضرت میمونه رضي الله عنها نه تقریبا چیالیس احادیث روایت شوې دی، په هغې کښې اووه احادیث متفق علیه دی، په هغې کښې په یو حدیث کښې امام بخاری او پنځو احدیث کښې امام مسلم متفرد دې[7]
د حضرت میمونه رضي الله عنها وفات د صحیح قول مطابق په ۵۱ هجرئی کښې د سرف په مقام باندې اوشو، او هم هلته کښې دفن شوه[8] رضی الله عنها وارضاها

**قوله: فصلی النبی صلی الله علیه وسلم العشاء ثم جاء الی منزله فصلی اربع رکعات ثم نام، ثم قام، ثم قال: نام الغلیم، اوکلمة تشبهها، ثم قام فقمت عن یساره، فجعلنی عن یمینه، فصلی خمس رکعات، ثم صلی رکعتین:** حضورپاک صلی الله علیه وسلم د ماسخوتن مونځ اوکړو، بیا ئې خپل کور ته تشریف راوړو، هغوی څلور رکعاته اوکړل، بیا پاسیدو، بیا اوده شو، بیا پاسیدو، بیا اوفرمائیل چې ماشوم اوده شو؟ یا ئې دا سې څه خبره اوکړه، بیا هغوی پاسیدل او څه د هغوی ګس لاس ته اودریدم، نو هغوی څه ښی طرف ته کړم او بیا ئې پنځه

[1] السیرة الحلبیة(۳/۳۲۳)-
[2] حواله بالا
[3] الاصابة(٤/٤١١)-
[4] الطبقات الکبری لابن سعد(۸/۱۳۲)-
[5] الاصابة(٤/٤١١و٤١٢)-
[6] الاصابة(٤/٤١٢)-
[7] خلاصة الخزرجی(ص٤۹۶)-
[8] الاصابة(٤/٤٢٣) والسیرة الحلبیة(۳/۳۲۳)-

رکعاته ادا کړل،او بیا ئې دوه رکعاته اوکړل.

**قوله:** نام الغليم: غليم یائې مکسوره مشدده سره د غلام تصغیر دې دا تصغیر د شفقت د پاره دې[1]

حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائی: لعل ذلك كان استفهام او اخبار ليشغل ببعض ما يفعله باهله من الملاعبة وغيرها.[2]

مطلب دادې چې ددې جملې د وئیلو دا مقصد وو چې حضورپاک ﷺ خپل کور والا سره ملاعبت کول غوښتل،ظاهره ده چې ددې د پاره د تستر یعنی د پردې ضرورت رازی ځکه حضور پاک ﷺ اوفرمائیل: نام الغليم.

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په حدیث کښې اختلاف دې چې هغوی څومره رکعتونه کړې وو. بعضو کښې یوولس،بعضو کښې دیارلس،بعضو کښې پنځلس او بعضو کښې د اوولسو ذکر دې.

په کومو روایاتو کښې چې اوولسو رکعاتو ذکر دې په هغې کښې آخری دوه رکعاته د فجر سنت متعلق دې،دولس رکعاته نوافل او درې رکعاته د وتر دی.

چې په کوم کښې د پنځلسو ذکردې په هغې کښې د فجر د دوو رکعاتو ذکر پرېښودې دې.

چې په کوم روایات کښې د دیارلسو ذکر دې،په هغې کښې اته رکعاته نوافل دی درې رکعاته وتر دی او په اخر کښې دوه رکعاتونه د فجر سنت دی.

بیا چې په کوم رکعات کښې د یوولسو رکعاتو ذکر دې په هغې د فجر سنت ذکر نه دی،اته رکعاته نوافل دی او درې رکعاته وتر دی.

دلته چې ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی: ثم جاء الى منزله فصلى اربع ركعات. یعنی هغوی د ماسخوتن مونځ کولو نه پس کور ته راغللو او څلور رکعاته ئې ادا کړل،او غالبه دا ده چې دا څلور رکعاته د ماسخوتن سنت به وی[3]

دې نه پس هغوی ارام اوکړلو بیا څه وخت پس پاسیدلو او مونځ کول ئې شروع کړل،دغه وخت هغوی دا هم اوفرمائیل چې: نام الغليم. ماشوم اوده شو،بیا چې کله هغوی مونځ کولو نو ابن عباس رضی الله عنهما پاسیدلو او په دې مونځونو کښې ورسره شریک شو، په اخره هغوی د وتر نه هم فارغ شول. د هغې نه پس ئې چې کوم دوه رکعاته اوکړل د هغې باره کښې یو احتمال خو دادې کوم چې حافظ رحمه الله وغیره فرمائی چې دې نه پس دوه رکعاته د فجر سنت دی،دویم احتمال دا هم دې چې دا هغه دوه رکعاته دی کوم چې به حضورپاک ﷺ د وتر نه پس ادا کول.[4]

[1] شرح الكرمانى(۲/۱۳۳)-

[2] لامع الدارى(۲/۳۶۳ و ۳۶٤)-

[3] فضل البارى(۲/۱۶۱)-

[4] فتح البارى(۱/۲۱۲)-

ګویا چې په دې حدیث کښې د رکعاتو په تعداد کښې اجمال دې تفصیل هغه دې چې کوم مخکښې کتاب الوضوء وغیره کښې به رازی.[1] والله اعلم

**تنبیه** دلته مونږ د رکعاتو په تعداد کښې د تطبیق په حواله سره چې کومه خبره اوکړه، هغې صرف د ابن عباس ﷠ دې حدیث پورې متعلق ده. باقې د هغوی ﷺ د قیام اللیل کښې د رکعاتو تعداد څه وو، نو دې باره کښې به مخکښې انشاءالله په کتاب الوتر کښې بحث کیږی

**قوله: "ثم نام حتی سمعت غطیطه او خطیطه ثم خرج الی الصلاة:** بیا هغوی اوده شول تر دې چې ما د هغوی د خړیدو اواز هم واوریدلو. بیا هغوی د مونځ د پاره راووتلو.

**غطیط** د اودو په حالت کښې چې د پوزې نه چې کوم اواز بهر راوځی هغې ته وائی، یعنی خړیدل[2]

**خطیط** په قول د داؤدی د غطیط مترادف دې[3] او ابن بطال ﷫ فرمائی چې د اهل لغت په نیز د خطیط (بالخاء المعجمة) څه وجود نشته[4] قاضی عیاض هم د ابن بطال پیروی کړې ده[5]

خو ابن الاثیر ﷫ لیکلې دی چې "الخطیط قریب من الغطیط وهوصوت النائم والخاء والعین متقاربتن"[6] یعنی خطیط غطیط ته نزدې نزدې دې، د اوده کس خړیدلو ته وائی. خا او غین دواړه قریب المخرج دی څکه یو د بل په ځائې استعمالوی. تقریبا دغه خبره صاحب تاج العروس هم کړې ده[7]

**قوله: ثم خرج الی الصلاة:** بیا د سحر مونځ له اووتلو.

**د حدیث د ترجمة الباب سره مناسبت:** په دې باب امام بخاری ﷫ دوه حدیثونه ذکر کړې دی، یو د ابن عمر ﷠ حدیث دې چې د هغې مناسبت "باب السمر فی العلم" نه ښکاره دې څکه چې په دې کښې دی چې "فلما سلم قام، فقال: ارایتکم" یعنی هغوی د ماسخوتن مونځ نه د فارغ کیدلو نه پس دا خبرې اوفرمائیلې، او د ماسخوتن مونځ نه پس خبرو ته "سمر" وئیلې شی.

البته دویم حدیث چې د ابن عباس نه دې یعنی "بیتوته ابن عباس فی بیت خالته میمونة" والاحدیث مناسبت د باب نه زیات واضحه نه دې.

ددې مناسبت ښکاره کولو د پاره ابن المنیر او د هغه شاګردانو وئیلې دی چې ترجمه ددې

---

[1] تنخرج مرة فارجع هناک)-
[2] فتح البارى(۲۱۲/۱) -ومختار الصحاح(ص۴۷۶)-
[3] فتح البارى(۲۱۲/۱)-
[4] قال ابن بطال:ولم اجدها عند اهل اللغة بالخاء "شرح ابن بطال(۱۹۳/۱)-
[5] فتح البارى(۲۱۲/۱)-
[6] النهاية لابن الاثير(۴۸/۲)-
[7] تاج العروس(۱۳۱/۵)-

حدیث کښې دننه د "نام الغلیم" د جملې نه ثابتیږی[1]
بیا هغوی فرمائی چې عین ممکن ده چې ابن عباس رضی الله عنهما د حضورپاک ﷺ د ټولې شپې د احوالو نظاره ئې کوله، او هم دغه "سمر" دې او دا بله خبره ده چې دا قولی سمر نه دې بلکه فعلی سمر دې، ګویا چې ابن عباس رضی الله عنهما ټوله شپه په سمر کښې تیره کړه، ځکه چې د هغه وېښېدل او د حضورپاک ﷺ د احوالو او د افعالو نظاره کول او هغه زده کول هم "سمر" دې[2]
علامه کرمانی رحمه الله د ابن المنیر رحمه الله ددې توجیه نه علاوه دوه نورې هم توجیه کړې دی:
یو دا چې دې واقعه کښې دی چې حضورپاک ﷺ ابن عباس رضی الله عنهما لره د ګس طرف نه ښی لاس ته کړو دا اګرچه کار دې خو بیا هم وئیلې شی چې ګویا هغوی ابن عباس رضی الله عنهما ته اوفرمائیل "قف عن یمینی" او د هغوی ګس طرف ته کیدل ددې خبرې په ځائې دی چې هغه به "وقفت" وئیلې وی[3]
دویمه توجیه هغوی داکړې وه چې کله په یو ځائې کښې د خپلوانو ګنړه کیږی نو هلته څه نه څه خبرې خامخا کیږی، دلته به هم هغوی خبرې کړې وی، او دا خبره ډیره لرې ده چې حضورپاک ﷺ د ماسخوتن نه پس کور ته راغلې وی او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما هلته د اوسیدو د پاره راغلې وی او هغوی ورسره بالکل خبرې او نه کړی، یقینا هغوی به څه خبره کړې وی، او دا هم ښکاره ده چې د هغوی هره خبره به د علم او د فائدې وی. ددې نه "سمر" ثابتیږی[4]، خو حافظ ابن حجر رحمه الله دا ټول توجیهات بعید ګرځولو سره رد کړې دی.
تر څو چې د ابن المنیر د ړومبۍ توجیه تعلق دې نو هغې ته سمر ددې وجه وئیلې نشی، صرف یو نیمه جمله وئیلو ته سمر وئیلې نشی، د دې د پاره قابل اعتماد خبرې کول پکار دی[5]
دغه شان د هغوی دویمه توجیه ئې داسې رد کړې ده چې ابن عباس رضی الله عنهما چې د حضورپاک ﷺ د افعالو او احوالو ته کتلې دی نو دې ته به "سمر" یعنی "ټوله شپه ویخه" خو به وئیلې شی خو د "سمر" اطلاق په دې نه کیږی، ځکه چې په قول د اسماعیلی رحمه الله د سمر د پاره ګنړه او خبره کول ضروری دی[6]

---

[1] المتواری علی تراجم ابواب البخاری(ص۶۲) وفتح الباری(۲۱۳/۱) حضرت ګنګوهی هم د دې نه ترجمه ثابته کړې ده په دې طریقې سره چې هغوی نام الغلیم اوفرمائیل او یو جملې سره د سمر تحقق کیږی او د هغوی د جملې سره تپوس کول وو په دې مطلب چې هغوی خپلې کوروالا سره اختلاط کول غوښتل د دې جملې نه دا هم معلومه شوه چې په داسې کارونو کښې پرده کول پکار دی، او ظاهره ده چې دا علم دې لهذا سمر فی العلم ثابت شو. الکنز المتواری(۳۶٤/۲)-
[2] المتواری (ص۶۲) وفتح الباری(۲۱۳/۱)-
[3] شرح الکرمانی(۱۳٤/۲)-
[4] حواله بالا
[5] فتح الباری(۲۱۳/۱)-
[6] حواله سابقه

دغه شان حافظ رحمه الله د علامه كرماني رحمه الله په رومبي توجيه رد كولو سره فرمائي چې دا توجيه ابعد ده، ځكه چې د ګس لاس نه نبي طرف كولو دا عمل د خوب د راپاسيدو نه لږ ساعت مخكښې واقعه ده، اود خوب د راپاسيدلو نه پس خبرې كولو ته "سمر" ونيلې نشي.[۱]
بيا د علامه كرماني دويمه توجيه ده د هغې باره كښې ونيلې شي چې دا صرف قياس دې په حديث كښې داسې قسم خبره نشته چې هغې ته "سمر" اوونيلې شي.
د حافظ ابن حجر رانې داده چې امام بخاري د دې روايت په بعضې طرق كښې راغلې الفاظو طرف ته اشاره كړې ده چې په هغې كښې خه ښكاره موجود دی "فتحدث رسول الله ﷺ مع اهله ساعة"[۲]
يعنی حضورپاک ﷺ خپل كور والا سره لږې شان خبرې اوكړې" دا د خپل د وجه د خبرو هر قسم ته شامل دې ښكاره ده چې دا يو طرف ته "تحدث مع الاهل" دې نو بل طرف ته "سمر في العلم" هم دې چې د هغوی يو يو خبره سراسر علم او ديني فائده ده.[۳]
حضرت شيخ الهند رحمه الله هم دا توجيه خوښه كړې ده.[۴]
علامه عيني رحمه الله اګرچې د حافظ رحمه الله په ټول تقرير باندې اعتراض او رد كړې دې[۵] خو بيا هم د حافظ رحمه الله خبره مضبوطه ده او د امام بخاري د طرز مناسب هم ده. والله اعلم

**د سمر متعلق څه روايات:** په "سمر في العلم" كښې لاندې وركړې شوې واقعې هم راتلې شي:

(۱)..قال انس: نظرنا النبی ﷺ ذات ليلة حتی كان شطر الليل يبلغه فجاء فصلی لنا ثم خطبنا فقال: الا ان الناس قد صلوا ثم رقدوا وانكم لم تزالوا فی صلاة ما انتظرتم الصلاة.[۶]
يعنی حضرت انس رضي الله عنه فرمائي چې يو شپه مونږ د حضورپاک ﷺ انتظار كولو تر دې چې نيمه شپه شوه هغوی مونځ راكړو بيا ئې خطبه اولوستله او وئې فرمائيل واورئ: خلق مونځ كولو نه پس اوده شوې هم دی او تاسو چې تر كومه د مونځ په انتظار كښې وئ ګويا چې تاسو په مونځ كښې مشغول وئ.

(۲)..حضرت عمر رضي الله عنه فرمائي:
"كان رسول الله ﷺ يسمر مع ابی بكر فی الامر من امر المسلمين وانا معهما".[۷]

---

[۱] حواله سابقه
[۲] صحيح البخاری(۶۵۷/۲) كتاب التفسير باب "ان فی خلق السموات والارض.." رقم(۴۵۶۹) و(۱۱۱۰/۲) كتاب التوحيد باب ما جاء فی تخليق السموات والارض وغيرها من الخلائق رقم(۷۴۵۲)-
[۳] فتح الباری(۲۱۳/۱)-
[۴] الابواب والتراجم(ص ۵۶)-
[۵] عمدة القاری(۱۷۷/۲و۱۷۸)-
[۶] صحيح البخاری(۸۴/۱) كتاب مواقيت الصلاة باب السمر فی الفقه والخير بعد العشاء رقم(۶۰۰)-
[۷] جامع الترمذی ابواب الصلاة باب ما جاء فی الرخصة فی السمر بعد العشاء رقم(۱۶۹)-

يعنى حضورپاک ﷺ به د ابوبکر صديق رضي الله عنه سره د شپې د مسلمانانو د معاملاتو باره کښې خبرې کولې او څه به ورسره هم ووم

(۳)..حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه فرمائى

كان النبى ﷺ يحدثنا عن بنى اسرائيل حتى يصبح مايقوم الا الى عظم صلاة.[1]

يعنى حضورپاک ﷺ به مونږ ته د بنى اسرائيلو باره کښې خبرې کولې تر دې سحر به شو، بيا به د لونځ نه پاسيدلو يعنى د فرض مونځ د پاره به پاسيدلو.

هم دا روايت د عمران بن حصين رضي الله عنه نه هم دې[2]

(۴)..حضرت اوس بن حذيفه فرمائى: كنت فى الوفد الذين اتوا النبى ﷺ اسلموا من ثقيف من بنى مالك انزلنا فى قبة له فكان يختلف الينا بين بيوته وبين المسجد فاذا صلى العشاء الآخرة انصرف الينا ولا نبرح حتى يحدثنا ويشتكى قريشا ويشتكى اهل مكة.[3]

يعنى د قبيله ثقيف يو شاخ بنو مالک مسلمان کيدلو سره د وفد په شکل کښې راغلل. څه به دغه وفد کښې ووم، حضورپاک ﷺ مونږ يو خيمه کښې ايسار کړو. هغوى به د خپل کور او مسجد په مينځ کښې مونږ له راتللو. او چې کله به هغوى ﷺ د ماسخوتن مونځ اوکړلو نو زمونږ طرف ته به راغلو مونږ به خبرې کولې او هغوى به مونږ ته د قريشو او اهل مکه د ظلمونو خبرې کولې.

(۵)..ابن بطال رحمه الله خپل سند سره د ابوموسى اشعرى او د عمر رضي الله عنه واقعه نقل کړې ده ابوموسى اشعرى فرمائى

اتيت عمر اكلمه فى حاجة بعد العشاء فقال: هذه الساعة؟ فقلت انه شئ من الفقه قال: نعم، فكلمته، فذهبت لاقوم، فقال: اجلس فقلت: الصلاة فقال: انا فى صلاة فلم نزل جلوسا حتى طلع الفجر.[4]

يعنى څه د عشاء نه پس حضرت عمر رضي الله عنه لره د يو ضرورت د پاره راغلم هغوى اوفرمائيل. په دا وخت؟ ما ورته اووئيل چې د دين خبره ده. نو هغوى اجازت راکړو ما چې خبره اوکړه نو پاسيدلو، او وئې فرمائيل چې کينا. ما ورته اووئيل چې زه به مونځ اوکړم، نو وئې فرمائيل چې مونږ په مونځ کښې يوو، دغه شان د سحر پورې مونږ ناست وو.

**يو اشکال او دهغې حل**: د حضرت عبدالله بن مسعود يو حديث دې چې هغوى ئې مرفوعا نقل کوى "لا سمر الا لمصل او مسافر".[5]

يعنى د مونځ گزار او مسافر نه علاوه د بل چا د پاره د سمر گنجائش نشته.

[1] سنن ابى داود كتاب العلم باب الحديث عن بنى اسرائيل رقم(۳۶۶۳)-
[2] مسند احمد(۴۳۷/٤) حديث عمران بن حصين رضي الله عنه رقم(۲۰۱۶۳)-
[3] مسند احمد(۹/٤) حديث اوس بن اوس الثقفى وهو اوس بن حذيفة رقم(۱۶۲۶۶)-
[4] شرح ابن بطال(۱۹۲/۱)-
[5] مسند احمد (۴۱۲/۱)رقم(۳۹۱۷) و(٤٤٤/۱)رقم(٤٢٤٤) و(۴۶۳/۱) رقم(٤٤١٩)-

ددې روايت نه معلوميږي چې د دې دواړه كسانو نه علاوه د بل چا د پاره د "سمر" اجازت نشته دغه شان د سمر د اجازت او د "نهى عن السمر" په احاديثو كښې ښكاره توګه باندې تعارض راځي.
ددې جواب دادې چې دا روايت امام احمد رحمه الله په خپل مسند كښې تخريج كړې دې[1] ددې په دوه طرقو كښې انقطاع ده چنانچه دا خيثمه بن عبدالرحمن د عبدالله بن مسعود نه نقل كوي، حالانكه خيثمه ته د عبدالله بن مسعود نه سماع حاصله نه ده[2]
او په بل طرق كښې خيثمه د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه په واسطه سره نقل كوي او دا ئې مبهم كولو سره داسې ذكر كړې دې "عمن سمع ابن مسعود" او دا مبهم واسطه مجهول ده[3]
او كه فرض كړه دا حديث صحيح او ثابت هم وي بيا هم مونږ ونيلې شو چې "سمر في العلم" كولو والا د "مصلى" په حكم كښې دې[4]
څنګه چې حضرت عمر رضي الله عنه ابوموسى اشعرى رضي الله عنه ته اوفرمائيل "انا في صلاة"[5]
د حديث د بيتوتيت نه علماؤ ډيرې فائدې راوستلې دى چې د هغې مختصر ذكر علامه عينى رحمه الله كړې دې[6] والله اعلم وعلمه واتم واحكم

## ۴۲-باب: حفظ العلم

**دتيرشوي باب سره مناسبت:** په تيرشوى باب كښې د "سمر في العلم" ذكروو او په دې باب كښې د "حفظ علم" ددې دواړو په مينځ كښې مناسبت بالكل واضحه دې، د سمر في العلم د مقاصدو نه حفظ علم هم دې[7]
**د ترجمة الباب مقصد:** حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائي چه په دې باب سره دامام بخارى رحمه الله مقصد اسباب دحفظ علم بيانول دي او داحاديثو په ذريعه ئي اوښودله چه حفظ علم به هله حاصليږي چه كله خپل ځان دعلم دپاره مكمل طورباندې فارغه كړي[8]
حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائي چه د دې باب دبيانولو مقصد دې چه دتعلم نه پس دحفظ اودعدم نسيان كوشش هم لازمي دې، ظاهره خبره ده چې په هيرولو كښې اول كفران نعمت دې اودويم د چه دتعليم تبليغ اود عمل جمله امور ضروريه په حفظ باندې موقوف دي ـ

---

[1]) حواله سابقه
[2]) فى تهذيب الكمال ليس اسم عبدالله بن مسعود من شيوخ خيثمه، انظر تهذيب الكمال(۳۷۱/۸)-
[3]) فتح البارى(۲۱۳/۱)-
[4]) حواله بالا
[5]) شرح ابن بطال(۱۹۲/۱)-
[6]) عمدة القارى(۱۸۰/۲)-
[7]) عمدة القارى (۲ص۱۸۰) ـ
[8]) الكنزالمتوارى (ج) ۲ص۳۶۵) –

دې باب د ړومبي روايت نه معلومه شوه چه څومره په علم کښې مشغولتيا وي هغومره به په حفظ کښې قوت اومدد ملاوېږي.اود دويم روايت نه دا معلومه شوه چه دحافظې قوي کيدل هم مفيداومطلوب دی.اګرچه قوت حافظه يوخلقي امردې ليکن ددې دپاره موءيدات اومضرات وی.ددې رعايت ساتل مستحسن دی.دامام شافعي رحمه الله شعرهم داحال بيانوی

شكوت الى وكيع سوٴ حفظي فاوصاني الى ترك المعاصي

فان العلم نور من الهي ونور الله لايعطى لعاص [1]

يعنى ''ماخپل استاذ وكيع رحمه الله ته دخپلې قوت حافظې دکموالي شکايت اوکړو نوهغوی ماته دګناه دپريخودلووصيت اوکړو.ددې وجې نه چه علم دالله تعالى دنورنه يو نوردې اوظاهره ده چه الله تعالى خپل نوريو عاصي اونافرمان ته نه ورکوی..

حاصل دخبرې دادې چه امام بخاري رحمه الله ددې ترجمة الباب نه دابنودل غواړي چه طالب علم لره دحديث دياددلواهتمام پکاردې.امام بخاري رحمه الله په دې باب کښې درې روايتونه ذکرکړيدی.

ددې روايتونودکتلونه معلومعلومېږی چه دعلم دياددلودپرصورتونه دی ـ

① -اول ملازمت،يعنى داستاذحديث صحبت اختيارول اوپه کثرت سره هغه ته تګ راتګ ساتل.چه دهغه علوم بارباراوريدلواوپه ليدلو باندې راشي او دا يوه قاعده ده چه يو څيز څومره په تکرار سره مخې ته راځی نوهغه په زړه کښې قرارنيسی-دا ملازمت معلومېږی دحضرت ابوهريره رضي الله عنه ددې قول ''كان يلزم رسول الله صلى الله عليه وسلم بشبع بطنه ويحضر مالايحضرون.....نه.

② -دويم څيز هغه مذاکره ده.يعنى چه کوم علم حاصل شی دهغې کول.هغې لره باربار ربه کول او يادول اوشی.اوددې طرف اشاره ''ويحفظ مالايحفظون..نه ملاوېږی ـ

③ -دريم څيز هغه دعااو آه وزاری ده ځکه چه يوکس سره هرڅومره ذهن ولې نه وی دهغه پوهه هرڅومره تيزه ولې وی نه ليکن دالله تعالى دعنايت نه بغيرهيڅ هم نه کيږی.نولهذاحق تعالى نه دې دعا غواړی اوپه بزرګانودې دعاکوی.څنګه چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه په نبى عليه السلام باندې دعااوکړه-

④ - څلورم څيزخورول دعلم دی چه څومره دعلم دخوريدو کوشش اومحنت اوکړشی هم هغه هومره به علم محفوظ پاتې کيږی، څنګه چه دباب په اخری حديث کښې دې طرف ته اشاره ده ـــ والله اعلم

[۱۱۸] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ [2] قَالَ إِنَّ النَّاسَ يَقُولُونَ أَكْثَرَ أَبُو هُرَيْرَةَ، وَلَوْلَا آيَتَانِ فِي كِتَابِ اللَّهِ مَا

---

[1]) اوګورئ الابواب والتراجم(ص ۵۶) ـ

[2]) قوله: عن ابى هريرة رضى الله عنه: الحديث. اخرجه البخارى أيضاً فى صحيحه (ج ۱ ص ۲۲) فى كتاب. العلم. باب حفظ العلم. رقم (۱۱۹) وفى (ج ۱ ص ۲۷٤. ۲۷۵). فى .. [بقيه حاشيه به راروانه صفحه..

حَدَّثْتُ حَدِیثًا، ثُمَّ یَتْلُو(إِنَّ الَّذِینَ یَکْتُمُونَ مَا أَنْزَلْنَا مِنَ الْبَیِّنَاتِ) إِلَی قَوْلِهِ(الرَّحِیمُ) إِنَّ إِخْوَانَنَا مِنَ الْمُهَاجِرِینَ کَانَ یَشْغَلُهُمُ الصَّفْقُ بِالأَسْوَاقِ، وَإِنَّ إِخْوَانَنَا مِنَ الأَنْصَارِ کَانَ یَشْغَلُهُمُ الْعَمَلُ فِی أَمْوَالِهِمْ، وَإِنَّ أَبَا هُرَیْرَةَ کَانَ یَلْزَمُ رَسُولَ اللَّهِ-صلی الله علیه وسلم- بِشِبَعِ بَطْنِهِ وَیَحْضُرُ مَا لاَ یَحْضُرُونَ، وَیَحْفَظُ مَا لاَ یَحْفَظُونَ [۱۹۴۲، ۲۲۲۳، ۶۹۲۱]

## رجال الحدیث

① **عبدالعزیز بن عبدالله**: دا عبدالعزیزبن عبدالله بن یحي قرشي عامری اویسی مدنی رحمه الله دي.دده حالات هم په دې ''کتاب.. کښې په ''باب الحرص علی الحدیث.. لاندې تیرشوی دی-

② **مالک** دا امام مالك بن انس رحمه الله دې ددوی حالات د ''بدء الوحی.. په دویم حدیث کښې او په ''کتاب الایمان،باب من الدین الفرار من الفتن. لاندې تیرشوی دی-[1]

③ **ابن شهاب** دا امام محمدبن مسلم بن عبدالله بن شهاب زهری رحمه الله دې دده مختصر حالات د ''بدءالوحی. د دریم حدیث د لاندې تیرشوی دی[2]

④ **الاعرج**: د ابوداود عبدالرحمن بن هرمزاعرج مدنی قرشی رحمه الله دې دده حالات په ''کتاب الایمان،باب حب الرسول ﷺ من الایمان.. کښې تیرشوی دی -[3]

⑤ **حضرت ابوهریره** رضی الله عنه: دحضرت ابوهریره رضی الله عنه حالات د ''کتاب الایمان،باب امورالایمان. لاندې تیرشوی دی[4]

**قوله**: ان الناس یقولون: اکثر ابوهریرة: خلق وائي چه ابوهریره رضی الله عنه حدکړې دې چه دومره حدیثونه بیانوي::

حضرت ابوهریره رضی الله عنه دحدیثودتولونه لوی حافظ وو، ددې وجې نه امام بخاری رحمه الله په دې

---

بقیه حاشیه د تیرمخ] کتاب البیوع، باب ما جاء فی قول الله تعالی: (فاذا قضیت الصلوة فانتشروا فی الأرض.......) رقم (۲۰۴۷) و (ج۱ ص۳۱۶) کتاب الحرث والمزارعة، باب ما جاء فی الغرس، رقم (۲۳۵۰) و(ج۱ ص ۵۱۴، و۵۱۵) کتاب المناقب، باب (بدون الترجمة، بعد باب سؤال المشرکین أن یریهم النبی (ص) آیة، فأراهم انشقاق القمر) رقم (۳۶۴۸) و(ج۲ ص۱۰۹۳) کتاب الاعتصام بالکتاب والسنة، باب الحجةعلی من قال: ان أحکام النبی (ص) کانت ظاهرة....... رقم (۷۳۵۴) ومسلم فی صحیحه، فی کتاب فضائل الصحابة، باب من فضائل أبی هریرة الدوسی (رض) رقم (۶۳۹۷- ۶۴۰۰) والترمذی فی جامعه، فی أبواب المناقب، باب مناقب أبی هریرة رضی الله عنه، رقم (۳۸۳۴ و ۳۸۳۵)-

[1] کشف الباری (ج۱ص۲۹۰)،و(ج۲ص ۸۰)-

[2] کشف الباری(ج۱ص۳۲۶)-

[3] (کشف الباری ج ۲ص۱۱)-

[4] کشف الباری (ج۱ص۲۵۹)-

باب کښي صرف هم ددوي روایاتونه ذکر کړی دی۔
حضرت ابوهریره رضی الله عنه د حافظ کیدو د وجې نه به موقع په موقع حدیثونه نقل کول بعضې خلقو به په داسې موقع وئیل چه ابوهریره هم حد کړې دې چه کوم ځائې کښې ګورې هلته به حدیث پیش کوی حالانکه نورمهاجرین او انصار ددوی پشان هرځې کښې حدیث نه روایت کوی۔

**قوله**: ولولا آیتان فی کتاب الله ما حدثت حدیثا: که چرته په کتاب الله کښي دوه ایتونه نه وو نو ما به هیڅ یو حدیث هم نه وو بیان کړې۔

**قوله**: ثم یتلو: ان الذین یکتمون ما انزلنا من البینات – الی قوله الرحیم) :(۱)
بیا به هغوی دا ایت لوستلو چه دهغې مفهوم دې:
,,چه کوم خلق هغه مضامین پټوی کوم چه مونږ ښکاره نازل کړی دی ده هغې نه پس چه مونږ خلقو دپاره په خپل کتاب کښې په ښه شان سره واضح کړی دی په داسې خلقو الله تعالی هم لعنت وائي اوټول لعنت ویونکې پرې هم لعنت وائي، لیکن هغه خلق چه توبه اوباسی او خپل عمل نیک کړی اوهغه پټ کړې شوی تعلیمات څرګنده اوبیان کړی نو زهٔ به هغوی معاف کړم او دهغوی توبه به قبوله کړم او زهٔ توبه قبولونکې اومهربان یم،،۔

**قوله**: ان اخواننا من المهجرین کان یشغلهم الصفق (۲) بالاسواق، وان اخواننا من الانصار کان یشغلهم العمل فی اموالهم-: زمامهاجر ین رونړولره په بازار کښې دهغوی تجارت اودبیع شراء معاملا تومصروفه کړی او زماانصارو رونو لره دهغوی دپټوزمینداریٔ کروندې وغیره عمل مصروفه کړی وو۔

**قوله**: وان اباهریره کان یلزم رسول الله صلی الله علیه وسلم بشبع بطنه ویحضر ما لایحضرون ویحفظ ما لایحفظون: او ابوهریره به درسول الله ﷺ په دربارکښې به صرف په دومره خبره هم حاضرباش وو چه دیووخت خوراک ملاوشی، نوځکه هغه په داسې ځایونوکښې به هم حاضریدو په کوم ځائې کښې چه به نورڅوک نه ووحاضر او هغه خبرې به ئې هم یادولې چه کومو لره به نورچانه وې یادې کړې۔
حضرت ابوهریره رضی الله عنه دټولونه اولنئ وجه دخپل اکثار(کثرت والی) دا بیان کړې ده چه په کتاب الله کښې په کتمان علم باندې وعید راغلې دې، ددې وجې نه څه دحضور ﷺ ارشادات حسب موقع روایت کوم۔

ددې نه پس هغوی دنورو انصارو او مهاجرینو رضی الله عنهم په کثرت سره داحادیثونه روایت کولو وجه بیان کړېده چه مهاجرینو ورونړه تجارت پیشه خلق وو، په بازار کښې به د تجارت په معاملا تو کښې مصروفه وو اوحضرات انصار زمیندار خلق وو هغوې لره به ددې نه فرصت نه ملاویدو، ددې وجې نه زماپه مقابله کښې دهغوې روایات کم دی۔

---

(۱) سورة البقرة ۱۵۹او ۱۶۰۔
(۲) الصفق :باسكان الفاء، وهوضرب اليدعلى اليد.وجرت به عادتهم عند عقدالبيع -فتح البارى(ج۱ص۲۱۳)

بيا هغوى خپل كيفيت بيان كړې دې چه زما دحضور ﷺ په مجلس كښې دحاضر باشې اودهغوى سره دملازمت دا حال ووچه څه به په هردم كښې دهغوى په مجلس كښې پروت وو،چه ماته به ديووخت روټۍ ملاوشوه دا زمادپاره كافى وه، ماته دنورڅه څيزغم اوفكرنه ووځكه چه زمانه څه كور وو او نه مې دكښلواودجمع كولو څه فكروو،بس: زماهم يوفكرووچه دنبى ﷺ هروخت يوځائې يم اودهغوى ارشادات په خپله سينه كښې محفوظ كومه،هم دا وجه وه چه حضرات مهاجرين او انصار رضي الله عنهم نه خوزما پشان ملازمت اوحاضر باشى اختيارولې شوه اونه ئې زماپشان دحفظ حديث اهتمام كولې شو نو ددې منطقى نتيجه هم داراووتله چه زمادحديثوپه ذخيره كښې اضافه كيږى او دوعيدنه دبچ كيدوپه وجه مادحضور ﷺ ارشادات ښه ډيرخواره كړه-

**قوله: وان اباهريرة كان يلزم رسول الله ﷺ بشبع بطنه:** اوابوهريره رضي الله عنه به درسول الله ﷺ سره هر وخت وو،ده ته ددنيا دنورڅه څيزفكرنه وو دهغوى دپاره صرف دومره كافى وه چه ديو وخت خوراك ورته ملاو شى –

دا مفهوم بره هم بيان شوې دې هم داصحيح اومتبادر مطلب دې-

حضرت شاه ولى الله رحمه الله په خپل طباعى اوذهانت سره ددې يو بل مطلب هم بيان كړېدې، كوم دغيرمتبادر كيدو په وجه مرجوح دې هغوى فرمائې:

,,كان يلازمه مايريده من المدة، ولا يقوم من مجلسه حتى يستوفى حظه منه، كقولهم : فلان يحدث شبع بطنه ويسافر شبع بطنه،،-(1)

يعنى ,,هغوى به درسول الله ﷺ مجلس سره پيوست وو ترهغه وخته پورې به نه پاسيدل ترڅوچه به هغوى ته خپله پوره حصه نه وه حاصله شوې اودهغوى به دعلم نه ګيډه ډكيده،څنګه چه وئيلې كيږى فلا نې په مړه ګيډه خبرې اترې كوى اوفلا نكې په مړه ګيډه سفر كوى-

**تنبيه:** حضرت ابوهريره رضي الله عنه چه دلته كوم څه بيان كړې دي هغه دحقيقت حال دظاهرولو دپاره اودخلقو داعتراض دجواب وركولو دپاره فرمائيلى دى. دې سره دحضرات مهاجرين او انصارو رضي الله عنهم تحقير شان هرګز مقصودنه وو-(2) والله اعلم

[۱۱۹] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ أَبُومُصْعَبٍ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ دِينَارٍ عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي أَسْمَعُ مِنْكَ حَدِيثًا كَثِيرًا أَنْسَاهُ . قَالَ « ابْسُطْ رِدَاءَكَ » فَبَسَطْتُهُ . قَالَ فَغَرَفَ بِيَدَيْهِ ثُمَّ قَالَ « ضُمَّهُ » فَضَمَمْتُهُ فَمَا نَسِيتُ شَيْئًا بَعْدَهُ.

---

1) تراجم ابواب البخارى (ص۱۵) –

2) اوګورئ لامع الدرارى مع الكنزالمتوارى (ج۲ص۳۶۶و۳۶۸)

# رجال الحديث

① **احمد بن ابی بکر ابو مصعب**: دا ابومصعب احمد بن ابی بکر القاسم بن الحارث بن زراره بن عبدالرحمن بن عوف قرشي زهري مدنی رحمه الله دې د مدينې منورې قاضی او فقيه وو.[1]

دې د امام مالک، عبدالعزيز بن محمد دراوردی، مغيره بن عبدالرحمن، محمد بن ابراهيم بن دينار، عبدالعزيز بن ابی حازم او يوسف بن يعقوب بن ابی سلمة الماجشون رحمه الله وغيره نه حديث روايت کوی -

او دوی نه په روايت کولو کښې امام بخاری، امام مسلم، امام ترمذی، امام ابوداود، امام ابن ماجه، بقی بن مخلد اندلسی، زکريا بن يحيى السجزی، امام احمد بن حنبل، ابوزرعه او ابوحاتم رازی رحمه الله وغيره نور ډير حضرات شامل دی.[2]

امام ابوزرعه او امام ابوحاتم رحمه الله فرماني ..صدوق..[3]

امام مسلمه بن قاسم رحمه الله فرمانی ..مدنی ثقة..[4]

ابن حبان رحمه الله فرمانی ..وکان فقيها متقنا عالما بمذهب اهل المدينة،،-[5]

ابن سعد رحمه الله فرمانی،،وهو من فقهاء اهل المدينه،،-[6]

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی ..ثقة حجة،،[7]

دغه شان هغه فرمائی ..قاضی المدينة وعالمها،،-[8]

دغه هغوی فرمانی ..احد الاثبات، وشيخ اهل المدينة وقاضيهم ومحدثهم،،-[9]

زبير بن بکار رحمه الله فرمائی ..مات وهو فقيه اهل المدينة غير مدافع،،-[10]

امام دارقطنی رحمه الله فرمائيلي دی ثقة فی الموطا،،-[11]

حافظ خررجی رحمه الله د امام ذهبی رحمه الله نه نقل کړی دی ..کان اماما فی السنة والاحکام، فقيها، فصيحا، بليغا،،-[12]

---

[1] تهذيب الكمال (ج ١ص٢٧٨)
[2] تهذيب الكمال (ج ١ص٢٧٩او ٢٨٠)-
[3] حواله بالا_
[4] تعليقات تهذيب الكمال (ج ١ص ٢٨٠)
[5] الثقات لابن حبان (ج ٨ص ٢١)-
[6] الطبقات لابن سعد (ج ٥ص ٤٤١)-
[7] ميزان الاعتدال (ج ١ص ٨٤). رقم (٣٠٣)-
[8] الكاشف للذهبى (ج ١ص ١٩١).رقم (١٣)-
[9] تذكرة الحفاظ (ج ٢ص٤٨٢).رقم (٤٩٧)-
[10] تهذيب الكمال (ج ١ص ٢٨٠)-
[11] تذكرة الحفاظ (ج ٢ص٤٨٣)-
[12] خلاصة الخزرجى (ص ٤)-

دا دابومصعب احمدبن ابی بکر مدنی رحمه الله په باره کښې دمختلف علماء رجال توثيقي کلمات دی. په دې کښې چاهم په هغوی باندې جرح نه ده کړې –

البته دابوخيثمه رحمه الله نه دهغه خونې تپوس اوکړو چه زه دچا چا نه احاديث واورم ؟ نو ابوخيثمه ونيل ‹‹لاتكتب عن ابى مصعب واكتب عمن شئت››.–[1]

ليکن حافظ ذهبي رحمه الله ددې ترديد کړې دې او ونيلى دى ‹‹ثقة حجة، ماآدرى مامعنى قول ابى خيثمه لابنه احمد: لاتكتب عن ابى مصعب واكتب عمن شئت؟››.–[2]

حافظ ابن حجر رحمه الله ليکلى دى :

ويحتمل ان يكون مراد ابى خيثمه دخوله فى القضاء او اكثاره من الفتوى بالرأى››.–[3]

يعنى ..ابوخيثمه چه کوم خپل خونې دهغه (ابومصعب) نه دروايت ليکلونه منع کړې وو ددې وجه داکيدې شى چه هغه د قضاء منصب سنبهال کړې وو او يا دا وجه کيدشى چه هغه درايې اونظر په لحاظ سره فتوې ورکولې..

دغه شان قاضى عياض رحمه الله فرمائي وانما قال ذالك، لان ابا مصعب كان يميل الى الراى، وابوخيثمه من اهل الحديث، وممن ينافر ذلك، فلذلك نهى عنه، والا فهو ثقة لانعلم احدا ذكره الا بخير››.–[4]

يعنى.. ابوخيثمه چه څه ونيلى دى هغه په دې بنياد چه ابومصعب فقيه وو. دقياس او اجتهاد نه به ئي کار اغستلو. اودابوخيثمه تعلق دمحدثينو مکتب فکر سره وو. کوم چه قياس او رائې لره ډير ناخوښې ګنړى. ددې وجې نه دوى خپل خوې منع کړې وو. ګنې ابومصعب ثقه دې. زمونږ دعلم مطابق ټولو حضراتو دهغوى تذکره په تعديل او په توثيق سره کړې ده..

ظاهره ده چه داکلام موثراو قادح نه دې –

بياحافظ ابن حجر رحمه الله هغوى لره صدوق ګرزولې دې [5] غالباهغوى د ابوخيثمه دکلام نه متاثره شوى دى څکه ئي داسې ليکلى دى –ليکن حقه خبره داده چه هغوى ته ثقه اوحجت ونيل پکاردى څنګه چه دنقادحديث د تبصرو نه معلوميږى اوحافظ ذهبى رحمه الله وغيره ددې تصريح کړې ده. [6] والله اعلم

په ٢٤٢هجرى کښې دهغوى انتقال وشو. عمرئي دنوى کالو نه زيات وو. [7] رحمه الله تعالى رحمة واسعة _

---

[1] تعليقات تهذيب الكمال (ج١ص٢٨٠)، نقلا عن تاريخ ابن ابى خيثمه –

[2] ميزان الاعتدال (ج١ص٨٣)،رقم (٣٠٣) –

[3] تهذيب التهذيب (ج١ص٢٠)-

[4] تعليقات الرفع والتكميل لشيخنا عبدالفتاح ابوغدة رحمه الله (ص٤٢٣)ونقلا من ترتيب المدارك..للقاضى عياض رحمه الله (ج٣ص٣٤٧و٣٤٨)-

[5] تقريب التهذيب (ص٧٨)،رقم (١٧)-

[6] اوګورئ التهذيب (ج١ص٥٨)،رقم (١٧)-

[7] تقريب التهذيب (ص٧٨)،(١٧)-

۞ **محمد بن ابرهيم بن دينار** :دې د مديني منورې مشهورفقيه ابوعبدالله محمدبن ابرهيم بن دينارمدنی رحمه الله دې،بعضې حضراتوددوی لقب ,,صندل،،بنودلې دې-[1]

دې د اسامه بن زيد ليثی، محمد بن عبدالرحمان بن ابی ذئب،محمد بن عجلان،موسی بن عقبه رحمهم الله وغيره نه روايت حديث کوی –

اوددوی نه روايت کونکو کښې ابومصعب احمد بن ابی بکر، عبدالله بن وهب،ابوهشام محمد بن مسلمه،يحيی بن ابرهيم اويعقوب بن محمدزهری وغيره شامل دی-[2]

امام بخاری رحمه الله فرمائي ,,معروف الحديث،،-[3]

امام ابو حاتم رحمه الله فرمائي ,,كان من فقهاء المدينة نحومالك،وكان ثقة،،[4]

امام دارقطنی رحمه الله فرمائي ,,ثقة،،-[5]

امام ابن عبدالبر رحمه الله فرمائي : ,,كان مفتى اهل المدينة مع مالك،وعبدالعزيزبن ابی سلمة وبعدهما وكان فقيها فاضلا،له بالعلم رواية وعناية-[6]

يعنی دې د امام مالک اوعبدالعزيزبن ابی سلمة رحمهما الله هم وزن اوهم سيال دې، دهغوی په زمانه کښې هم او دهغوی نه پس هم دمدينی منورې مفتی پاتې شوې دې. فاضل فقيه وو، دهغوی دعلم سره ډير ښه مناسبت ووآو دحديثو روايت به ئي کول،،-

هم د ابن عبدالبر رحمه الله نه منقول دی ,,كان مدار الفتوى فی اخر زمان مالك وبعده على المغيرة بن عبدالرحمن ومحمد بن ابرهيم بن دينار،،-[7]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي,,ثقة فقيه،،-[8]

ابن حبان رحمه الله دې په کتاب الثقات ذکرکړې دې –[9]

په ۱۸۲هجری کې دده انتقال شوې دې –[10] رحمه الله تعالى رحمة واسعة

۞ **ابن ابی ذئب** : دا امام محمدبن عبدالرحمن بن المغيره بن الحارث بن ابي ذئب قرشی

---

[1] تهذيب الكمال (ج ٢٤ص٣٠٦)-
[2] د شيوخ اودتلامزه د تفصيل دپاره اوګورې تهذيب الكمال (ج ٢٤ص٣٠٦او٣٠٧)-
[3] التاريخ الكبير (ج ١ص٢٥)،رقم (٢٥)-
[4] تهذيب الكمال (ج ٢٤ص٣٠٨)-
[5] تهذيب التهذيب (ج٩ص٨)_
[6] تهذيب الكمال (ج ٢٤ص٣٠٨)_
[7] حواله بالا-
[8] تقريب التهذيب (ص٤٦٥)،رقم (٥٦٩٢)-
[9] الثقات لابن حبان (٩ص٣٩)-
[10] تهذيب التهذيب (ج ٩ص٨)-

عامری مدنی رحمه الله دي دده کنیت ابوالحارث دي،د ابن ابی ذنب په نوم سره مشهور دي د ابوذنب نوم هشام دي[1]
دي د عکرمه مولی دابن عباس،شرحبیل بن سعد ، سعید مقبری،نافع مولی دابن عمر، صالح مولی دالتوامه،شعبه مولی دابن عباس،ابن شهاب زهری،اسحاق بن یزید الهذلی،محمد بن المنکدر او مسلم بن جندب رحمهم الله وغیره نه روایت کوی-
اووده نه عبدالله بن المبارک،یحیی بن سعید القطان،ابن ابي فدیک،شبابه بن سوار،حجاج بن محمد،ابونعیم،وکیع،آدم بن ابی ایاس عبدالله بن مسلمه القعنبی،عبدالله بن وهب، عبدالله بن نمیر او ابوعاصم الضحاک بن مخلد رحمهم الله وغیره روایت کوی -[2]

ابن سعد رحمه الله فرمائي ،،كان عالما،ثقة، فقيها،ورعا،عابدا،فاضلا.....،، [3]

امام احمد رحمه الله فرمائي ،،ابن ابي ذئب يشبّه بسعيد بن المسيب،،-[4]
دامام احمدنه تپوس اوکړې شو چه ابن ابی ذئب د ځان نه روستوخوک دخپل ځان پشان پریخي دي ؟ نو ووئیل چه نه په مدینه کښي او نه دمدینې نه سوا په بل ځائې کښي دهغه پشان څوک شته [5]

بله داچه امام احمد رحمه الله فرمائي : ابن ابي ذئب كان ثقة صدوقا، افضل من مالك بن انس، الا ان مالك اشد تنقية للرجال منه، ابن ابي ذئب كان لايبالي عمن يحدث،،-[6]
یعنی ،،ابن ابی ذئب ثقه او صدوق دي او دامام مالک نه هم زیات دي. البته امام مالک درجالو په انتخاب کښي دابن ابي ذئب نه زیاد ماهردي ځکه چه ابن ابي ذئب ددې پرواه نه کوی چه دکوم معیار راوی نه روایت اوکوی،،-

امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائي ،،ابن ابي ذئب ثقة،وكل من روى عنه ابن ابي ذئب ثقة الا ابا جابر البياضي....،،-[7]

امام نسائي رحمه الله فرمائي ،،ثقة،،-[8]

حماد بن خالد رحمه الله فرمائي ،،كان ثقة في حديثه، صدوقا، رجلا صالحا ورعا،،-[9]

---

[1]) تهذیب الکمال (ج۲۵ص ۶۳۰)-
[2]) دشیوخو اوتلامذ دپاره اوګورئ،تهذیب الکمال (ج۲۵ص ۶۳٤)-
[3]) تعلیقات تهذیب الکمال(ج۲۵ص ۶۳۱)-
[4]) تهذیب الکمال (ج۲۵ص ۶۳٤)-
[5]) تهذیب الکمال (ج۲۵ص ۶۳٤)-
[6]) حواله باله-
[7]) تهذیب الکمال (ج۲۵ص۶۳۵)-
[8]) تهذیب الکمال (ج۲۵ص۶۳۶) —
[9]) تهذیب الکمال (ج۲۵ص۶۳۸) —

امام علی بن المدینی رحمه الله فرمائي .. ابن ابی ذئب ثبت ..[1]

ابو حاتم رحمه الله فرمائي ،، ثقة يفقه، اوثق من اسامه بن زيد،،[2]

ابوزرعه رحمه الله فرمائي ،، ابن ابي ذئب مدينى، قرشى، مخزومى، ثقة،،[3]

خلیلی رحمه الله فرمائي .. ثقة، اثنى عليه مالك، فقيه من ائمة اهل المدينة .....،،[4]

امام احمد رحمه الله فرمائي ،، هواورع واقول بالحق من مالک..[5]

مصعب الزبیری رحمه الله فرمائي .. كان ابن ابى ذئب فقيه المدينة،،[6]

ابن حبان رحمه الله فرمائي ،، وكان من فقهاء اهل المدينة وعبادهم، وكان من اقول اهل زمانه بالحق،،[7]
یعنی .. دې داهل مدینې د فقهاء اودعابدانونه دې اودخپلې زمانې دټولونه لوې حق ګو وو... دوی دحق ګويې واقعات مورخينو او اصحاب سير ذکر کړی دی –
ابن حبان رحمه الله فرمائي چه يو خل هارون الرشيد بادشاه دمدينې فقهاء کرامو ته دعوت ورکړو په دې کښې دنورو فقهاء کرامونه علاوه امام مالک او ابن ابي ذنب رحمه الله هم وو.
هارون الرشيد دهغوي نه د خپل خان باره کښې تپوس اوکړو هريو کس دهغه تعريفونه اوکړل او دهغه خوبيانې شميرلې خوچه کله نې دابن ابی ذئب نه تپوس اوکړو نواول خوهغوی معذرت اوغوښتوچه څه تبصره کول نه غواړم خوچه کله اصرار زيات شونو وې وئيل ,, امابعد، ان سالت فانى اراك ظالما غشوما، تاخذ الامول من حيث لا يحل لك، وتنفقها فيما لا يرض الله ورسوله، ولووجدت اعوانا لخلعتك من هذا الامر، وادخلت فيه من هوانصح لله وللمسلمين منك،،–
مطلب دادې .. چه څۀ تا ظالم اوغاصب ګڼړم .ته داسې طريقې سره مال حاصلې چه هغه تا لره حلال نه وی اوبه داسی ځايونو کښې خرچ کوی چه دهغه ځائې په خرچ کولوباندې الله دهغه رسول ﷺ راضی نه وی .حقيقت دا دې که چرته ماته مخلص مددګار ملاوشونو څه به ته دخلافت نه معزول کړم او خلافت به هغه چاته حواله کړم کوم چه ستا په مقابله کښې دالله تعالی اود مسلمانو په حق کښې ډير خيرخواه وی...
وائی چه هارون الرشيدخپل سرخکته کړو .امام مالک رحمه الله فرمائي چه ما خپلې کپړې راغونډې کړې ځکه چه ماته يقين ووچه اوس به دده سردتنې نه جدا کړې شې اوپه ماباندې به د وينوڅاڅکی راپريوځي...

[1] تعليقات تهذيب الكمال (ج۲۵ص ۶۳٤) –
[2] تعليقات تهذيب الكمال (ج۲۵ص ۶٤۳)-
[3] برنې حواله _
[4] تهذيب التهذيب (ج ۹ص ۳۰۷)-
[5] سيراعلام النبلاء (ج۷ص ۱٤۲)
[6] سيراعلام النبلاء (ج۷ص ۱٤٤) –
[7] الثقات الابن حبان (ج۷ص ۳۹۰) –

په اخېره کښې خليفه خپل سر اوچت کړواووې ونيل چه ته ددې ټولو په مقابله کښې رښتونې يې ددې نه پس نې هغه رخصت کړو اود ابن ابی ذ ئب په عطيه کښې نې اضافه اکړه ـ [۱]
يوځل ابوجعفر المنصورته ابن ابی ذئب رحمه الله وونيل چه خلق لګيا دې مرې تاسو دهغوی مدد په مال فئ سره ولې نه کوې؟
نو منصور اونيل چه ما دسرحدونو په حفاظت کښې مال لګولې دې ـ او که ما سرحدونه نه وو بند کړي نو ته به خپل کور کښې دننه ذبح کړې شوې وې.
ابن ابی ذئب رحمه الله فورا اوفرمائيل چه دسرحدونو دحفاظت سره سره خلقو ته دهغوی حق هم ورکول ضروری دي. حضرت عمر رضی الله عنه ستا نه بهتر وو. او هغه دواړه كارنه کړې وو-
منصور خپل سر ښکته کړو او وې ونيل ..هذا خير اهل الحجاز،،ـ [۲]
يوځل نې هم دې ابوجعفرمنصورته په مخامخ اونيل ،،الظلم فاش ببابك،، چه ظلم ستا په دروازه خور شوې دې... [۳]
يوځلې ابوجعفرده نه دخپل ځان په باره کښې تپوس اکړو چه څه څنګه خليفه يم ؟ نو وې فرمائيل ،،ورب هذه البنية، انك لجائر،، [۴] يعنی په خداې چه ته ظالم نې ـ
په ابن ابی ذئب باندې بعضو دقدری الزام لګولې دې. پس ابن حبان رحمه الله فرمائي ،، وكان مع ذلك يرى القدر، ويقول به وكان مالك يهجرلامن اجله،،ـ
يعنی باوجود د دې چه صاحب دفضل اودمناقب او کمال وو ليکن د قدريه رائې ئې ساتله. امام مالک ددې وجې نه متروک کړې وو... [۵]
دغه شان واقدی رحمه الله نقل کړی دی ..وكانوا يرمونه بالقدر،،ـ [۶]
ليکن دا الزام درست او صيح نه دې خکه چه واقدی فرمائي ،،وماكان قدريا،لقد كان يتقى قولهم ويعيبه،،ـ [۷]
دغه شان مصعب الزبيری نه چه کله تپوس اوکړې شو چه آيا ابن ابی ذئب قدری وو؟ نوهغه جواب ورکړوچه ،، معاذ الله ان يكون قدريا،،ـ [۸]
بلکه واقدی رحمه الله ددې الزام حقيقت بيانوی.

---

[۱] الثقات لابن حبان (ج۷ص ۳۹۰ و ۳۹۱) ـ
[۲] سير اعلام النبلاء (ج۷ص ۱٤٤و۱٤۳)ـ
[۳] سير اعلام النبلاء (ج۷ص ۱٤٤) ـ
[۴] پورتنئ حواله ـ
[۵] الثقات لابن حبان (ج۷ص ۳۹۱) ـ
[۶] تهذيب التهذيب (ج۹ص ۳۰۵) ـ
[۷] سير اعلام النبلاء (ج۷ص ۱٤۰) ـ
[۸] سير اعلام النبلاء (ج۷ص ۱٤۵) ـ

"وكان رجلا كريما، يجلس اليه كل احد، ويغشاه، فلا يطرده، ولا يقول له شيئا، وان مرض عاده، فكانوا يتهمونه بالقدر لهذا وشبهه،،[1]

يعني دې ډېر شريف سړے وو ده ته به هر قسمه خلق راتلل او ده به چا ته څه نه وئيل او نه به ئې چا ته دخپل ځان نه دپاسيدو دپاره وئيل او دغه شان چه څوک به بيمارشو نوده به بلا امتياز دهرچا عيادت او پوښتنه كوله د داسې خبرودوجې نه دې مهتم بالقدر اوګنړلے شو،،۔

تقريبا هم دا خبره مصعب الزبيري رحمه الله هم بيان كړې ده هغه فرمائي:

"انما كان زمن المهدي قد اخذوا اهل القدر وضربوهم، ونفوهم، فجاء منهم قوم الى ابن ابي ذئب، فجلسوا اليه واعتصموا به من الضرب، فقيل: هو قدري، لاجل ذلك، لقد حدثني من اثق به انه ما تكلم فيه قط،،[2]

يعني ,, دخليفه مهدي په زمانه كښې چه كله قدريه ګرفتاركړې شو او دوی وهلې كيدل اوجلا وطن كيدل په دې وخت كښې څه كسان دوی ته راغلي وو او ددی پناه ئې اغستې وه د دې وجې نه ورته قدري اُ وئيلې شو ګنې ماته بنه معتمد عليه كسانو بيان كړی دی چه ده كله هم دقدريه رائې نه ده خپله كړې،،۔

حاصل دا چه په ده كوم دقدري الزام دې هغه بالكل ثابت نه دې۔

تركومه چه دامام مالك رحمه الله ,,دهجران،، خبره ده نو هغه به هله صحيح وه چه دې په حقيقت كښې قدري وو چه كله اصلا قدري كيدل ثابت نه دی نو دامام مالك رحمه الله هجران به هم بالكل ثابت نه وی۔

بيادامام مالك رحمه الله نه دده صفت او ثنا هم منقول ده كومه چه مونږه ورستوذكركړې ده، البته په دې هيڅ شک نه شته چه ددې دواړو نه ده يو بل متعلق نا مناسب تبصرې منقولې دی علماء رجال دداسې قسمه اقوال غيرمعتبره ګرزولی دی،، پس حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي:

وبكل حال فكلام الاقران بعضهم في بعض لايعول على كثير منه، فلا نقصت جلالة مالك بقول ابن ابي ذئب فيه، ولا ضعف العلماء ابن ابي ذئب بمقالته هذه، بل هما عالما المدينة في زمنهما، رضي الله عنهما،،[3]

يعني ,,بهرحال دمعاصرينو په حق كښې دمعاصرينو كلام اكثراوبيشتر معتبرنه دې، دابن ابی ذئب دكلام نه دامام مالك رحمه الله په جلالت شان كښې څه كمې نه دې راغلې اونه دداسې قسمه كلام دوجې نه دابن ابی ذئب چا تضعيف كړې دې دواړه په دواړه په خپله زمانه كښې دمدينې منورې فقيهان او عالمان ګنړلې كيده — الله تعالى دې ددې دواړونه راضى شي —

يوه بله خبره چه ددوی په باره كښې قابل تنقيح ده هغه دا ده چه بعضې حضراتودامام زهری (رح) په احاديثو كښې ده لره معولی شان كمزورې ګنړلې دې دعلى ابن المدينى نه چه دده باره په تپوس اوكړې شو نووي فرمائيل:

---

[1] سيراعلام النبلاء (ج٧ص١٤١) —
[2] سيراعلام النبلاء (٧ص١٤٥) —
[3] سيرا علام النبلاء (ج٧ص١٤٣) —

,,کان عندنا ثقة وکانوا یوهنونه فی اشیاء رواها عن الزهری،،-(۱)
یعنی دې زمونږ په وړاندې ثقه دې خو خلق دې په بعضې روایتو کښې کمزورې ګڼړی کوم چه دې دزهری نه نقل کوی،،-
دغه شان امام احمد رحمه الله هم دده توثیق کړې دې هغه هم دزهری په روایاتوباندې تحفظات ظاهر کړی دی-(۲)
لیکن حقیقت دادې چه ده لره دامام زهری رحمه الله د روایاتو په سلسله کمزورې ګرځول هم درست نه دی -ددې وجه دا ده چه یعقوب بن شیبه رحمه الله فرمائي:
,,اخذه عن الزهری عرض، والعرض عند جمیع من ادرکنا صحیح،،-(۳)
یعنی دوی چه کوم روایتونه دامام زهری رحمه الله نه اغستی دی هغه عرضا(دقراءت علی الشیخ په طور باندې) اغستی دی او ,,عرض،، دټولو علماء په نیز درست دې،،-
بلکه حافظ ابن حجر رحمه الله ددې حقیقت دامام زهری رحمه الله دوراره نه نقل کړې دې چه یو ځل ابن ابی ذئب اوامام زهری رحمهما الله په مینځ کښې په څه خبره باندې مباحثه اومناقشه اوشوه دې سلسله کښې په امام زهری باندې څه خبره ناګواره محسوس شوه نوهغه قسم اوکړو چه ده ته به هیڅ یوحدیث نه اوروآم ورستوابن ابی ذئب ته شرمندګی اوشوه اود هغوي نه ئي معافی اوغستله پس د معافې اوتلافې نه ئي امام زهری ته عرض اوکړوچه تاسوماته څه حدیثونه په لیکلوسره راکئې نو امام زهری څه حدیثونه په لیکلوسره ورکړه،نوده به هم دهغه حدیثونه روایت کول -(۴)
ددې نه معلومه شوه چه دامام زهری رح) نه د اکثرروایات د مکاتبت یادمناولې په ذریعه حاصل شده دی اوپه دې طریقه حاصل شوی روایات دمحدثینو په نیز معتبر دی-(۵)
هم دغه وجه ده چه دامام یحیی بن معین رحمه الله نه عثمان دارمی رحمه الله پوښتنه آوکړه ,,ابن ابی ذئب ماحاله فی الزهری؟،، نووې فرمائیل ابن ابی ذئب ثقة،،-(۶)
دهغه شان عمروبن علی الفلاس رحمه الله فرمائي ,,ابن ابی ذئب فی الزهری احب الی من کل شامی،،-(۷)
بیادلته دې دا هم واضحه وی چه امام بخاری رحمه الله دابن ابی ذئب نه کوم مرویات اغستی دی هغه ټول ئي متابعتا اغستي دی (۸) والله اعلم

(۱) میزان الاعتدال (۳ص ۶۲۰)، رقم (۷۸۳۷)-
(۲) میزان الاعتدال (ج۳ص ۶۲۰)، رقم (۷۸۳۷) –
(۳) سیراعلام النبلاء (ج۷ص۱۴۷)_
(۴) تهذیب التهذیب (ج۹ص۳۰۷) –
(۵) اوګوری: شرح نخبة الفکر لعلی القاری (ص۶۷۷-۶۸۳) –
(۶) تهذیب التهذیب (ج۹ص ۳۰۶) –
(۷) پورتنئ حواله _
(۸) هدی الساری (ص۴۴۰) –

۱۵۸ هجري کښې په کوفه کښې وفات شو.(۱)

⑥ **سعيد المقبري** دا ابوسعد سعيد بن ابى سعيد کيسان مقبري مدنى رحمه الله دې دده حالات په کتاب الايمان، باب صوم رمضان احتسابا من الايمان لاندې تيرشوي دي (۲)

⑤ **حضرت ابو هريره** رضي الله عنه دحضرت ابوهريره رضي الله عنه حالات په کتاب الايمان "باب امور الايمان" لاندې تيرشوي دي(۳)

**قوله**: قلت يا رسول الله، انى اسمع منك حديثا كثيرا انساه: ماعرض اوکړواي دالله رسوله ص، څه ستاسونه ډير حديثونه اورم چه هغې لره هيره وم

**قوله**: قال: ابسط رداءك فبسطته: هغوى راته اوفرمائيل چه خپل څادر خور کړه ما هغه خور کړو

**قوله**: قال فغرف بيديه، ثم قال: ضمه، فضممته: وئ فرمائيل چه نبى عليه السلام د خپل دواړلاسونو لپې ډکولې او په څادر کښې اچولې . بيا ئي اووئيل دې لره خپلې سينې سره اولګوه نو ماخپلې سينې سره اولګولو.

**قوله**: فما نسيت شيئا بعده: ددې نه پس مانه څه څيز هير نه شو

حضرت ابو هريره رضي الله عنه ددې روايت په ذريعې دخپل کثرت حفظ يود بله وجه بيان کړې ده. دړومبى حديث نه خو ده معلومه شوه چه دوى به درسول الله صلى الله عليه وسلم سره ډير پاتې کيدل اودنبى عليه السلام خبرې به ئي اورېدې او محفوظ کولې به ئي او د دې روايت نه معلومه شوه چه نبى اکرم صلى الله عليه وسلم ددوى دپاره خاص دعااوخاص توجه کړې وه.

پس ددې دپاره ئي يومخصوص صورت دا اختيار کړو چه نبى عليه السلام خپل دواړه لپې ډکې کړې او په څادر کښې واچولې. ظاهرادا څه حسى څيز نه وو ليکن معنوي اعتبار سره نبى عليه السلام دفيض او دمعرفت يوه غټه حصه اوددې دحفاظت دپاره قوت حافظه په وديعت سره کيخودله اوحکم ئي اوکړو چه دې لره خپلې سينې سره اولګوه وه هغه دې لره خپلې سينې سره جوخت کړو ددې اثر دا ظاهرشو چه هغه بيا کله يوحديث هم هير نه کړو.

**دحديث باب په مختلف طرق کښې تعارض او دهغې حل**: دلته "فمانسيت شيئا بعده"، "شيئا" نکره تحت النفى واقع ده چه عموم ترې معلوميږي. غه شان دسفيان بن عيينه عن الزهرى په روايت کښې دى "فوالذى بعثه بالحق، مانسيت شيئا سمعته منه".(۴)

---

(۱) سير اعلام النبلاء (ج۷ص۱۴۸) –
(۲) کشف البارى (ج ۲ ص۳۳۶) -
(۳) کشف البارى (ج۱ ص۶۵۹) –
(۴) صحيح البخارى (۲ص۱۰۹۳)، کتاب الا عتصام بالکتاب والسنة و باب الحجة على من قال : ان احکام النبى صلى الله عليه وسلم کانت ظاهرة .....رقم(۷۳۵۴) –

اودابرهيم بن سعد عن الزهري په طريق کښې دی ..فوالذي بعثه بالحق،مانسيت من مقالته تلك الى يومى هذا،،۔(۱)

دغه شان امام مسلم په خپل صحيح کښې..يونس عن ابن شهاب،،په طريق سره نقل کړې دي چه دهغې الفاظ ددی فمانسيت بعد ذلك اليوم شيئا حدثني به،،_(۲)

ددې ټولورواياتونه دا خبره په عموم سره پوهه کښې ته راځي چه حضرت ابوهريره رضی الله عنه ددې نه پس يوه خبره هم نه ده هيره کړې.

ليکن د..شعيب عن الزهري په طريقه مروی روايت کښې ..فما نسيت من مقالة رسول الله ﷺ تلك من شيئ،،_(۳)

ددې مطلب دادې چه ددې وقعې نه پس ما دحضور اکرم ﷺ دهغه وخت دمخصوص کلام څخه څه هم نه دی هير کړی دهغه پوره کلام لره مامکمل ياد کړلو..۔

ظاهره ده چه په دې کښې عموم نيشته دهغه شان په دې مختلف طرقو په مينځ کښې تعارض پيدا کيګی. ددې جواب دتطبيق په صورت کښې هم ورکړې کيګی اودترجيح په صورت کښې هم ۔ دترجيح په صورت کښې دعموم ولا روايت ته ترجيح ورکړې کيګی.ځکه چه حضرت ابوهريره رضی الله عنه خپل کثرت محفوظات لره بيانول غواړی ۔(۴)

دتطبيق په صورت کښې وانيلی شی چه دادوه مختلف اوخانله خانله واقعې دی.دشعيب عن الزهري..والا طريقه کښې دهغه مخصوص وقعې ذکردې.دباقی محفوظاتو او مسموعاتو ذکر نشته.او دنورو رواياتو تعلق دنور وقعاتوسره دې چه په هغې کښې حضرت ابوهريره رضی الله عنه مطلقا دخپل کثرت محفوظاتو ذکر کول غواړی (۵)

دتطبيق يو صورت دا هم کيدشی چه د..شعيب عن الزهري ولا طريق کښې د..فمانسيت من مقالة رسول الله ﷺ تلك من شيئ.. کښې چه کوم .. من مقالة ..دې په دې کښې ..من.. سببيه ګنړلې شی ۔ نواوس به مطلب ده شی چه دحضوراکرم ﷺ ددې واقعې او ارشاد دوجې نه بيا ما څه شې هير نه کړو ۔(۶)

دهغه شان ده هم ممکن دې چه په دې طريق کښې ..من،، دابتداء غايت د بيان دپاره وی.نو اوس به مطلب دا شي چه کله دحضور اکرم نه دمقاله صادره شوه نو دغه وخت نه پس ما څه

(۱) صحيح البخاری (ج۱ص۳۱۶) کتاب الحرث والمزارعة. باب ما جاء فی الغرس. رقم (۲۳۵۰) –
(۲) صحيح مسلم.کتاب فضائل الصحابة. باب من فضائل ابی هريره الدوسی رضی الله عنه رقم (۶۳۹۹و۶۴۰۰) –
(۳) صحيح البخاری (ج۱ص۲۷۵).کتاب البيوع.باب ماجاء فی قول الله تعالی :(فاذ قضيت الصلاة...). رقم(۲۰۴۷) –
(۴) اوګورئ فتح الباری (ج۱ص۲۱۵)
(۵) فتح الباری (ج۱ص۲۱۵)–
(۶) الکنز المتوری (ج۲ص ۳۶۸) –

شي نه دي هير کړي.- هم برني حواله -

**يو اشکال او دهغې جواب:** دحديث باب نه معلوميږي چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه ددې واقعې نه پس هيڅ نه دی هير کړی حالانکه په کتاب الطب کښې دحضرت ابوهريره رضي الله عنه شاګرد حضرت ابوسلمه رحمه الله دهغوی نه مرفوع حديث ,,لايورد ممرض على مصح،، دنقل کولونه پس فرمائي:

,,وانكر ابوهريرة رضي الله عنه حديث الاول (وهو حديث : ,,لاعدوى ولا صفر......،،) قلنا: الم تحدث انه : لاعدوى،، فرطن بالحبشية، قال ابوسلمه: فما رايته نسى حديثا غيره،،-(١)

يعنى ,,حضرت ابوهريره رضي الله عنه د ,,لاعدوى......،، والاحديث نه انکار او کړونو مونږ ورته عرض او کړو چه هم تاسو مونږ ته د لاعدوى..... والاحديث نه وو بيان کړې ؟ نو حضرت ابوهريره رضي الله عنه مبهم شانته خبرې سره خبره ختمه کړه، ابوسلمه رحمه الله فرمائي چه ما هغوی لره نه دی کتلی چه ددې حديث نه ئ علاوه بل حديث هير کړې وی،،-

دغه شان امام طحاوی رحمه الله ,,په شرح مشکل الاثار،، کښې يو روايت نقل کړې دې چه په هغې کښې حضرت ابوذر رضي الله عنه فرمائي ,,نسيت افضلها او اخيرها......،،(٢) يعنى اې ابوهريره :تا ددې ارشاد دټولونه افضله يا دټولونه بهتره حصه هيره کړې ده،،-

ددې دواړو روايتونو نه معلوميږي چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه هيره شوې ده،حالانکه په حديث باب کښې د دې خبرې تصريح ده چه په حضرت ابوهريره باندې بيا څه نسيان نه وو طاری شوې-

ددې يو جواب خو دا ورکړې شوې دې چه دنسيان دا واقعه دحديث باب دواقعې نه وړاندې وه.اوحديث باب دواقعې نه پس بيا نسيان نه وو طاری شوې (٣)

دويم جواب دا ورکړې شوې دې چه دراصل دعدم نسيان وعده عمومی نه وه بلکه ديو مخصوص حديث سره متعلق وه،لکه څنګه چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه مرفوع حديث نقل کوی

: انه لن يبسط احد ثوبه حتى اقضى مقالتى هذه ثم يجمع اليه ثوبه، الا وعى ما اقول، فبسطت نمرة على حتى اذ اقضى رسول الله صلى الله عليه وسلم مقالته، جمعتها الى صدرى، فما نسيت من مقالة رسول الله صلى الله عليه وسلم تلك من شيء،،-(٤)

يعنى حضور اکرم صلى الله عليه وسلم يوځله اوفرمائيل چه کوم سړی خپل څادر خور کړو تر دې پورې چه زه خپله خبره ختمه کړم اوبيا دې څادر لره خپلې سينې سره پيوست کړي نوچه کوم څه زه وئيم نو

---

(١) صحيح البخاری (ج ٢ص ٨٥٩) كتاب الطب.باب بيان لاهامة.رقم (٥٧٧١)-

(٢) شرح مشكل الاثار (ج ٤ص٣٥٢) باب بيان مشكل ما روى عن رسول الله صلى الله عليه وسلم فيما كان من قوله، وابوهريرة حاضره: ايكم بسط ثوبه، ثم اخذمن حديثى هذا و فانه لاينسى شيئا سمعه، وان اباهريرة فعل ذلك.فما نسى بعد ذلك شيئا سمعه -

(٣) اوګورئ شرح مشكل الاثار (ج ٤ص٣٥٣)-

(٤) صحيح البخاری (كتاب البيوع، باب ما جاء فى ج١ص٢٧٥) قول الله تعالى﴿ فاذ قضيت الصلاة ......﴾، رقم (٢٠٤٧) _

هغه به ورته بنه طريقې سره ورته محفوظ شی نو بس ما خپل څادر خور کړو تردې پورې چه حضوراکرم ﷺ خپله خبره ختمه کړه،ما خپل څادرخپلې سينې سره پيوست کړو، بس ما دحضور اکرم ﷺ ددهغې خبرې نه هيڅ څيز هم نه دې هيرکړې، ، -

هغه مخصوص حديث کوم يودې ؟حافظ ابن حجراو علامه عينی رحمهماالله دا ذکرکړې دې :

مامن رجل يسمع كلمة او كلمتين او ثلاثا او اربعا او خمسا مما فرض الله ، فيتعلمهن ،ويعلمهن الا دخل الجنة.....»[1]

بعضې حضراتودا جواب ورکړې دې چه په حقيقت کښې نسيان حضرت ابوهريره ﷺ ته نه دې لاحق شوې بلکه حضرت ابوسلمه ﷺ ته لاحق شوې دې چه هغوی دا حديث دبل يو شيخ نه اوريدلې دې اودا ئې اوګنړل چه دامې دحضرت ابوهريره ﷺ نه اوريدلې دې،حالانکه دابوهريره ﷺ نه ئې نه وو اوريدلې، هيره تې خپله شوې وه اودهيرې نسبت ئې حضرت ابوهريره ﷺ ته کړې دې - ([2])

بعضې حضراتو دا امکان هم ظاهرکړې دې چه حضرت ابوهريره ﷺ حقيقة د روايت نه انکارنه دې کړې البته داځ ګنړلی دی چه شاګرد به دمرورياتو په مينځ کښې په تطبيق باندې به نه پوهيږی هغوی ځکه دانکارعنوان اختيار کړو-([3])

ددې ټولوجوابونه معلوميږی چه زيات قرين قياس دا لګی چه د ځانله ځانله واقعات دی :-

رومبې داواقعه راپيښه شوه چه حضوراکرم ﷺ داحاديثو دیادولوترغيب ورکولوپاره ارشاداوفرمائيلو انه لن يبسط احد ثوبه حتى اقضى مقالتى هذه،ثم يجمع اليه ثوبه الا وعى ما اقول ....... ، -

په دې موقعه حضرت ابوهريره ﷺ په موجب د ارشاد نبوی باندې عمل اوکړو نو دوعدې مطابق ټول ارشادات ئې ازبر شو ،اود دهغې مخصوص ارشاداتوځنه هغوی ئې هيڅ يوڅيز هم نه دې هيرکړې-

په دويم ځل دا واقعه راپيښه شوه چه کله حضرت ابوهريره ﷺ ته دنسيان شکايت محسوس شو اودوی مخکښې نه دنبی ﷺ دتصرف او دتوجو مظهرهم کتلې نه وو ځکه ئې مطلقا دقوت حافظې دپاره درخواست اوکړو، اونبی ﷺ هم دهغه شان عمل کولوحکم ورکړواو ورسره ورسره ئې دلپودډکولواشاره هم اوکړله، ددې نه پس بيا هغه دهرقسمه دنسيان نه محفوظ شو،نوبس کوم کوم ځې کښې چه هغوی طرف ته دنسيان نسبت شوې دې که هغوی په خپله کړې وی يا بل چا دهغوی طرف ته دنسيان نسبت کړې وی نو دابه ددې اخری واقعې نه دوراندې واقعات وی -

او که دځانله ځانله واقعات ګرځولو کښې اشکال محسوسيږی چه دادواړه حديثونه خويو دی

[1]) فتح البارى (ج۱ص۲۱۵).نقلا عن جامع الترمذى والحلية لابى نعيم. وانظرالمسند للامام احمد (ج ۲ ص۳٤۳) رقم (۸۳۹۰).و (ج۲ص٤۲۷)..رقم (۹۵۱۳)-

[2]) الكنزالمتوارى (ج ۲ص ۳۶۸)_

[3]) هم پرنئ حواله _

بيا ځنګه ځانله ځانله واقعات اوګرځو نو په داسې صورت کښې به د عموم والاحديث په خپل ځې کښې برقرار اوګنړو او دخصوص والاحديث کښې به تاويل اوکړو کوم چه مونږ شاته بيان کړې دي چه په " من مقالة.......،،،،، کښې "من"، به سببيه اوګنړلې شي او يا به "من"، دابتداء غايت دپاره اوګرځولې شي -

**يو بل اشکال او دهغې جواب** :دلته ديو بل روايت نه هم اشکال کيږي، هغه دا چه الفضل بن عمروبن اميه ضمري د خپل والد صاحب حسن بن عمرو نه نقل کوي :

"تحدثت عند ابى هريرة بحديث فانكره، فقلت :انى قد سمعته منك، قال : ان كنت سمعته منى فهو مكتوب عندى، فاخذ بيدى الى بيته، فارانا كتبا كثيرة، من حديث رسول الله ﷺ، فوجد ذلك الحديث، فقال : قد اخبرتك انى ان كنت قد حدثتك به فهو مكتوب عندى،، _ جامع بيان العلم وفضله (ج١ص ٣٢٤) رقم(٤٢٢)-

يعنى "ما دحضرت ابوهريره رضي الله عنه وړاندې ته ديوحديث تذکره اوکړه نو هغوى ددې نه انکار اوکړو ماورته عرض اوکړو چه جې ما داحديث دستاسونه اوريدلې: هغوى اوئيل که چرې ځمانه دې اوريدلې وى نو دا به ماسره ليکې موجود وى، بيائ زه لاس نيولې ځان سره کورته بوتلم او ټولې ليکلې شوې نوشتې راته اوښودلې چه په هغې کښې هغه حديث راپيداشو، نووې فرمائيل چه ما تا ته نوې وائيلى که چرته ما نه دې دا حديث اوريدلې وى نو ماسره به ليکلې شوې موجود وى،،-

ددې روايت نه معلوميږي چه په ابوهريره رضي الله عنه باندې نسيان طارى شوې وو او هغه هم په مابعد زمانه کښې -

ددې جواب اول خودا دې چه داروايت منکر او انتهاى ضعيف دې [1] ځکه چه په دې کښې حسن بن عمرو، راوى انتهاى مجهول دې - [2] اوکه دې لره ثابت هم اوګنړو نو دحافظ ابن حجر رحمه الله دقول مطابق ديوه نادره واقعه ده [3] اود يو واقعې نيمې دوجې نه دهغوى دقوت حفظ مسلم خوصوصيت باندې څه اثرنه پريو زى - والله سبحانه وتعالى اعلم-

حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ بِهَذَا أَوْ قَالَ غَرَفَ بِيَدِهِ فِيهِ [٣٤٤٨]

## رجال الحديث

① **ابراهيم بن المنذر** :دا ابو اسحاق ابرهيم بن المنذر قرشى اسدى مدنى رحمه الله دې ددى حالات دکتاب العلم په ابتداء کښې باب من سئل علما وهو مشتغل فى حديثه.....، سره تير شوې دې [4]

② **ابن ابى فديک** :دا محمدبن اسماعيل بن مسلم بن ابى فديک دهلى مدنى رحمه الله، ابو

[1] فتح البارى (ج١ص٢١٥) -
[2] تعليقات جامع بيان العلم وفضله (ج ١ص ٣٢٤)،رقم (٤٢٢)_
[3] فتح البارى (ج١ص٢١٥) -
[4] اوګورئ كشف البارى (ج٣ص٣٨_٥)

اسماعيل ددې كنيت دې، او دا ابوفديک په نوم مشهور دې. او دابوفديک نوم دينار دې[1]
دې دسلمه بن وردان، دضحاک بن عثمان، ابن ابی ذئب، ابراهيم بن الفضل مخزومی رحمهم الله
وغيره داهل مدينې څخه روايت کوی -
اوددوی نه روايت کونکوکښې ابرهيم بن المنذر، سلمة بن شبيب، احمد بن الازهر، عبدبن حميد، هارون الحمال، حسين بن عيسى بسطامی او محمدبن مصفی رحمهم الله وغيره ډيرشې حضرات شامل دی -[2]
امام يحی بن معين رحمه الله فرمائي ثقة -،،[3]

نيزهغوی فرمائي كان اروى الناس عن ابن ابي ذئب، وهوثقة،، -[4]

امام نسائي رحمه الله فرمائي ..ليس به باس -،،[5]

حافظ ذهبی رحمه الله ددی په تذکره کښې ليکی ..الامام، الثقة، المحدث...،، -[6]

نيزهغوی فرمائي ..صدوق، مشهور، يحتج به في الكتب الستة،،[7]
ابن حبان رحمه الله دې په كتاب الثقات كښې ذكركړې دې -[8]
البته يعقوب بن سفيان رحمه الله دې ضعيف ګرځولې دې[9]
دغه شان ابن سعد رحمه الله فرمائي ..وكان كثيرالحديث، وليس بحجة،، -[10] ليکن ده خبره دې هم واضحه وی چه ددی په باره کښې مطلقا د، ضعف،، اطلاق کول صحيح نه دی، څنګه چه دروستوعلماء داقوالونه معلوميږی -
نيزدابن سعد رحمه الله ترديدكولوسره حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی ..قال ابن سعد وحده : ليس بحجة، ووثقه جماعة،، -[11]
يعنی، دې لره صرف ابن سعد رحمه الله غير محتج به ګرځولې دې، ګنی دده پوره يوجماعت توثيق کړې دې څنګه چه امام ذهبی په يومقام کښې فرمائي :

---

[1]) تهذيب الكمال (ج ٢٤ص٤٨٥) -
[2]) د شيوخ اواستاذانودتفصيل دپاره اوګورئ تهذيب الكمال (ج ٢٤ص٣٨٥-٤٨٧) -
[3]) تاريخ الدارمی (ص٢١٨)رقم (٨١٩) -
[4]) تعليقات تهذيب الكمال (ج ٢٤ص٤٨٨) -
[5]) تهذيب الكمال (ج ٣٤ص ٤٨٨) -
[6]) سيراعلام النبلاء (ج٩ ص ٤٨٦) -
[7]) ميزان الاعتدل (ج٩ص ٤٨٣) رقم (٧٢٣٦) -
[8]) الثقات لابن حبان (ج٩ ص٤٢) -
[9]) تعليقات تهذيب الكمال (ج ٢٤ص٤٨٨) نقلا عن المعرفة والتاريخ (٣-٥٣) -
[10]) التبقات الكبرى لابن سعد (ج٥ص٤٣٨) -
[11]) ميزان الاعتدال (ج ٣ص٤٨٣) رقم (٨٢٣٦) -

وقد احتج بابن ابي فديك الجماعة، ووثقه غير واحد، لكن معن احفظ منه واتقن،،ـــ(۱)
یعنی ابن ابی فدیک لره اصحاب اصول سته محتج به ګرځولي دي اوبونه زیات حضراتو د و توثیق کړېدي او دا بله خبره چه معن بن عیسی دده په مقابله کښي زیات متقن او حافظ دي،،ـ په اصل کښي ابن سعد په کتاب الطبقات کښي رومبې دمعن بن عیسی رحمه الله تذکره لیکلې ده اوده په باره کښي ذکرکړی دی ..وکان ثقة كثير الحديث ثبتا مامونا،،ـ(۲) اوددې نه پس ئې دابن ابی فدیک تذکره لیکلې ده دې سره ئې لیکلی دی وكان كثير الحديث، وليس بحجة،، حافظ ذهبی رحمه الله هم دې خبرې ته اشاره کړې ده چه دده متعلق ئې دلیس بحجة کومه وېنا شوې ده هغه دمعن بن عیسی سره دتقابل په اعتبارسره ده ګینې فی نفسه هغه ثقه دې. والله اعلم
د ابن ابی فدیک رحمه الله انتقال په۲۲کال ۲۰۰هجری کښي شوې دې(۳) رحمه الله تعالى رحمةً واسعةً
**دې طریق لره دذکرکولو مقصد** :دامام بخاری رحمه الله مقصد دمتن الفاظوکښي تبدیلې طرف ته اشاره کول دی اوهغه ده چه په دې مقام باندې امام بخاری رحمه الله داحدیث داحمد بن ابی بكر ابومصعب، عن محمد بن ابراهيم بن دينار عن ابن ابي ذئب عن سعيد المقبري عن ابي هريرة،، طریق سره نقل کړې دې،چه الفاظ ئې دا دی ....،،فغرف بيديه ......،، -او هم دا حدیث امام بخاری :د ابراهيم بن المنذر عن ابن ابي فديك عن ابن ابی ذئب،،،په طریق سره هم نقل کوی (۴)لیکن په دې کښي الفاظ دی غرف بيده فيه،،ـ
دبعضې حضراتونه دلته عجیبه خبط شوې دې ځکه چه دلته امام بخاری رحمه الله داسې فرمائیلی دی :حدثنا ابراهيم بن المنذر، قال حدثنا ابن ابی فديك بهذا،، ای بالحديث الذی تقدم،، اوروستو دابن ابی فدیک څه تذکره هم نه ده ر غلې، بهذا،،خو په داسې وخت کښي وائیلې کیږی چه کله یوحدیث په سنداو متن سره یوځې راغلی وی اوددې نه پس بل سندراشی اوبیا دهغې نه پس دواړه سندونه متحد راشی نودې لره ذکرکولو سره.. بهذا،، وائي اومطلب داوی چه کوم سند اومتن تیرشوې دې ددې حدیث سند مخکښي هم هغه شان دې اومتن ئې هم هغه دې ـ حالانکه دلته چه څنګه سند بدل دې دغه شان متن هم مختلف ذکرشوې دې ـ
ددې اشکال دوجې نه بعضې حضراتوداً ونیلې دی چه دابن ابی فدیک هم هغه محمد بن ابراهیم بن دیناردې کوم چه دابن ابی ذئب شاګرددې او دبرنې حدیث په سند کښي تیرشوې دې لیکن دا غلطه ده،ځکه چه ابن ابی فدیک بالکل بدل شخصیت دې اومحمدبن ابراهیم

(۱) سیراعلام النبلاء (ج۹ص۴۸۷)ـ
(۲) اوګورئ طبقات ابن سعد(ج۵ص۴۳۸)-
(۳) الکاشف (ج۲ص۱۵۸) رقم (۴۷۲۷)
(۴) اوګورئ صحیح البخاری (ج ۱ص ۵۱۴و۵۱۵) باب (بدون ترجمة بعد باب سوال المشركين ان يريهم النبي ﷺ اية) رقم(۳۶۴۸) ـ

بن دينارخانله يوبل شخصيت دي،ابن ابی فدیک محمدبن اسماعیل بن مسلم دي اودي
ليثی دي اودهغوی کنية ابواسماعيل ده اومحمدبن ابرهيم بن دينار جهني دي اودهغه
کنيت ابوعبد الله دي البته دواړه دابن ابی ذئب نه په روايت کولوکښې اومدنی کيدوپه
حيثيت سره څه اشتراک لری ـ (۱)
اصل کښې دا غلطی ددې حديث په دويمه طريقه باندې دنظرنه کولوپه وجه پيښه شوې ده
موږ چه روستوکومه حواله ورکړې ده که چرته هغه هم دنظرلاندې وې نو بيابه دا غلطی نه
واقع کېدله ـ اصل کښې دلته مصنف ته تول روايت مقصودنه وو،نو خکه ئ داسې اوکړه چه
دابراهيم بن المنذر نه پس ئ دابن ابی فديک ذکرکولوسره دې خبرې ته اشاره اوکړه چه دا
روايت په يو بل سند سره هم منقول دې،چه په هغې کښې د ،،غرف بيده،، په صيغه دمفرد سره
راغلې دې نه چه په صيغې دتثنيې سره او په هغې کښې د ،،فيه،، زياتی هم شته ـ (۲) والله اعلم

[۱۲۰] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي أَخِي عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ حَفِظْتُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وِعَاءَيْنِ، فَأَمَّا أَحَدُهُمَا فَبَثَثْتُهُ، وَأَمَّا الآخَرُ فَلَوْ بَثَثْتُهُ قُطِعَ هَذَا الْبُلْعُومُ

## رجال الحديث

① **اسماعيل** :دي ابوعبدالله اسماعيل بن ابی اويس عبدالله بن عبدالله بن اويس بن مالک بن ابی عامراصبحی مدنی رحمه الله دي اودده حالات په کتاب الايمان،باب تفاضل اهل الايمان فی الاعمال،، کښې تيرشوي دی ـ (۳)

② **اخي**:دي د اسماعيل بن ابی اويس وروروعبدالحميدبن ابی اويس عبدالله بن عبدالله بن اويس بن مالک بن ابی عامر اصبحی مدنی رحمه الله دي اودده کنيت ابوبکر ده ـ (۴)
دي دسليمان بن بلال، امام مالک،ابن ابی ذئب،محمدبن عجلان،سفيان ثوری اودخپل والدابواويس رحمهم الله وغيره نه روايت کوی۔
اوددی نه روايت کونکوکښې ابرهيم بن المنذر،اسحاق بن راهويه،اسحاق بن موسی انصاری،اودده رور اسماعيل بن ابی اويس،ايوب بن سليمان بن بلال،محمدبن رافع نيسابوری،محمد بن سعدکاتب الواقدی اويعقوب بن محمدزهری رحمهم الله وغيره ډيرشې حضرات شامل دی ـ (۵)

---

(۱) د دواړوحضراتوتراجم موږ روستوذکرکړی دی ـ فليراجع ـ
(۲) اوګورئ فتح الباری (۱ص۲۱۶) ـ
(۳) کشف الباری (ج۲ص۱۱۳)ـ
(۴) تهذيب الکمال (۱۶ص ٤٤٤) ـ
(۵) دشيوخ او تلامذو دتفصيل دپاره اوګورئ تهذيب الکمال (۱۶ص ٤٤٤او٤٤٥)ـ

امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائي چه ,,ثقة،، (۱)
امام ابوداود رحمه الله ده لره داسماعیل بن ابی اویس څخه زیات فوقیت ورکړي ـ (۲)
امام دارقطني رحمه الله فرمائي ,,حجة،، ـ (۳)
حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي ,,ثقة،، ـ (۴)
ابن حبان رحمه الله دې په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې (۵)
البته امام نسائی دې ضعیف ګرزولې دې ـ (۶)

دهغه شان ازدی وئیلی دی ,,کان یضع الحدیث،، (۷)
ترکوم خې پورې چه دامام نسائی دتضعیف تعلق دې نو هغه مبهم دې اودتوثیق افرادچه دی نوهغوی ډیر ګڼړشي دی۔
اوکوم خې پورې چه دازدی د قول تعلق دې نواول خو هغه پخپله حجت نه دې۔ (۸)
بیاابن عبدالبر رحمه الله ددې ډیرسخت تردید کړې دې او وئیلی دی ,,هذا رجم بالظن الفاسد وکذب محض.....،، ـ (۹)

حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي ,,وهذه منه زلة قبيحة،، ـ (۱۰)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه زما په خیال ازدی دوضع حدیث الزام په عبدالحمیدبن ابی اویس باندې نه دې لګولې، بلکه دابوبکرالاعشی په نوم یوبل راوی دې دهغه په باره کښې وائیلی دی (۱۱)او اګرچه دعبدالحمید کنیت هم ابوبکرالاعشی دې،،. دعبدالحمیدبن اویس څخه دابن ماجه نه علاوه ټول اصحاب اصول سته احادیث اغستې دې (۱۲)
ددوی انتقال په کال ۲۰۲هجري کښې شوې دې ـ (۱۳) رحمه الله تعالی رحمة واسعة

---

(۱) تهذیب الکمال (ج۱۶ص ٤٤٥)_
(۲) حواله بالا _
(۳) میزان الاعتدال (ج۲ص۵۳۸) رقم (٤٧٦٤)،وتهذیب التهذیب (ج۶ص۱۱۸) _
(٤) الکاشف (ج۱ص۶۱۷) رقم (۳۱۱۰)_
(۵) الثقات لابن حبان (ج۸ص۳۹۸)_
(۶) تهذیب التهذیب(ج۶ص۱۱۸)،وهدی الساری (ص٤١٦)_
(۷) میزان الاعتدال (ج۲ص۵۳۸) رقم (٤٧٦٤)_
(۸) اوګورئ الرفع والتکمیل للکنوی مع التعلیقات الحافلة علی الرفع والتکمیل للیشخ عبدالفتاح ابوغدة (۲۷۲_۲۷٤)-
(۹) هدی الساری (ص ٤١٦) _
(۱۰) میزان الاعتدال (ج۲ص۳۸) –
(۱۱) هدی الساری (ص٤١٦)،وتهذیب التهذیب(ج۶ص۱۱۸)_
(۱۲) هدی الساری (ث۳۱۶) –
(۱۳) خلاصة الخزرجي (ص۲۲۲)_

③ **ابن ابى ذئب** :دا امامحمدبن عبدالرحمن بن المغيره بن حارث بن ابى ذئب قرشى مدنى رحمه الله دي د ده حالات اوس دمخکښې حديث سره تيرشو۔

④ **سعيد المقبرى**:ابوسعيدبن سعيد کيسان مقبرى مدنى رحمه الله د ده حالات په کتاب الايمان، باب صوم رمضان احتسابا من الايمان ،،لاندې تير شوى دى (١)

⑤ **حضرت ابو هريره** رضي الله عنه : د حضرت ابوهريره رضي الله عنه حالات د،،کتاب الايمان په باب امور الايمان،، لاندې تير شوى دى(٢)

**قوله: حفظت من رسول الله صلى الله عليه وسلم وعاءين**: ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دوه وعاء (تهلې) دعلم زده کړې دي۔ وعاء ظرف ته وائي. ګوياچه د ظرف په ذکرکولو سره مظروف يعنى دمحل په ذکر کولوسره ئ ,, حال، ،مراد اغستې دې۔(٣)
دلته دا اشکال پيداکيږى چه روستوراغلى دى چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه به دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په باره کښې وائيل چه ،،کان يکتب ولا اکتب،،۔(٤) يعنى,, هغه به ليکل کول اومابه ليکل نه کول،،۔نوبيا ده سره دوه ,,وعاء،، دکوم ځې نه راغلې ؟
ددې جواب دا دې چه دلته د,,وعائين،، نه نوعين من العلم،،مراد دى،، يعنى ماته دحضور اکرم صلى الله عليه وسلم دعلومو نه دوه نوعينې يادې وې،که چرته دامې ليکلې وې نو دوه لوخي يا دوه تهلې به ترې ډکې شوې وې ـ(٥)
يا داسې هم وائيلې کيدشى چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه به په شروع کښې ليکل نه کول ليکن بيا روستو ئ ليکل کول،يا ئ په بل چاليکلى وو ـ(٦)
بيادا هم زده کړه چه په دې روايت کښې,, وعائين،، دې او دمسند احمد په يو روايت کښې دى چه ,,حفظت ثلاثة اجرية بثثت منها جرابين،،(٧)چه ,, مادرې تهلې يادې کړې وې اوپه هغې کښې مې دوه تهلې خوارې کړې دى،،۔
په دې دواړو رواياتونوکښې هيڅ تعارض نشته،بلکل ممکنه ده چه يو وعاء دبلې وعاء په مقابله کښې غټ وى چه په وعاء کښې ځومره وى هغه په دواوجرابوکښې راځى اوپه وړکى کښې ديوې جرابې په اندازه وى ـ(٨) بلکه د,المحدث الفاضل،،په يو منقطع طريق سره ``خمسة

---

(١) كشف البارى (ج٢٣٣٦)ـ
(٢) كشف البارى (ج١ص٦٥٩)-
(٣) فتح البارى (ج١ص٢١٦) ـ
(٤) صيح البخارى (ج١ص٢٢) كتاب العلم. باب كتابة العلم.رقم (١١٣) ـ
(٥) فتح البارى (ج١ص ٢١٦)ـ
(٦) هم برنئ حواله ـ
(٧) فتح البارى (ج١ص٢١٦) ـ
(٨) هم برنئ حواله ـ

اجربة،،هم راغلي دي .دي لره هم په تقدير دثبوت سابقه محمل باندې محمول کولې شی -[1]
والله اعلم

**قوله: فاما احدهما فبثثته :** بس په هغه دواو نوعو کښې يوه نوعه علم ما خور کړو.
داسماعيلی په روايت ،،فی الناس،، اضافه هم شته -[2] مطلب دادې چه مادعلم يوه نوعه په خلقو کښې خور اکړه-

**قوله: واما الاخر فلوبثثته قطع هذا البلعوم :** پاتې شوه دويمه نوعه، نوکه چرته زۀ هغه خوره کړم نو داستې به پرې کړې شی -

**په دې نوع ثانی کښې څه وو :** ① حضرات علماء فرمائي چه په دې کښې د ظالمانو حکمرانانو نومونه وو،هم دغه شان پکښې ددوی حالات اودوی د زمانوتعين پکښې وو.څکه چه حضرت ابوهريره ﷛ به کله کله دې ته اشاره هم کوله،مثلا فرمائيل بې .. اعوذ بالله من راس الستين وامارة الصبيان،،- يعنی ،، زۀ دالله تعالی پناه غواړم دشپېتود اواخرنه اود هلکانودامارت نه،، ددې نه دهغوی اشاره ديزيدبن معاويه خلافت طرف ته وه.څکه چه يزيدپه ۶۰هجرې کښې خليفه جوړشوې وو،الله تعالی دابوهريره ﷛ دعا قبوله کړه اوبه۵۹هجرې کښې ئې انتقال اوشو-[3]
② بعضې حضرات وائي چه په دې نوع ثانی کښې دهغې فتنوتذکره وه کومې چه دحضورپاک ﷺ نه پس واقع شوې -[4] لکه دحضرت عثمان ﷛ شهادت او دکعبې محاصره اودهغې سوزېدل بيا دهغې دمنهدم کيدو نه پس دهغې تعمير کول وغيره-
③ ابن بطال ﷫ دابوالزناد ﷫ نه نقل کوی:

،، يعنی انها کانت احاديث اشراط الساعة وماعرف به عليه السلام من فساد الدين وتغير الاحوال، والتضييع لحقوق الله تعالى، كقوله عليه السلام : ،،يكون فساد هذا الدين على يدى اغيلمة سفهاء من قريش،، -[5]

---

[1] برانې حواله -
[2] هم برنې حواله -
[3] كذا قال الحافظ ﷫ فی فتح الباری (ج۱ص۲۱۶)،وقال ايضافی فتح الباری (ج۱۳ص۱۰)كتاب الفتن، كتاب الفتن، با ب قول النبی ﷺ:هلاک امتی علی يدی اغيلمة سفهاء): وفی رواية ابن ابی شيبة: ان اباهريرة كان يمشی فی السوق،ويقول: اللهم لاتدركنی سنةستين ولاامارة الصبيان،،- ولكن الذی رواه احمدعن ابی هريرة مرفوعا ،، تعوذوا باالله من راس السبين وامارة الصبيان،،- انظر المسند(ج ۲۳۲۶)،رقم (۸۳۰۲و ۸۳۰۳)، و(ج۲ص۳۵۵)، رقم (۸۶۳۹)،و(ج۲ص۴۴۸)،رقم (۹۷۸۲). فتنبه-
[4] اوګورئ رسالة شرح تراجم ابواب صيح البخاری (ص۱۵و۱۶)-
[5] شرح ابن بطال(ج۱ص۱۹۵)- دحديث شريف دپاره اګورئ صحيح البخاری (ج۲ص۱۰۴۶)،كتاب الفتن، باب قول النبی ﷺ هلاک امتی علی يدی اغيلمة سفهاء..رقم (۷۰۵۸)، اومسند احمد (ج۲ص۲۸۸)، رقم(۷۸۵۸)، و(ج۲ص۲۹۹)، رقم (۷۹۶۱)،و(ج۲ص ۳۰۴)، رقم (۸۰۲۰)... [بقيه حاشيه په راروانه صفحه..

حاصل داشوه چه ددې نوع علم نه مرادهغه احاديث دی کوم چه دقيامت دعلاماتو سره متعلق دی، نيز هغه احاديث پکښې هم دی په کومو کښې چه حضوراکرم ﷺ دینی فساد، داحوالوتغير او الله تعالى دحقوقوتضيع (ضائع) ذكركړې دی، څنگه چه ارشاددې " ددې دين خراب تيا به دقريش ديوځو بې وقوف هلكانود لاسه كيگي".

حضرت ابوهريره رضی الله عنه ته ددې سفهاء نوم په نوم علم وو. [۱]

ددې حديث نه داشراط ساعت (علامات دقيامت) مراد اغستلو سره ممكنه ده چه چاته اشكال اوشي چه داشراط ساعتو احاديث خو نورو صحابوته هم معلوم وو نو هغوی خوبيان كړې وو، نو لهذاداسې مراد اغستل ډيره بعيده خبره ده.

ددې جواب دا دې چه دقيامت علامات ډير داسې دی چه عام خلقوعقلونو كښې دهغې دتحمل قوت نشته، نو حضرت ابوهريره رضی الله عنه ته اووده پشان ډير صحابه كراموته دهغې ښودنه شوې وه او دعام خلقونه دهغې اخفاء شوې وه. والله اعلم.

④ علامه كرمانى رحمه الله فرمائي چه بعضې متصوفين (صفياء كرام) ددې مراد علم الاسرار اخلى، څنگه چه هغوی وائي چه دنوع اول علم الاحكام اوعلم الاخلاق دی او دنوع ثانی نه مرادعلم الاسرار دې، چه هغه دعلماء اوداهل معرفت سره مختص دی، هم ددې حضراتو كښې دچا شعردې:

يارب جوهرعلم الاحكام لوابوح به لقيل لى: انت ممن يعبد الوثنا

و لا ستحل رجال مسلمون دمى يرون اقبح ما يأتونه حسنا

(خما سره بعضې داسې علمی جوهردی كه چرسته زۀ هغه ښكاره كړم نو ماته به اونيلی شی چه ته هم دبت پرستونه ئې اوډير شې مسلمانان به خما وينا حلاله اوگرځوی، گوياچه هغوی به دخپل قبيح ترين فعل مستحسن اوگنړی.)

علامه كرمانى رحمه الله دداسې متصوفينوچه دهغوی اعمال اواخلاق دشريعت دقيد نه ازاد دی، د هغی خبر اغستې دې او فرمائيلی دی چه ددې حديث نه دعلم الاسرار مراد اغستل خو بعيد نه دی، خودشريعت دقواعدو او دعقائدو كماحقه دپابندې دقيدلحاظ ساتل ډير ضروری دی. [۲]

⑤ حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائي چه اهل حقيقت يعنی حضرات صوفيه كرامو دا حديث په خپلې مدعاباندې محمول كړې دې خو دځه بعيده نه ده. [۳]

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائي چه دحضرت گنگوهی رحمه الله مرادهغه باطنيه او

---

بقيه حاشيه د تيرمخ] ,و(ج۲ص۳۲۸)، رقم (۸۳۲۹)، رقم (ج۲ص۴۸۵)، رقم (۱۰۲۹۷).

[۱] اوگورئ: صحيح البخاری (ج۲ص۱۰۴۶)، كتاب الفتن،باب قول النبی ﷺ هلاک امتی علی يدی اغيلمة سفهاء، رقم (۷۰۵۸).

[۲] شرح الكرمانی (ج ۲ص ۳۶۹).

[۳] لامع الدراری (ج۲۳۶۹).

متصوفين نه دی دکوموذکر چه مخکښې راغلې دې بلکه ددې نه مراداهل حق عارفين کاملين دی.دکومو دننه چه دمعرفت بالله خصوصيت دشريعت باندې عمل کولوسره او دحضور ﷺ دکاملې اتباع سره راځي -[1]

چنانچه دعلامه قسطلانی رحمه الله دکلام نه ددې تائيد کيږی،هغه وائي-

ددې نه مرادعلم الاسراردې،کوم چه داهل عرفان اومشاهدات اواهل اتقان اوداهل رسوخ سره مختص دی.کوم چه په حقيقت دعلم شرائع او داتباع رسول ﷺ نتيجه ده.او داسې علوم دمجاهدوپه سمندرغټو وهونکوخلقوته حاصليږی -

علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چه په دې مقام کښې داسې علوم مراد کيدل لګه لرې ده،ځکه چه دداسې علوموډپټوالی هډو څه وجه نشته دې -[2] والله اعلم

ابن المنير رحمه الله فرمائي چه اهل باطنيه دې حديث لره دباطل عقائدو او نظرياتو تصحيح لره د هتهياررو(اسلحه) په توګه استعمال کړې دې او وائيلی دی چه شريعت يو ظاهر دې او يو باطن دې .....دباطن څه څيزدې ؟ حقيقت دا دې چه دوی ددين د بيخکندې لره نوم باطن دشريعت اينښې دې -[3] والله اعلم

**قوله: قال ابوعبدالله: البلعوم مجری الطعام:** ابوعبدالله (امام بخاری رحمه الله) فرمائي چه بلعوم دخوراک نالې ته وائيلې کيږی - دا عبارت صرف دمستملی په روايت کښې دې-[4]

بلعوم دباء په ضمه سره دې-[5]

ابن بطال رحمه الله فرمائي چه بلعوم دحلقوم په معنی دی،اودا دپيټړونه والاترډساه دنالې پورې ته وائي،اودې سره متصل تر معدې پورې دخوراک نالې ته ,,مرئ،، وائي -[6]

دلته دبلعوم نه مرادحلق او نرخره ده[7] والله اعلم

**داحاديث باب د ترجمةالباب سره مطابقت** : داباب ,,باب حفظ العلم،، دې اوپه دې کښې درې حديثونه مذکور دی،دړومبی حديث دباب سره مناسبت واضحه دې چه په دې کښې اشتغال (مشغولتيا) علمی مذکوره ده اوچه څومره مشغولتيه وی هم هغه شان به په حفظ علم کښې مددحاصليږی-

بياپه دې حديث کښې دلزوم اودحضوراودمذاکره علمی ذکرهم دې ,,**وان اباهريرة کان يلزم رسول الله ﷺ بشبع بطنه ويحضر مالايحضرون ويحفظ مالايحفظون**،، داټول دحفظ علم اسباب دی- په دويم

---

[1] الکنز المتواری (ج۲ص۳۶۹) —

[2] شرح القسطلانی (ج۱ص۲۱۲)_

[3] اوګورئ فتح الباری (ج۱ص۲۱۶) _

[4] عمدة القاری (ج۲ص۱۸۶) _

[5] فتح الباری (ج۱ص۲۱۶) _

[6] شرح ابن بطال(ج۱ص۱۹۶) _

[7] اوګورئ القاموس الوحيد(ص۱۷۹)_

حديث كښې د آه وزارى (ژړه فرياد) اوحضوراكرم ﷺ نه د دعا دطلب دې. چه دا ښه ظاهره ده دحفظ حديث دپاره اهم ترين سبب دې۔
دريم حديث كښې دعلم دنشر اواشاعت ذكردې او داهم دحفظ علم اوحفاظت دعلم دپاره يو لويه ذريعه ده ۔ والله سبحانه وتعالىٰ اعلم

# ۴۳۔ باب: الانصات للعلماء

**د تيرشوى باب سره مناسبت** : مخكښې باب ,, باب حفظ العلم،، تيرشوې دې اويه دې باب كښې دانصات يعنى دچپوالى او استماع يعنى غوږ ايخودوذكردې، په دواړوكښې مناسبت واضحه دې چه علم دعلماء نه په حاصلولو سره حفظ كيږى او دې دپاره انصات يعنى سكوت اواستماع ضرورى ده، دې دپاره چه چرته څه خبره داوريدو نه پاتې نشى (۱) والله اعلم
**مقصد دترجمة الباب** :ابن بطال رحمه الله فرمائى چه دامام بخارى رحمه الله مقصود متعلمينوته تنبيه وركول دى چه دعلماؤپه وړاندې انصات اودهغوى توقير لازمى دې. ځكه چه علماء دحضرات انبياء كراموعليهم السلام وارثان دې او الله (جل جلاله) خپل مومنانوبندګانوته دنبى كريم ﷺ په وړاندې داواز اوچتولونه منع فرمائيلې دى چه چرته حبط (ضائع كيدل) داعمالو رانشى ۔ اوحضرات علماء خو دانبياء كراموعليهم السلام وارثان دى، نوځكه دوى سره هم دتوقير او داجلال معامله پكارده اومتعلمينو لره ددوى په وړاندې داستماع او دسكوت نه كار اخستل پكار دى ۔ (۲)
علامه عينى رحمه الله هم دتيرشوى باب سره دمناسبت په ځې كښې دترجمة االباب مقصد طرف ته اشاره كړې ده چه امام بخارى رحمه الله دا وائيل غواړى چه حفظ علم كوم چه مطلوب دې د دې دحاصلولودپاره دعلماء دوړاندې په ناسته اوپه سكوت سره دهغوى خبرې اوريدل اودهغوى نه استفاده كول ضرورى ده۔ (۳)
حضرت ګنګوهى رحمه الله فرمائى چه دامام بخارى رحمه الله مقصد دادې چه وعظ اونصيحت په وخت كښې خلقولره چپ كول جائزدى، اګرچه خلق په ذكراوتلاوت وغيره كښې ولې مشغول نه وى خوبياهم دهغوى چپ كول جائزدى۔ (۴)
حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائى چه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ته حضوراكرم ﷺ ارشاد فرمائيلې وو: ,,لا الفينك تاتى القوم وهم فى حديث من حديثهم، فتقص عليهم، فتقطع عليهم حديثهم فتملهم.....،، (۵)
يعنى ,,زهٔ تا لره داسې وونه ګورم چه يوډلې اوټولګى ته راشې اوهغوى په خپله ګفتګوكښې مشغول وى او ته دهغوى خبره كټ كړې اوخپله خبره شروع كړې اوهغوى لره په ستړې توب

۱) عمدة القارى (ج۲ص۱۸۶)۔
۲) شرح ابن بطال (ج۱ص۱۹۶)۔
۳) عمدة القارى (ج۲ص۱۸۶) ۔
۴) لامع الدرارى(ج۲ص۳۷۱)۔
۵) صحيح البخارى (ج۲ص۸۳۸) كتاب الدعوات،باب مايكره من السجع من الدعاء۔ (۶۳۳۸)۔

کښې مبتلا کړي،،۔
دې ارشادنه او دداسې قسمه نورو ارشاداتونه معلومیږی چا بل چه لره خاموش کول درست نه دی،او دې سره انصات للعلماء ددې مخالف دې۔
ددې وجې نه موءلف رحمه الله ثابت کړه چه دتعلیم اوتبلیغ دضرورت دوجې نه په اوقات خاصه کښې هم دا استنصات مباح او مستحسن دې – والله تعالیٰ اعلم(۱)
بعضې حضراتو دا مقصدبیان کړې دې چه امام بخاری رحمه الله دلته دحفظ علم اودتحصیل علم طریقه بیانول غواړی چه شاګردلره پکاردی دطلب علم او د درس په دوران کښې بل څه څیز سره مشغوله کیدل نه دی پکار، بلکه دهٔ لره پکاردی چه په مکمل طور باندې خپل معلم اوشیخ طرف ته متوجې وی او زړه او ذهن لره په یکسوئې سره داستاذطرف ته ملتفت ساتی۔(۲) والله تعالیٰ اعلم

[۱۲۱] حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي عَلِيُّ بْنُ مُدْرِكٍ عَنْ أَبِي زُرْعَةَ عَنْ جَرِيرٍ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ لَهُ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ «اسْتَنْصِتِ النَّاسَ» فَقَالَ «لاَ تَرْجِعُوا بَعْدِي كُفَّارًا يَضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ» [۴۱۴۳، ۶۴۷۵، ۶۶۶۹]

## رجال الحدیث

①**حجاج**: دا ابومحمد حجاج بن منهال انماطی بصری رحمه الله دې،ددی حالات په ،،کتاب الایمان،،باب ماجاء ان الاعمال بالنیة والحسبة، ولکل مانوی،، په ضمن کښې تیرشوی دی۔(۳)
②**شعبه**: امیرالمومنین فی الحدیث امام شعبه بن الحجاج رحمه الله ددوی حالات په ،، کتاب الایمان،،باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده،،لاندې تیرشوی دی۔(۴)
③**علی بن مدرک** : دا ابومدرک علی بن مدرک نخعی وهبیلی کوفی دې۔(۵)
دې دابراهیم نخعی،تمیم بن طرفه طائی، عبدالرحمن بن یزید نخعی هلال بن یساف،ابوزرعه بن عمروبن جریراودابوصالح رحمه الله نه روایت کوی۔
اوددهٔ نه روایت کونکوکښې اشعث بن سوار،حنش بن الحارث نخعی،سلیمان الاعمش،شعبه بن الحجاج او عبدالرحمن بن عبدالمسعودی رحمهم الله شامل دی(۶)
امام یحیی بن معین او نسائی رحمه الله فرمائی چه ،، ثقة،،۔(۷)

---

(۱) الابواب والتراجم (ص۵۶و۵۷)-
(۲) اوګورئ الکنزالمتواری (ج۲ص ۳۷۰و۳۷۱)_
(۳) کشف الباری (ج۲ص ۷٤٤) –
(۴) کشف الباری (ج۱ص۶۷۸)_
(۵) تهذیب الکمال(ج۲۱ص۱۲۶)
(۶) دشیوخ اوتلامذؤدتفصیل دپاره اوګورئ،تهذیب الکمال(ج۲۱ص۱۲۸)_
(۷) تهذیب الکمال (ج۲۱ص۱۲۸)_

ابوحاتم رحمه الله فرمائی ,, صالح صدوق،،۔(۱)
نیزهغوی فرمائی ,, ثقة،،۔(۲)
امام عجلی رحمه الله فرمائی ,, کوفی ثقة،،۔(۳)
ابن حبان رحمه الله هغوی لره په کتاب الثقات کښې ذکرکړې دې او لیکلی دی چه دهٔ دحضرت ابومسعودبدری رضی الله عنه نه حدیث اوریدلي دی (۴)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی ,, ثقة،،۔(۵)
ددهٔ انتقال په کال ۱۲۰هجرۍ کښې شوې دې۔(۶) رحمه الله تعالیٰ رحمةً واسعةً
④ **ابوزرعه:** دې دحضرت جریربن عبدالله بجلی رضی الله عنه نوسې دې. ددهٔ حالات په ,, کتاب الایمان ،،باب الجهادمن الایمان،،سره تیرشوی دی۔(۷)
⑤ **جریر:** دا حضرت جریربن عبدالله بجلی رضی الله عنه دې،ددهٔ حالات په کتاب الایمان،باب قول النبی ﷺ: الدین النصیحة،، دلاندې تیرشوې دې۔(۸)
**قوله: أن النبي ﷺ قال له في حجة الوداع:** حضوراکرم ﷺ هغه ته دحجة الوداع په موقع باندې فرمائیلی وو۔
بعضې علماء په دې باندې دا اشکال کړې دې چه حضرت جریر رضی الله عنه دحضوراکرم ﷺ دوفات نه څلویښت ورځې وړاندې مسلمان شوې وو۔(۹)نو لهذا هغه په حجة الوداع کښې څنګه شریکیدې دې شی ؟ معلومه شوه چه په حدیث کښې د ,, له،،لفظ وهم دې۔(۱۰)
لیکن دا صحیح نه ده ځکه چه ابن حبان رحمه الله لیکلی دی چه دې په رمضان ۱۰هجرۍ کښې مسلمان شوې وو(۱۱)،دصحیح بخاری په باب حجة الوادع کښې هم ددې حدیث په بل طریق کښې دی ,, ان النبی ﷺ قال فی حجة الوادع لجریر......،،۔(۱۲)

---

(۱) هم برننۍ حواله ۔
(۲) هم برننۍ حواله
(۳) تهذیب التهذیب (ج۷ص۳۸۱)۔
(۴) الثقات لابن حبان (ج۵ص۱۶۵) ۔
(۵) تقریب التهذیب (ص۳۰۵)، رقم (۴۷۹۶)۔
(۶) الثقات لابن حبان (ج۵ص۱۶۵)۔
(۷) کشف الباری (ج۲ص۳۰۴) -
(۸) کشف الباری (ج۲ص۷۶۴) —
(۹) قاله ابن عبدالبر فی الاستیعاب (بهامش الاصابة ج۱ص۲۳۲)۔
(۱۰) اوګورئ فتح الباری (ج۱ص ۲۱۷) ۔
(۱۱) فتح الباری (ج۱ص۲۱۷) -
(۱۲) صحیح الباری (ج۲۶۳۲)،کتاب المغازی، باب حجة الوداع، رقم (۴۴۰۵) ۔

لهذا راجح هم داده چه دې دحجة الوادع نه مخکښې مسلمان شوې وو۔(۱)

**قوله: استنصت الناس :خلق خاموش کړه**

دامام بخاری رحمه الله مقصد هم دادې چه نبی علیه السلام حضرت جریر رضی الله عنه ته اوفرمائیل ,, استنصت الناس، ای اطلب الانصات من الناس،،۔

**انصات واستماع کښې فرق**: حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په قران کریم کښې الله جل شانه: واذا قرئ القران فاستمعوا له وانصتوا (۲) فرمانیلی دی او په دې کښې داستماع اودانصات په مینځ کښې فرق شوې دې،نوهغوی فرمائی،چه ,, انصات،، مطلق سکوت او چپوالی ته وائی. که هغې سره دغوړ ایخودو اوربدل وی اوکه نه وی، مثلا داچه په سکوت سره یوخبره واوری خوفکر ئ په یو بل څیز کښې وی۔

دغه شان ,, استماع،،چه کله په سکوت سره وی اوکله په نطق سره. داسې چه خبرې کونکې اوربدونکې هم وی یعنی هم خبرې کئ اوهم ئ خبروته غوږ ایخې وی (۳) لیکن د علماء لغت داقوالوپه رنړه کښې صحیح دا معلومیږی چه انصات خاص دې او,, استماع،،عام ده داستماع معنی مطلقا دغوږ ایخودوده،که سکوت وی اوکه نه وی (۴) اوانصات داسې سکوت ته وائي چه په هغې کښې استماع هم وی۔ (۵)

دسفیان ثوری رحمه الله قول دې ,, کان یقال :اول العلم الاستماع،ثم الانصات، ثم الحفظ،ثم العمل، ثم النشر،،۔ (۶)

امام علی بن المدینی رحمه الله دسفیان بن عیینه رحمه الله په وړاندې دمطرف رحمه الله قول نقل کړو ,, چه الانصات من العینین،، نوهغوی ددې تشریح دریافت کړه نووئ فرمائیل ,, اذا حدثت رجلا فلم ینظرالیك لم یکن منصتا،،۔ (۷)

یعنی,, که ته چرته چاسره څه خبره کوې اوهغه سته خبره داسې اورئ چه سته طرف ته نه ګورئ نو هغه ته به ,,منصت،،نه وائیلې کیږی،،۔

---

۱) فتح الباری (ج۱ص۲۱۷)۔

۲) الاعراف ۱۰٤

۳) فتح الباری (ج۱ص۲۱۷) ۔

٤) استمع له والیه : اصغی .تاج العروس (ج۵۳۸۹) مادة ,, سمع،،۔

۵) قدقید الراغب والفیومی بالاستماع،قالوا :انصت ینصت انصاتا،اذاسکت سکوت مستمع ۔ انظرتاج العروس(ج۱ص۵۹۱) مادة ,, نصت،،۔

۶) جامع بیان العلم وفضله (ج۱ص٤۷۷)، باب منازل العلماء،رقم(۷۶۰) ۔

۷) فتح الباری (ج۱ص۲۱۷) –

**قوله**: فقال: لا ترجعوا بعدي كفارا يضرب بعضكم رقاب بعض: نبي عليه السلام اوفرمائيل چه خمانه پس ديوبل ستونووهلو په وجه كافران جوړنه شې ـ ددې نه معلوميږي چه مسلمان لره قتل كول كفر دې اودا دخوارجو راې ده ـ مرجئة خوداسې قسمه حديثونه ردكړې دي، ځكه چه دهغې دوړاندې دايمان نه پس بيا يومعصيت (ګناه) هم مضرنه دې ـ

**اهل السنة والجماعة ددې مختلف توجيهات كوي:**

① يوه توجيح كومه چه ډيره مشهوره ده هغه داده چه داپه مستحل باندې محمول دې ليكن داتوجيه ضعيفه ده، ځكه چه حضوراكرم ﷺ دلفظ ,, كفر، اطلاق په مخصوصو جرائمو باندې كړې دې اودمعصيت په استحلال كښې دځه قسمه ګناه تخصيص نشته، بلكه كوموګناه لره هم چه چاحلاله (جائز) اوګڼړله بس هغه كس به كافرشي ـ

②دويمه توجيح داده، چه ددې معنى ده چه دكافرانومشابه نه شې يعنى داكار دكافرانو دې چه دى مسلمانان قتل كوى، لهذاتاسوددى دافعالوپشان افعال مه كوئ ـ خلاصه ده شوه چه دافعل دكافرانو دې اوداد كفريوقسم دې ـ

③ دريمه توجيح داده چه د ,, لاترجعوا كفارا، معنى ,, لاترتدوا، يعنى مرتدنه شئ ـ

④ څلورمه توجيح داده چه ,, لا ترجعوبعدى كفارا اى بنعمة الاسلام، ـ يعنى داسلام دنعمت ناشكرى كونكى جوړنه شئ، ځكه چه اسلام دسلم نه ماخوذدې، اوهغه غواړى مصلحت لره او مسالمت لره نه دې لره چه ديوبل مقابلې دپاره تلوارونه راوچت كړئ اومقاتله اوشى ـ

⑤ پنځمه توجيح داده چه دلته دكافرنه مراد كافر بالله نه دې، بلكه دكافرنه متكفربالسلاح مراد دې يعنى په اسلحوسره ديو بل مقابلې ته مه راځې ـ[1] والله تعالىٰ اعلم

په دې ټولوتوجيهاتوكښې دويمه توجيح ذهن ته دكوځيدوپه وجه ډيره راجح ده، يعنى ديوبل ستونه وهل كافرانه فعل دې اودداسې حركت كولوپه وجه دكافرانومشابه نشئ ـ والله اعلم ـ

**قوله**: يضرب بعضكم رقاب بعض: يضرب، مرفوع دې او هم دغه صحيح روايت دې ـ يا دا ,, د كفارا، صفت دې ياد ,, لاترجعوا، دفاعل نه حال دې ـ اوبعضې حضراتو ,, د يضرب، په ,, با، ، جزم هم صحيح ګرځولې دې ليكن امام نووى رحمه الله وغيره ددې ترديد كړې دې ـ[2] والله اعلم ـ

**يو اشكال او دهغې جواب** : ددې حديث نه بعضې حضراتوداجماع په عدم حجيت باندې استدلال كړې دې، ځكه چه په دې حديث كښې دى ,, لاترجعوا بعدى كفارا، يعنى خمانه پس تاسوكافران جوړنشئ، ددې نه معلوميږى چه دټولو خلقونه دكافرانو جوړيدو امكان شته ـ اوظاهره ده چه دكوموخلقونه دكافركيدو امكان شته هغه معصوم نه دى، نولهذا دامت اجماع هم حجت نه دې ـ

---

[1] دتوجيحاتودپاره اوګورئ: شرح النووى على صحيح مسلم (ج۱ص۵۸)، كتاب الايمان، باب معنى قول النبى ﷺ لاترجعوابعدى كفارا..... وعمدة القارى (ج۲ص۱۸۷) ـ

[2] تفصيلات دپاره اوګورئ شرح النووى (ج۱ص۵۸)، اوعمدة القارى (ج۲ص۱۸۷) ـ

ددې جواب دادې چه دامت داجماع حجیت داد امت اجتماعی معصومیت دوجې نه دې.
کوم چه دخبرصادق ,, لا تجتمع امتی علی ضلالة،،(۱) نه ثابت دې،داجماع حجیت مونږ دې
خبرې نه نه ثابتوچه فی نفسه دامت گمراهی ممکن نه ده دا هم داسې ده چه دحضوراکرم ﷺ
په باره کښې سره ددې نه چه نبی علیه السلام معصوم وو بیاهم ارشادشوې دې (لئن اشرکت لیحبطن
عملك) _(۲)اودنبی علیه السلام نه داشراک ممتنع کیدل قطعی توګه باندې ثابت دی،خودنفس امکان
په بنیاد باندې (لئن اشرکت لیحبطن عملك) وائیلې شوی دی ـ
دلته هم دامت عصمت اودې په نتیجه کښې دامت داجماع حجیت دحضوراکرم ﷺ دارشاد
,, لاتجتمع،، نه ثابت ده او,, لاترجعوابعدی کفارا،، دنفس امکان په بنیاد وائیلې شوی دی ـ(۳)
والله اعلم

## ۴۴_باب: مایستحب للعالم اذسئل: ای الناس اعلم؟ فیکل العلم الی الله

,, مایستحب،،کښې ,, ما،، موصوله هم کیدې شی اومصدریه هم،,, اذاسئل،،کښې ,,
اذا،،ظرفیه دې،چه دهغې تعلق دماقبل واقع فعل ,, یستحب،،سره دې ـ
,, فیکل،،کښې ,,فاء،، فصیحیه ده اوجمله دشرط محذوف جزاده،تقدیری عبارت داسې دې
,, اذاسئل ای الناس اعلم فلیکل العلم الی الله،،اوبیا,, فیکل،،اګرچه خبردې لیکن دانشاء په معنی
کیدې ,, فلیکل العلم الی الله،،_(۴)

**دتیرشوی باب سره مناسبت** : تیرشوې باب ,,باب الانصات للعلماء،،وو دهغې حقیقت ددې چه
شاګردپه حالت سماع کښې دشیخ طرف ته متوجې کیدوسره خپل معاملات هغه ته حواله
کړی اوپه دې باب کښې چه څه مذکوردی دهغې حاصل دادې چه کله عالم نه داتپوس اوکړې
شی چه دټولونه لوې عالم څوک دې ؟نو ددې معامله دې الله ته اوسپارې ـپه دې شان دواړو
بابونوکښې مناسبت واضحه کیږی ـ(۵)

(۱) قال العجلونی فی کشف الخفاء (ج۲ص ۳۵۰) : رواه احمد والطبرانی وابن ابی خیثمة فی تاریخه ... وابن ابی عاصم فی السنة، .... وابونعیم والحاکم.....وابن منده،ومن طریقه الضیاء...... وکذاهو عند الترمذی، ورواه عبدبن حمید وابن ماجه......ورواه الحاکم ......وبالجملة،فالحدیث مشهور المتن، وله اسانید کثیرة وشواهد عدیدة فی المرفوع وغیره،،_
(۲) الزمر ۶۵_
(۳) اوګورئ عمدة القاری (ج۲ص ۱۸۷او۱۸۸)_
(۴) اوګورئ عمدة القاری (ج۲ص۱۸۸)، ولکنزالمتواری (ج۲ص ۳۷۱) _
(۵) عمدة القاری (ج۲ص۱۸۸)-

**مقصد دترجمة الباب** : حضرت شیخ الهند رحمه الله فرمائی چه دعالم نه کله د.. ای الناس اعلم ؟،،سوال اوشی نو ،، انا اعلم،،وائیل نامناسبه ده اګرچه په دغه وخت کښې په دې باندې ،، اعلم الناس،، متحقق وی بلکه مستحب دادی چه ددې په جواب کښې ،، الله اعلم،،وائی څنګه چه دحدیث باب نه دامرواضح دې۔

ددې نه دمولف مقصدهم دا معلومیږی چه علماء لره بالخصوص دعلم په باره کښې په هرحال کښې تواضع اختیارول پکاردی اودخپل نقصان اودحق سبحانه وتعالی دکمال دهان ساتل مناسب دی،نیز دلویې اودعجب اسباب څنګه چه علماء ته ډیرمیسردی،دې وجې نه هم علماؤلره په دې کښې پوره احتیاط پکاردې ۔والله اعلم[1]

[۱۲۲]حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنَا عَمْرٌو قَالَ أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ جُبَيْرٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ إِنَّ نَوْفًا الْبَكَالِيَّ يَزْعُمُ أَنَّ مُوسَى لَيْسَ بِمُوسَى بَنِي إِسْرَائِيلَ، إِنَّمَا هُوَ مُوسَى آخَرُ. فَقَالَ كَذَبَ عَدُوُّ اللَّهِ،حَدَّثَنَا أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ[2] عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم- قَالَ « قَامَ مُوسَى النَّبِيُّ خَطِيبًا فِي بَنِي إِسْرَائِيلَ، فَسُئِلَ أَيُّ النَّاسِ أَعْلَمُ فَقَالَ أَنَا أَعْلَمُ. فَعَتَبَ اللَّهُ عَلَيْهِ، إِذْ لَمْ يَرُدَّ الْعِلْمَ إِلَيْهِ، فَأَوْحَى اللَّهُ إِلَيْهِ أَنَّ عَبْدًا مِنْ عِبَادِي بِمَجْمَعِ الْبَحْرَيْنِ هُوَ أَعْلَمُ مِنْكَ. قَالَ يَا رَبِّ وَكَيْفَ بِهِ فَقِيلَ لَهُ احْمِلْ حُوتًا فِي مِكْتَلٍ، فَإِذَا فَقَدْتَهُ فَهُوَ ثَمَّ، فَانْطَلَقَ وَانْطَلَقَ بِفَتَاهُ يُوشَعَ بْنِ نُونٍ، وَحَمَلَا حُوتًا فِي مِكْتَلٍ، حَتَّى كَانَا عِنْدَ الصَّخْرَةِ وَضَعَا رُءُوسَهُمَا وَنَامَا فَانْسَلَّ الْحُوتُ مِنَ الْمِكْتَلِ فَاتَّخَذَ سَبِيلَهُ فِي الْبَحْرِ سَرَبًا، وَكَانَ لِمُوسَى وَفَتَاهُ عَجَبًا، فَانْطَلَقَا بَقِيَّةَ لَيْلَتِهِمَا وَيَوْمِهِمَا فَلَمَّا أَصْبَحَ قَالَ مُوسَى لِفَتَاهُ آتِنَا غَدَاءَنَا،لَقَدْ لَقِينَا مِنْ سَفَرِنَا هَذَا نَصَبًا، وَلَمْ يَجِدْ مُوسَى مَسًّا مِنَ النَّصَبِ حَتَّى جَاوَزَ الْمَكَانَ الَّذِي أُمِرَ بِهِ. فَقَالَ لَهُ فَتَاهُ أَرَأَيْتَ إِذْ أَوَيْنَا إِلَى الصَّخْرَةِ فَإِنِّي نَسِيتُ الْحُوتَ، قَالَ مُوسَى ذَلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِي، فَارْتَدَّا عَلَى آثَارِهِمَا قَصَصًا، فَلَمَّا انْتَهَيَا إِلَى الصَّخْرَةِ إِذَا رَجُلٌ مُسَجًّى بِثَوْبٍ- أَوْ قَالَ تَسَجَّى بِثَوْبِهِ- فَسَلَّمَ مُوسَى. فَقَالَ الْخَضِرُ وَأَنَّى بِأَرْضِكَ السَّلَامُ فَقَالَ أَنَا مُوسَى. فَقَالَ مُوسَى بَنِي إِسْرَائِيلَ قَالَ نَعَمْ. قَالَ هَلْ أَتَّبِعُكَ عَلَى أَنْ تُعَلِّمَنِي مِمَّا عُلِّمْتَ رَشَدًا قَالَ إِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا، يَا مُوسَى إِنِّي عَلَى عِلْمٍ مِنْ عِلْمِ اللَّهِ عَلَّمَنِيهِ لَا تَعْلَمُهُ أَنْتَ، وَأَنْتَ عَلَى عِلْمٍ عَلَّمَكَهُ لَا أَعْلَمُهُ. قَالَ سَتَجِدُنِي إِنْ شَاءَ اللَّهُ صَابِرًا، وَلَا أَعْصِي لَكَ أَمْرًا، فَانْطَلَقَا يَمْشِيَانِ عَلَى سَاحِلِ الْبَحْرِ لَيْسَ لَهُمَا سَفِينَةٌ، فَمَرَّتْ بِهِمَا سَفِينَةٌ،

---

[1]) الابواب وتراجم (ص۵۷)۔

[2]) قوله ،،ابی بن کعب،، قد مرتخریج هذا الحدیث فی کتاب العلم،باب ماذکرفی ذهاب،موسی (ع) فی البحرالی الخضر.........۔

فَكَلَّمُوهُمْ أَنْ يَحْمِلُوهُمَا، فَعُرِفَ الخَضِرُ، فَحَمَلُوهُمَا بِغَيْرِ نَوْلٍ، فَجَاءَ عُصْفُورٌ فَوَقَعَ عَلَى حَرْفِ السَّفِينَةِ، فَنَقَرَ نَقْرَةً أَوْ نَقْرَتَيْنِ فِي الْبَحْرِ. فَقَالَ الخَضِرُ يَا مُوسَى، مَا نَقَصَ عِلْمِي وَعِلْمُكَ مِنْ عِلْمِ اللَّهِ إِلَّا كَنَقْرَةِ هَذَا الْعُصْفُورِ فِي الْبَحْرِ. فَعَمَدَ الخَضِرُ إِلَى لَوْحٍ مِنْ أَلْوَاحِ السَّفِينَةِ فَنَزَعَهُ. فَقَالَ مُوسَى قَوْمٌ حَمَلُونَا بِغَيْرِ نَوْلٍ، عَمَدْتَ إِلَى سَفِينَتِهِمْ فَخَرَقْتَهَا لِتُغْرِقَ أَهْلَهَا قَالَ أَلَمْ أَقُلْ إِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا قَالَ لاَ تُؤَاخِذْنِي بِمَا نَسِيتُ. فَكَانَتِ الأُولَى مِنْ مُوسَى نِسْيَانًا. فَانْطَلَقَا فَإِذَا غُلاَمٌ يَلْعَبُ مَعَ الْغِلْمَانِ، فَأَخَذَ الخَضِرُ بِرَأْسِهِ مِنْ أَعْلاَهُ فَاقْتَلَعَ رَأْسَهُ بِيَدِهِ. فَقَالَ مُوسَى أَقَتَلْتَ نَفْسًا زَكِيَّةً بِغَيْرِ نَفْسٍ قَالَ أَلَمْ أَقُلْ لَكَ إِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا- قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ وَهَذَا أَوْكَدُ- فَانْطَلَقَا حَتَّى إِذَا أَتَيَا أَهْلَ قَرْيَةٍ اسْتَطْعَمَا أَهْلَهَا، فَأَبَوْا أَنْ يُضَيِّفُوهُمَا، فَوَجَدَا فِيهَا جِدَارًا يُرِيدُ أَنْ يَنْقَضَّ فَأَقَامَهُ. قَالَ الخَضِرُ بِيَدِهِ فَأَقَامَهُ. فَقَالَ لَهُ مُوسَى لَوْ شِئْتَ لاَتَّخَذْتَ عَلَيْهِ أَجْرًا. قَالَ هَذَا فِرَاقُ بَيْنِي وَبَيْنِكَ » . قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - « يَرْحَمُ اللَّهُ مُوسَى، لَوَدِدْنَا لَوْ صَبَرَ حَتَّى يُقَصَّ عَلَيْنَا مِنْ أَمْرِهِمَا »

## رجال الحديث

① **عبدالله بن محمد**: دا ابوجعفرعبدالله بن محمدبن عبدالله بن جعفربن اليمان بن اخنس جعفی مسندي بخاری رحمه الله دي، ددهٔ حالات په كتاب الايمان،، باب امورالايمان،. دلاندي تيرشوي دی۔(۱)

② **سفيان** : داامام ابومحمدسفيان بن عيينه ابی عمران هلالی كوفی رحمه الله دي ددهٔ حالات په كتاب الايمان،،باب قول المحدث : حدثنا او اخبرنا وانبانا، لاندي تيرشوي دی۔(۲)

③ **عمرو** : دامشهورامام اوفقيه عمروبن دينارمكی رحمه الله دي،ددهٔ حالات هم په دي جلد كښې په ،،باب كتابة العلم، ، كښې تيرشوي دی۔

④ **سعيدبن جبير**: دا مشهور تابعی عالم امام سعيدبن جبيركوفی رحمه الله دي،ددهٔ حالات اوس په ،، باب السمرفي العلم، ،لاندي تيرشو۔

⑤ **حضرت ابن عباس** رضي الله عنهما : دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما حالات د،، بدءالوحی،،په څلورم حديث په ضمن كښې تير شو(۳)اودكتاب الايمان په ،، باب كفران العشيروكفر دون كفر، ، لاندي تير شو(۴)

---

(۱) كشف البارى (ج۱ص۶۵۷)۔
(۲) كشف البارى (ج۳ص۸۲)۔
(۳) كشف البارى (ج۱ص۴۳۵)۔
(۴) كشف البارى (ج۲ص۲۰۵)۔

⑥ نو ف بكا لى : دا نوف _ بفتح النون وسكون الواو، بعدها فاء _ بن فضالة _ بفتح الفاء _ الحميرى البكالى _ بكسر الباء الموحدة وتخفيف الكاف _ رحمه الله دې دهٔ ابوالرشيد، ابورشدين، ابوعمرو مختلف كنيتونه ښودلې كيږى _ په اهل دمشق ياپه اهل فلسطين كښې دهٔ شماركيږى ديوقول مطابق دې دكعب احبار سكه خوى دې _(١)

دې دحضرت ثوبان مولى درسول الله ﷺ او دحضرت عبدالله بن عمروبن العاص،او على بن ابى طالب، ابوايوب انصارى رضي الله عنهم اودكعب احبار رحمه الله نه روايت كوى _

اوددهٔ نه خالدبن صبيح،سعيدبن جبير، شهربن حوشب،نسيربن ذعلوق،ابواسحاق همدانى، ابوعمران جونى او ابوهارون عبدى رحمه الله وغيره روايت كوى _(٢)

ابوعمران جونى رحمه الله فرمائى .. كان نوف ابن امراة كعب، احد العلماء، ._(٣)

يحي بن ابى عمروالشيبانى رحمه الله فرمائى .. كان نوف اماما لاهل دمشق، .(٤)

ابن حبان رحمه الله دې په كتاب الثقات كښې ذكركړې دې اوليكلى دى .. يروى القصص، ._(٥)

په صحيحينو كښې ددهٔ ذكر په حديث موسى والخضر سره راغلې دې _(٦) وانيلى كيږى چه يو كس نوف بكالى رحمه الله ته راغو او ورته ي ووئيل چه تهٔ ما په خوب كښې ليدلې ئ چه ستا په لاس كښې يوه لويه نيزه ده اودهغې په سر كښې يوه روښنائى ده، چه خلق ترې فائده اخلى او تهٔ ديولښكرقيادت كوې _

نوف بكالى رحمه الله ورته اووئيل كه چرته تهٔ رښتونې ئ نو ماته شهادت حاصل شو،اوهم داسې اوشو، چه دې دمحمدبن سره جهادته لاړو اوهلته شهيد شو_(٧)

د ٩٠هجرې نه والاتر ١٠٠هجرې په مينځ كښې شهيد شوې دې(٨) رحمه الله تعالى رحمة واسعة

⑦ ابى بن كعب رضي الله عنه: دحضرت ابى بن كعب رضي الله عنه حالات په كتاب العلم، باب ما ذكر ذهاب موسى عليه الصلاة والسلام فى البحر الى الخضر، ، لاندې تيرشوى دى _(٩)

**قوله: قلت لا بن عباس :ان نوفا البكالى يزعم ان موسى ليس بموسى بنى اسرائيل، انما هوموسى اخر:** سعيد بن جبير رحمه الله فرمائى چه ماحضرت ابن عباس رضي الله عنهما

---

(١) تهذيب الكمال (ج٣٠ص٦٥)_
(٢) دشيوخ او تلامذؤ دپاره اوګوئ، تهذيب الكمال (ج٣٠ص٦٥)_
(٣) هم برنې حواله _
(٤) تهذيب التهذيب (ج١٠ص ٤٩٠)_
(٥) الثقات لابن حبان (ج٥ص٤٨٣)_
(٦) تهذيب الكمال (ج٣٠ص٦٦)_
(٧) تهذيب الكمال (ج٣٠ص٦٦) _
(٨) تهذيب التهذيب(ج١٠ص٤٩٠)
(٩) كشف البارى(٣ص٢٩١)_

ته اوئي چه د نوف بكالى دعوى ده چه په قصه د خضر عليه السلام موسى دبنى اسرائيلو نبى حضرت موسى عليه السلام نه دې، بلكه دا بل څوک موسى دې۔
دارو ايت مخكښې تير شوې دې۔([1]) په دې كښې دحضرت ابن عباس اودحضرت حربن قيس رضي الله عنهما په مينځ كښې مناظره مذكورده، هغه مناظره بله ده، اودهغې تعلق دحضرت خضر عليه السلام سره دې يعنى په هغې كښې دا اختلاف وو چه موسى عليه السلام چاته ورغلى ووهغه څوک وو؟ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائيل چه هغه خضروو او حر بن قيس څوک بل څوک يادولو، ليكن په يو روايت كښې هم نشته چه هغوى څوک يادولو۔
اوپه روايت باب كښې چه كومه مناظره ده دهغې تعلق ،،دحضرت موسى عليه السلام،، سره دې، دسعيد بن جبير رحمه الله اودنوف بكالى رحمه الله په مينځ كښې مناظره په دې خبرې وه چه كوم موسى خضر عليه السلام ته ورغلى وو هغه موسى بن عمران نبى دبنى اسرائيلووو او كه څوک بل څوک وو؟ نوسعيد بن جبير خو وائى چه هغه هم موسى بن عمران دبنى اسرائيلو نبى وو، او نوف بكالى وائي چه هغه بل موسى دې، يعنى بن ميشا بن يوسف بن يعقوب بن اسحاق بن ابراهيم عليهم السلام دې اودحضرت موسى عليه السلام نه مخكښى تير شوې دې او دې هم نبى مرسل وو، داهل تورات هم دا رائې ده۔([2])
حضرت سعيدبن جبير رحمه الله دحضرت عباس رضي الله عنهما نه تپوس اوكړونو هغه روته دنبى اكرم ﷺ حديث واورولو اودا ئې ورته اووئيل چه كوم موسى دحضرت خضر عليه السلام سره ملاوشوې وو هغه موسى دبنى اسرائيلووو

**قوله: فقال كذب عدوالله:** حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل چه دالله دښمن دروغ وائيلى دى۔
ابن التين وغيره تمام شراحو رائې داده چه حضرت ابن عباس چه خبره اوكړه نو ددې مقصد دانه دې چه نوف بكالى د اولياء الله نه خارج شواو په اعداء الله كښې داخل شوې دې۔ بلكه دعلماء حق عادت دې چه كله خلاف حق خبره واورى نودهغوى په طبيت كښې حركت راشي.نوپه داسې موقع باندې سخت كلمات ترې اووآئيلې شى،او ددې حقيقت مرادنه وى۔([3])
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه ممكن ده چه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ته دنوف دايمان دصحت باره كښې شک شوې وو، ځكه ئې داسې سخته خبره كړې وى۔([4])
ليكن دايو احتمال محض دې ددې هيڅ څه حقيقت نشته، په اصل كښې د حضرت ابن عباس اودحر بن قيس رضي الله عنهما په مينځ كښې چه كله مناظره شوې وه په هغه وخت كښې حضرت ابن

[1] اوګورئ صحيح البخارى (ج١ص١٧)، كتاب العلم.باب ماذكر فى ذهاب موسى عليه السلام فى البحر الى الخضر، رقم (٧٤). وباب الخروج فى طلب العلم. رقم (٧٨)۔
[2] اوګورئ عمدة القارى (ج٢ص١٩٣)۔
[3] اوګورئ فتح البارى (ج١ص٢١٩)، او عمدة القارى القارى (ج٢ص١٩٣)۔
[4] فتح البارى (ج١ص٢١٩)۔

عباس رضي الله عنهما ته دحضرت ابى رضي الله عنه دحديث علم نه وو دې وجې نه حضرت ابى راغلې او هغوى فيصله اوكړه نوچه كله دسعيدبن جبير او دنوف بكالى په مينځ كښې مناظره اوشوه نودغه وخت كښې حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ته حديث معلوم وو او دنوف بكالى كلام بالكل دحديث خلاف وو نوځكه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ته جوش راغلواو اوئى فرمائيل ,,كذب عدوالله،، والله اعلم

**قوله: حدثنا ابي بن كعب عن النبي صلى الله عليه وسلم: قام موسى النبي خطيبا في بني اسرائيل، فسئل: اي الناس اعلم؟ فقال: انا اعلم:** مونږ ته حضرت ابى بن كعب دنبى عليه السلام نه نقل كولو سره حديث واورولوچه حضرت موسى عليه السلام په بنى اسرائيلو كښې خطبې دپاره اوردېدلو،نودهغوى نه تپوس اوكړې شو چه په خلقو كښې دټولونه زيات عالم څوک دې؟ نواوفرمائيل ئې چه زۀ دټولونه لوې عالم يم

**ددواو روايتونو په مينځ كښې تعارض اودهغې ازاله :** داروايت چه مخكښې تيرشوېه دې كښې دى ,, هل تعلم احدا اعلم منك ؟،، نو حضرت موسى عليه السلام اوفرمائيل چه ,, لا،، اوپه روايت باب كښې دى ,,اى الناس اعلم ؟فقال انا اعلم،،۔

حاصل دا چه په روايت باب كښې حضرت موسى عليه السلام دخپل ځان دپاره اعلميت ثابت كړو او ددويم روايت حاصل دا دې چه هغه دخپل ځان نه بل دلوې اعلم نفى اوكړه. ظاهره ده چه داعلميت نه دنفى كولوسره خوداعلم اثبات نه راځى ۔ نوددې حل دادې چه په اصل كښې سائل اول دا تپوس اوكړو,, اى الناس اعلم،، نو حضرت موسى عليه السلام دهغې جواب كښې اوفرمائيل ,,انا اعلم،، نو هغه بيا تپوس اوكړو,, هل تعلم احدا اعلم منك ؟،، نوحضرت موسى عليه السلام اوفرمائيل ,, لا،،۔

**ايا د حضرت موسى عليه السلام د ,, اعلم نفى كول درست دى ؟:** دلته اشكال كيږى چه د حضرت موسى عليه السلام د ,,لا،، وائيلو سره د ,, اعلم،، نفى څنګه اوشوه ؟ داخوخلاف واقع ده، ځكه چه الله تعالى فرمائى ,, بلى عبدنا خضر،، چه زمونږ بنده خضردستانه زيات اعلم دې ۔ خودا اشكال دلته ځكه نه كيږى چه حضرت موسى عليه السلام دخپل علم اوزعم په اعتبار سره نفى كړې وه، لهذا دهغوى د ,, انا اعلم،، وائيل خلاف واقع نه وو ځكه چه څنګه هغوى په خپل ګمان كښې ګڼړل هم هغسې خبر ئې وركړو، خپل ځان دپاره اعلميت هغوى د خپل ګمان په اعتبارسره ثابت كړې وو نه چه دنفس الامرپه اعتبارسره، لهذا دالله جل شانه قول ,, بلى عبدنا خضر،، بلكل ټيک دې،هغه دنفس الامر په اعتبارسره دې ۔ والله اعلم ـ

**فائده:** دلته يوه مسئله بله هم حل شوه،اوهغه دا چه دمعتزله په وړاندې كذب الخبر دې ته وائى چه كوم عمدا خلاف واقع بيان شى ـ

اواهل سنت فرمائى چه كذب هغه خبردې كوم چه خلاف واقع وى كه عمدا وى اوكه سهوا وى، هم دا وجه ده چه الله تعالى دهغه په ,,انااعلم،، وائيلوڕد كړل او اوفرمائيلو ,, بلى،،

عبدنا خضر،،_ دجواب حاصل دا دې چه حضرت موسى عليه السلام دخپل ځان پاره في الواقع اعلميت نوثابت کړې، بلکه دخپل ګمان اوظن په اعتبار سره کړې وو په دې باندې څه ګرفت نشته، اوس دګمان اوظن په اعتبارسره دهغوى خبره ټیک ده، چه دهغوى کوم ګمان وو نو دهغوى خبرهم دهغې مطابق وو۔ والله اعلم

**قوله:** فعتب الله عليه اذ لم يرد العلم اليه :بس الله تعالى په هغوى باندې عتاب اوفرمائيلو چه هغوى علم دالله تعالى طرف ته اونه سپارلو او دا ئې او نه وائيل چه ,,الله اعلم،، ,,عتاب،، وائي ناراض کيدوته، دادتغير نفساني اثردې او الله تعالى دتغيراتو نه پاک دې ددې وجې نه علماء ارشاد فرمائي چه ,,د عتب الله،، معنى ده ,, آخذه،، الله تعالى دهغوى مواخذه اوفرمائيله، حضرات انبياء كرام عليهم السلام دالله تعالى مقرب ترين بنده ګان دى، دهغوى نه په معمولي خبرو باندې هم مواخذه کيږى،الله تعالى ته داعنوان خوښ نه شو، بلکه دوى لره پکاروو چه دې علم ئې دالله تعالى طرف ته سپارلې وو او دا ئې وائيلې وو چه ,, الله اعلم،،_ (1)

ابن بطال رحمه الله فرمائي چه دالله تعالى عتاب حضرت موسى عليه السلام لره په دې وجه اوشو چه هغوى لره مطلق ددې جواب نو ورکول پکار_ (2)

ليکن ابن منير رحمه الله فرمائي چه ځما په نيز دا صحيح خبره نه ده چه هغوى لره جواب ورکول نه وو پکار،بلکه دالله تعالى دعلم طرف ته واپس کول متعين وو، که چرته موسى عليه السلام د,, انا،، وائيلوسره ,, والله اعلم،، هم وائيلې وې نوعتاب به نه وو شوې _ دعتاب وجه داده چه هغوى ,, انااعلم،، خو اوئيل ليکن دې سره ئې ,, الله اعلم،، اونه وئيل -(3) والله اعلم

**قوله:** فاوحى الله اليه ان عبدا من عبادي بمجمع البحرين هو اعلم منك :الله تعالى حضرت موسى عليه السلام ته وحى اوکړه چه دمجمع البحرين سره ځما په بندګانوکښې يو بنده دې، کوم چه ستا نه لوې عالم دې _ دمجمع البحرين نه مراد بحرفارس اوروم ملتقى دې، چرته چه دواړه يوځې کيږى_ (4)

بيادلته دحضرت خضر عليه السلام چه کوم اعلميت مذکوردې هغه مخصوص اعتبار سره دې، دحضرت خضر عليه السلام سره دموسى عليه السلام په نسبت د,, کونياتو،، علم زيات وو،اودحضرت موسى عليه السلام سره دحضرت خضر عليه السلام په نسبت د,,شرعياتو،،علم زيات وو، ليکن په يو جزئى حيثيت سره دحضرت خضر عليه السلام په حضرت موسى عليه السلام باندې يوقسم تفوق حاصل وو۔

---

(1) اوګورئ فتح البارى (ج١ ص٢١٩)، او عمدة القارى (ج٢ص١٩٣)_

(2) فتح البارى (ج١ص٢١٩)_

(3) المتوارى على تراجم ابواب البخارى (ص ٦٤)، او فتح البارى (ج١ص٢١٩) _

(4) اوګورئ الجامع لاحکام القران للقرطبى (ج١١ص٩)

**قوله: قال: یارب، وکیف به؟:** عرض ئ اوکړو چه ای پرورديګاره هغوی ته رسېدل به څنګه وی؟ کله چه حضرت موسی علیه السلام ته ده معلومه شوه چه یولوې عالم دې وخت کښې موجود دې نوحضرت موسی علیه السلام ته دهغه سره دملاقات اودهغه نه دعلم حاصلولوشوق پېدا شو. حضرت موسی علیه السلام دخپل ګمان په اعتبارسره ,, انا اعلم،، وانیلی وو. په غوراوتتبع سره ئ نه وانیلی، اوس چه کله الله تعالی دخپل یوبنده ذکر اوکړو نو هغه اوانیل چه ,, کیف به ؟،، ای ,, کیف اللقاء به ؟،، چه دهغی سره دملاوېدو به څه صورت وی ؟

**قوله: فقیل له :احمل حوتا في مکتل:** هغه ته اوانیلې شو چه په یوزمبیل (شکور) کښې یو محنې (کب) ځان سره واخله ـ

دکتاب التفسیر کښې په یوروایت کښې دې ,, خذنونا میتا حیث ینفخ فیه الروح ،، ـ[1] چه یو مړ کب ځان سره واخله نو چه چرته په دې کښې روح واچولې شی هلته به خضر علیه السلام ملاوشی ـ

**قوله: فاذا فقدته فهوثم:** چه چرته مو دې اورک کړو هم هلته به هغه موجود وی ـ

دکب دورکېدو مطلب دادې چه کله په هغې کښې روح واچولې شی اوهغه په اوبو کښې ډوب شی نوتاته به هغه هلته ملاوشی ـ

**قوله: فانطلق وانطلق بفتاه یوشع بن نون وحملا حوتا في مکتل، حتی کانا عند الصخرة وضعا روسهما وناما:** حضرت موسی علیه السلام خپل خادم یوشع بن نون دځان سره کړو اوروان شول، دې دواړو یو کب په یو پچئ کښې واخستلو، کله چه هغوی یوې ګټې ته اورسېدل نودواړو خپل سرونه کېخودل او اوده شول ـ

**قوله: فانسل الحوت من المکتل:** کب دپچئ نه غلې شانته روان شو ـ

امام بخاری رحمه الله په کتاب التفسیر کښې دسفیان بن عیینه رحمه الله په طریق سره هم داحدیث نقل کړدې په دې کښې دی :

,, قال سفیان : وفي حدیث غیرعمرو، قال : وفي اصل الصخرة عین، یقال لها : الحیاة، لا یصیب من مائها شيء الاحیي، فاصاب الحوت من ماء تلک العین، قال : فتحرك، وانسل من المکتل، فدخل البحر،، ـ[2]

,, سفیان رحمه الله فرمائي چه دعمروبن دینارنه علاوه دنورو حضراتوپه روایت کښې دی چه ددهغې ګټې (چټان) دلاندې یوه چشمه وه، چه هغې به ,,حیات،، یعنی اب حیات، وئیلې کېدو هغه به چه کوم څیزته لګېدل دې نوهغه به جوندې کېدو، نوبس هغه کب ته هم دغه اوبهٔ اولګیدې. اوپه کب کښې حرکت پیدا شواوهغه دپچئ نه وتلوسره سمندرته داخل شو،، ـ

**قوله: فاتخذ سبیله في البحرسربا وکان لموسی وفتاه عجبا:** نوکب په سمندرکښې

---

[1] صحیح البخاری (ج۲ ص۶۸۹) کتاب التفسیر، باب :(فلما بلغا مجمع البحرین نسیا حوتهما)، رقم (۴۷۲۶)

[2] صحیح البخاری (ج۲ص۶۹۰) کتاب التفسیر، باب (فلما جاوزاقال لفتاه : اتنا غداءنا....)، رقم (۴۷۲۷)

سرنګ جوړ ولو سره خپله لاره اختیار کړه دحضرت موسی علیه السلام دخادم دپاره دتعجب سبب جوړ شو۔

دکتاب التفسیر په روایت کښې دی: ,, وامسك الله عن الحوت جرية الماء، فصارعليه مثل الطاق،،۔(۱) الله تعالی دکب نه دابو بهېدل ایسار کړل نو دده دپاره دایوه طاقچه جوړه شوه،،۔

حضرت یوشع علیه السلام چې کله دا کیفیت اوکتلو نوده ته ډیر تعجب اوشو، او روستو چې حضرت موسی علیه السلام هم ددې کیفیت علم اوشو او په واپس راتو باندې ئي دغه ځې اوکتلو هغه ته هم تعجب اوشو۔

**قوله: فانطلقا بقية ليلتهما ويومهما:** هغوی دواړه باقی شپه او ورځ مزل اوکړو۔

بعضې حضرات وائی چې داپه اصل کښې ,, بقية يومهما وليلتهما،، دې دلته قلب واقع شوې دې، ځکه چې دکتاب التفسیر په روایت کښې په صحیح توګه باندې راغلی دی (۲) اوددې قرینه داده چې دې نه پس ,, فلما اصبح ....،، راغلې دې او ,, اصبح،، دشپې نه پس وی دورځې نه پس نه وی۔(۳)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې کیدشی د ,, فلما اصبح،، معنی داوی چې ,, ددغې شپې صباشو کوم چې ددغې ورځې نه پس راځی دکومې ورځې چې دلته تذکره شوې ده،،۔ مطلب داشو چې دشپې باقی حصه ئې هم تلل اومزل ئې کولو تردې چې ورځ شوه او ټوله ورځ ئې هم مزل اوکړو بیا شپه راغله اودغه شپه ئې هم مزل اوکړو او بیا سحر شو۔(۴)

لیکن اقرب اونزدې خبره هم هغه ده کومه چې وړاندې بیان شوه، ځکه چې ددغه روایت په بل طریق کښې د ,, يوم،، تقدیم په ,, ليلة،، باندې راغلې دې۔

**قوله: فلما اصبح قال موسى لفتاه: آتنا غداءنا لقد لقينا من سفرنا هذا نصبا:**

کله چې سحر شو نو موسی علیه السلام خپل خادم ته اوفرمائیل چې زمونږ خوراک راوړه مونږ ته ددې سفر نه ډیره ستړتوب اورسیدو۔

اوداهله چې کله دوی دصخرې نه واوړېدل نو موسی علیه السلام اوږې شو. ددې نه مخکې داولږې او د ستړیوالی هډو څه احساس نو وشوې۔

**قوله: ولم يجد موسى مسا من النصب حتى جاوز المكان الذي امربه:** حضرت موسی علیه السلام ته دستومانتیا هډو څه اثرهم محسوس شوې نو، تردې چې دهغه ځې نه هم واوړېدل کوم ځې ته چې درسیدلو حکم دالله تعالی دطرف نه شوې وو۔

---

(۱) صحیح البخاری (ج۲ص۶۸۷) کتاب التفسیر، باب: (واذ قال موسی لفتاه: لاابرح حتی ابلغ مجمع البحرین اوامضی حقبا....) رقم (۴۷۲۵)۔

(۲) هم برنئ حواله۔

(۳) فتح الباری (ج۱ص۲۲۰)۔

(۴) فتح الباری (ج۱ص۲۲۰)۔

داسې معلومیږی چې تردغه خې پورې دوی سره خدائی طاقت اوتائیدوو ،نوځکه دوی ستړې نه شواوددې نه پس چې کله دمنزل نه اوړېدل نوځکه ورته ستومانتیا محسوسه شوه،دې دپاره چې دوی ډیرمځکې لاړنه شی ۔

**قوله**: فقال له فتاه: ارایت اذ اوینا الی الصخرة فانی نسیت الحوت،قال موسی :ذلك ماكنا نبغي :دوی ته خپل خادم عرض اوکړوچې جې ماخوتاسووائیل چې کله مونږ گټې ته اورسېدونوکب اوتختېدو خو مانه ددې ذکر هیرشولو،نو موسی علیه السلام اوفرمائیل چې هم ده خومونږتلاش کولو۔

**قوله**: فارتداعلی آثارهما قصصا: بس دی دواړه راواپس شول اود خپل قدمونوپه نشانونوباندې راتلل۔

**قوله**: فلما انتهیا الی الصخرة اذا رجل مسجی بثوب اوقال :تسجی بثوبه :چې کله هغوی دواړه گټې ته اورسیدل نوناساپه یوسړې دې چې، خان نه ئې کپړه تاواکړې وه یا کپړه ئې اغستې وه ۔

داحضرت خضر علیه السلام دې دده تفصیلی حالات اوده سره متعلقه مباحث مونږ روستوپه ,,باب ما ذکرفی ذهاب موسٰی......،، لاندې لیکلی دی ۔

علامه داودی رحمه الله دې روایت لره ,,وهم،، گرزولې دې، اوددې بنیاددا دې چې هغوی حضرت خضر علیه السلام دگټې سره نه بلکې، جزیرې سره موندلې وو، اودلته په دې روایت کښې مذکوردی چې کله گټې ته اورسیدل نوهغه سره ملاقات اوشو۔(۱)

خود ,,وهم،، گرځولوځه ضرورت نشته،دواړه روایتونه جمع کولې شوچې اول هغوی گټې ته اورسیدل بیادتتبع اوتلاش نه پس هغه په جزیره کښې ملاوشو۔(۲)

ځکه چې دمسلم شریف په روایت کښې دې ,, فاراه مكان الحوت، قال :ههنا وصف لی، فذهب یلتمس فاذاهو بالخضر مسجی ثوبا،،۔(۳)

فسلم موسی حضرت موسی علیه السلام سلام اوکړو۔

**قوله**: فقال الخضر: وانی بأرضك السلام؟:حضرت خضر علیه السلام اوفرمائیل چې ستاپه دې زمکه باندې سلام څنگه ؟او دکوم ځې نه ؟

,,انی،، ,,دکیف،، په معنی هم کېدیشی،څنگه چې دکتاب التفسیر په روایت کښې دی،، هل بارضی من سلام؟،،(۴) چې ایازمونږپه دې زمکه کښې هم سلام شته ؟

(۱) فتح الباری (ج۸ص۴۱۷) کتاب التفسیر،باب(فلمابلغامجمع بینهما.....)۔
(۲) حواله بالا۔
(۳) صحیح مسلم کتاب الفضائل،باب من فضائل الخضر، رقم(۶۱۶۵)۔
(۴) صحیح البخاری (ج۲ص۶۸۹)کتاب التفسیر،باب(فلمابلغامجمع بینهما....)،رقم (۴۷۲۶)۔

اوداد.. من این،، په معنی هم ممکن دي چې دلته سلام دکوم ځي نه راغللو؟ ګویا چې په دې مځ دزمکې یاخودبلاد کفردابادي نه یاداچې دغلته دسلام څه بله طریقه مروجه وه. نوهغوی تپوس اوکړوچې دلته سلام دکوم ځي نه راغللو؟[1]

دمسلم شریف په روایت کښې دي.. فکشف الثوب من وجهه قال: وعلیکم السلام،،[2]

ددې نه معلومیږي چې حضرت خضر علیه السلام دسلام جواب ورکړې وو. ددواړو روایتونو په مینځ کښې تطبیق داسې کیدشي چې حضرت خضر علیه السلام رومبې دسلام جواب ورکړو. بیا په تعجب سره تپوس اوکړو.. انی بارضك السلام؟،،[3]

**قوله: فقال: انا موسی:** موسی علیه السلام اوفرمائیل زهٔ موسی یم.

دکتاب التفسیر په روایت کښې دي.. من انت.. قال انا موسی،،[4] ګویاچې.. انا موسی،،دخضر علیه السلام دسوال په جواب کښې وائیلې شوی دی.

**قوله: فقال: موسی بنی اسرائیل؟قال: نعم:** هغوی تپوس اوکړو چې دبنی اسرائیلوموسی؟ نوارشادئ اوکړوچې او.

صحیح مسلم کښې دابواسحاق په روایت کښې دي چې کله حضرت موسی.. انا موسی،، اوفرمائیل نوحضرت خضر علیه السلام تپوس اوکړو.. ومن موسی؟ قال: موسی بنی اسرائیل،،[5]

البته دعبدبن حمیدروایت سره دلته یو اشکال کیږي،اوهغه داچې کله موسی علیه السلام.. السلام علیك یاخضر،، وائیلوسره سلام اوکړو اوهغوی جواب ورکړو.. وعلیك السلام یا موسی،، ګویاچې هغوی دشروع حضرت موسی علیه السلام پیژندلې وو.بیاحضرت موسی علیه السلام تپوس اوکړو.. ومایدریك انی موسی،،؟ تاته چاوائیل چې زهٔ موسی یم؟،، نو هغوی جواب ورکړو.. ادرانی بك الذی ادراك بی،، ماته ستا باره هغه چاخبر راکوچاچې تاته څما باره کښې خبردرکړې دي.[6]

دې نه معلومیږې چې.. من انت؟،،او.. موسی بنی اسرائیل؟،،،وائیلوسره هډوسوال نه دې شوې. حافظ رحمه الله فرمائی چې دصحیحنودروایت په مقابله کښې دعبدبن حمیدوالا روایت ثبوت مشکوک دي.[7] والله اعلم

---

[1] اوګورئ فتح الباری (ج۱ص۲۲۰)

[2] صحیح مسلم،کتاب الفضائل،باب من فضائل الخضر،رقم (۶۱۶۵)

[3] فتح الباری (ج۸ص۴۱۷) کتاب التفسیر،باب (فلمابلغا مجمع بینهما.....)

[4] صحیح البخاری (ج۲ص۶۸۹) کتاب التفسیر،باب :(فلما بلغامجمع بینهما.....)،رقم (۴۷۲۶)

[5] صحیح مسلم،کتاب الفضائل،باب من فضائل الخضر،رقم (۶۱۶۵)

[6] فتح الباری(ج۸ص۴۱۷) کتاب التفسیر،باب:(فلمابلغامجمع بینهما.....)

[7] هم برنئ حواله

**قوله: قال :هل اتبعك على ان تعلمني مما علمت رشدا:** موسى عليه السلام اوئيل چې ايا زۀ تاپسې روستونه خم چې د الله تعالى د طرف نه تاته چې کوم علم اوهدايت دين ښودلې شوي دې نو دهغې نه ماته ښودنه اوکړې ؟

,, رشد،، (بضم الراء وسكون الشين المعجمة) او,, رشد،، (بفتحتين) په دواړوطريقوسره لوستلې کيږى،[1] داکثروعلماؤ په نيز دا دواړه په يو معنى دى ـ[2]

بعضې حضرات وائى چې بفتحتين ,, دين،، په معنى کښې دى او ,, رشد،، (بضم فسكون) صلاح نظر يعنى هدايت ته وائيلې کښږى ـ[3]

بيا ,, رشدا،، ,,د تعلمني،، مفعول ثانى دې، دې وجې نه منصوب دې ـ,,دعلمت،، مفعول ثانى جوړول لرې خبره ده[4]

**قوله: قال : انك لن تستطيع معي صبرا :** اوفرمائيل چې اې موسى:ته به ماسره صبر اونه کړې شې ـ

**قوله: ياموسى : انى على علم من علم الله علمنيه لا تعلمه انت، وانت على علم علمكه لا اعلمه :** اې موسى زۀ دالله دعلومونه په يو مخصوص علم کښې يم کوم چې الله تعالى ماته ښودلې دى،ته هغه نه پيژنې او ته په يو مخصوص علم باندې يې کوم چې الله تاته ښودلى دى هغه زۀ نه پيژنم ـ دحضرت موسى عليه السلام سره علوم تشريعيه وو،اودحضرت خضر عليه السلام سره علوم تکوينيه ـاو دا چې فرمائيلي دى ,,لاتعلمه انت،،او,, لا اعلمه،،ددې مطلب دادې چې نه ته کلى طور باندې خمادعلوم نه واقف يې اونه زۀ ستا دعلومونه کلى طورباندې واقف يم ـ

ظاهره داده چې حضرت موسى ته دبعضې,, کونياتو،،علم وو،اوحضرت خضر عليه السلام ته دشريعت دومره علم به خامخه ووچې دهغې په رنړه باندې هغه خپله عقيده صحيح ساتلې وې اوعمل يې پې کولو ـ[5]

**يو اشکال او دهغې جواب** :دلته دا اشکال شوې دې چې الله تعالى په موسى عليه السلام باندې کوم نکيرفرمائيلې وو په هغې کښې حضرت خضر عليه السلام ,, اعلم،، گرزولې شوې وو، څنګه چې فرمائيلې شوى دى ,, ان عبدا من عبادى بمجمع البحرين هواعلم منك،، (كمافى حديث الباب) يعنى يو بنده په مجمع البحرين کښې اوسيږى هغه ستا نه زيات علم والادې ـ

---

[1] فتح البارى (ج۸ص۴۱۷و ۴۱۸) ـ
[2] حواله بالا ـ
[3] فتح البارى (ج۸ص ۴۱۸) ـ
[4] حواله بالا
[5] اوګورئ:فتح البارى (ج۸ ص ۴۱۸) ـ

اعلم داسم تفضیل صیغه ده او اسم تفضیل ددې خبرې متقاضی وی چې مفضل او مفضل علیه په نفس فعل کښې شریک وی، لهذا اس دامطلب رااوتلوچې حضرت موسی او حضرت خضرعلیهماالسلام دواړه په,, علم،، کښې مشترک دی او چې کله ددواړو په علم کښې دنوعیت تشریعي اوتکوینی په اعتبار سره اختلاف پیدا شونوبیااشتراک کوم ځې کښې راغللو؟ نولهذا,, اعلم،، ونیل څنګه صحیح شو؟:

ددې اشکال جواب هم هغه دې دکوم طرف ته چې اس اشاره اوشوه چې فی الجمله خودواړه دعقائدو اواعمالوعلومو کښې متحدوو،که حضرت موسی علیه السلام په یوعلم کښې بنه ماهروونوحضرت خضر علیه السلام په قدرضرورت دهغې نه واقف وو،دهغه رنګه که حضرت خضر علیه السلام ته دکونیاتوعلم زیات وو،خوځه نه څه دتکوینیاتوعلم حضرت موسی علیه السلام ته هم وو،ګویاچې په نفس علم شریعت اوعلم کونیات کښې فی الجمله دواړه شریک وو،ددې نه پس حضرت خضر علیه السلام ته په علم تکونیه کښې په حضرت موسی علیه السلام باندې تفوق حاصل وو،نو لهذاحضرت خضرعلیه السلام ته دحضرت موسی علیه السلام په مقابله کښې ,, اعلم، ،وائیلوکښې نه څه اشکال شته اونه په دواړوکښې څه تعارض ـ والله اعلم ـ

**قوله: قال :ستجدنی ان شاء الله صابرا ولا اعصی لك امرا:** حضرت موسی علیه السلام اووئیل چې ان شاء الله ته به ماله صابر اوموميې اوزهٔ به ستا دیوحکم نه به هم مخ نه اړوم ـ

**قوله: فانطلقا یمشیان علی ساحل البحر،لیس لهما سفینة، فمرت بهما سفینة، فکلموهم ان یحملوهما،فعرف الخضر فحملوهما بغیرنول :** بس هغوي دواړه ددریاب په غاړه روان شو،او دهغوی سره کشتي نه وه اچانکې یوه کشتي تیردله نوهغوی ورسره خبره اوکړه چې مونږ دځان سره سوارهٔ کړې، چې خضرعلیه السلام ئی اوپیژندلونو بغیر دڅه کرایه اومعاوضې نه ئی سوارهٔ کړل ـ

حضرت خضر علیه السلام خو اول معذرت اوکړو چې ته ځماسره نه شې تللې، ځکه چې ځمامعاملات دتکوینیاتوسره متعلق دی،اوهغه دظاهر شریعت په اعتبارهغه قابل اعتراض دی اوته به څه ظاهرې بدئې لره اوګورې اوچپ به پاتې نه شې ـ

لیکن حضرت موسی علیه السلام شوق دمجبورئ د لاسه دمکملې اتباع اویه یو موقعه باندې هم دتنقید اواعترض نه دځان ساتلو وعده اوکړه نوهغوی دځان سره دبوتللواجازت ورکړلو ـ

ددې نه پس دریاب په غاړه روان شول،دهغوی سره خپله څه کشتې نه وه چې په هغې کښې سوارهٔ شوې وې،په دې کښې یوکشتې راغلله، دکشتې والوسره دهغوی خبرې اوشوې نو هغوی حضرت خضر علیه السلام اوپېژندونو بغیردڅه معاوضې اوداجرت نه یئ هغوی کینول

**قوله: فجاء عصفور فوقع علی حرف السفینة،فنقرنقرة او نقرتین فی البحر :** په دې کښې یوه چنچړه راغلله اودکشتې په غاړه کیناسته،اوپه دریاب کښې یئ یودوه ځله مخوکه ووهله ,,، عصفور،، وړې مرغې ته وائیلې کیږی ـ

ددې نه بعضود دې مراد ,,صرد.،نومې مرغۍ وائيلې ده۔ (۱)چې په اردو کښې ورته ,,لټوره،، وائيلې کښېږى ۔(۲)بعضې حضرات وائي چې دا,, خطاف،، يعنى بناپېرک وو۔(۳)والله اعلم

**قوله: فقال الخضر: ياموسى ،ما نقص علمي وعلمك من علم الله الا كنقرة هذا العصفور في البحر:** حضرت خضر عليه السلام اوفرمائيل اې موسى .خما اوستا علم دالله تعالى دعلم نه صرف دومره اخستې دې څومره چې دې چنچړې سمندر نه واخستلې ۔

دلته لفظ د,, نقص،، وارد شوېدې چې معنى يې دکميدوده،نولهذا اوس به يې مطلب داشى چې خما اوستاددواړوعلم دالله تعالى علم نه دومره کم کړلوڅومره چې دې چنچړې ده سمندر اوبو نه کمې کړې ۔خوښکاره چې دا خبره منلې شوې ده چې الله تعالى علم غيرمتناهى دې، دمتناهى ددې سره هيڅ نسبت نشته،نولهذاپه دې نقص څه سوال دې ؟ددې د جواب ورکولوسره شارحينوليکلى دى چې دلته ,,نقص،، په خپله ظاهرى معنى باندې نه دې،بلکه ددې معنى د,,اخذ،، ده نو لهذااوس به مطلب دا شى ,,ما اخذ علمي وعملك من علم الله الا كنقرة هذا العصفور من البحر،،۔ يعنى خما اوستا يعنى ددواړوعلم په يو خې سره دالله تعالى علم نه چې څومره علم اخستې دې نودهغې نسبت هم دومره دې څومره چې ددې چنچړې په مخوکه کښې دموجود اوبو نسبت چې سمندرسره دې ۔ (۴)

بعضې علماء ليکى چې دلته ,,علم،،په معنى د,, معلوم،،سره دې او مطلب دا دې چې دالله جل شانه دمعلوماتواوزمونږ په معلوتوکښې بس دا نسبت دې کوم چې ديوې قطرې دسمندرسره دې ۔ (۵)

او بعضې حضراتوداوائيلې دى چې په دې کښې ,, الا،،د،، ولا،،په معنى دې گويا اوس په تقدير داسې وى ,, مانقص علمي وعلمك من علم الله ولا كنقرة هذا العصفور،، ۔ خما اوستا علم دالله تعالى دعلم نه هيڅ هم کم نه کړل، تردې چې ددې چنچړې دمخوکې داوبوپه مقدارهم کم نه کړو(۶)

امام اسماعيلى رحمة الله فرمائى چې داطرزتعبير مبالغة دنفى مطلق دپاره دې،يعنى چنچړې يا يومارغه دسمندرنه ديو څيز هم کمې اونه کړو،دهغه شان خما اوستاعلم دالله تعالى دعلم نه هم هيڅ کمې اونه کړو،اوهم داسې ده څنګه چې يو شاعر وئيلې دى:

---

(۱) فتح البارى (ج۱ص۲۲۰)۔

(۲) اوګورئ مصباح اللغات (ص۴۶۶) ۔

(۳) فتح البارى (ج۱ص۲۲۰)۔

(۴) فتح البارى (ج۱ص۲۲۰) ۔

(۵) هم برنئ حواله ۔

(۶) هم برنئ حواله

ولاعيب فيهم ان سيوفهم بهن فلول من قراع الكتائب

يعني په هغوی کښې هيڅ عيب نشته سوا ددې نه چې دهغوی په تورو کښې ددښمن لښکر دمقابلې دوجې نه غاښونه پيدا شوې دې۔
په دې شعرکښې دا وائيل مقصود دی چې په دغه ممدوحينو کښې هيڅ عيب نشته، دغه شان دلته هم دالله جل شانه په علم کښې دهيڅ قسمه نقص نه موجود بدوبيانول مقصودی [1]
په کتاب التفسير کښې دامضمون ډيرپه واضحه توګه باندې راغلې دې، څنګه چې فرمائيلې دې ,, والله، ماعلمي وماعلمك في جنب علم الله، الاكما اخذ هذا الطائر بمنقاره من البحر. .۔ [2] قسم په خدائ پاک چې ستااوځماعلم دالله تعالی علم په بس هم داسې دې لکه څنګه چې دهغې چنچړې دسمندرنه دخپلې مخوکښې په ذريعې اوبۀ واخستې. .۔

**قوله:** فعمد الخضر الى لوح من الواح السفينة فنزعه :حضرت خضر عليه السلام دکشتې دتختوطرف ته لاړوپه هغې کښې يوه تخته راوسته۔

**قوله:** فقال موسى قوم حملونا بغيرنول عمدت الى سفينتهم فخرقتها لتغرق اهلها :حضرت موسى اوفرمائيل دې خلقو مونږ بغيردځه اجرت نه کينولواوتاداسې کاراوکړوچې ددی کشتی نه دې تخته راوستله چې دا کشتی والاغرق کړې؛
حضرت موسى عليه السلام په موقعه باندې سخت الفاظ هم اوئيل.دربيعه بن انس په روايت کښې دی: ان موسى لما راى ذلك امتلا غضبا وشد ثيابه، وقال: اردت اهلاكهم، ستعلم انك اول هالك،،۔ [3]
يعني حضرت موسى عليه السلام دغصې نه ډک شواوخپل لستوڼې ئ ر اونغستل او ويوائيل ئ چې ته خلقو لره هلاکول غواړې، تاته به زرمعلومه شي دټولونه ړومبې به هم ته هلاکيږې . .۔

**قوله:** قال :الم اقل لك انك لن تستطيع معي صبرا؟ :حضرت خضر عليه السلام اوفرمائيل چې تاته مانووائيلې چې ته ځماسره صبرنه شي کولې ؟ حضرت موسى عليه السلام تاپه دې موقع باندې تنبيه اوشوه چې مادوعدې خلاف ورزی اوکړه نوهغوی فورا معذرت اوکړو۔

**قوله:** قال :لاتؤاخذني بما نسيت : عرض ئ اوکړوچې ځماپه هيره باندې مؤخذه مه فرمائي۔

**قوله:** فكانت الاولى من موسى نسيانا: په اول ځل دموسى عليه السلام نه په هيره باندې اعتراض شوې وو۔دکتاب التفسيرپه روايت کښې دی
,,كانت الاولى نسيانا، والوسطى شرطا ،والثالثة عمدا،،۔ [4]

---

[1] فتح الباري (ج۱ص ۲۲۰) ۔
[2] صحيح البخاري (ج۲ص ۶۸۹) كتاب التفسير.باب : (فلما بلغامجمع بينهما......).رقم (۴۷۲۶)۔
[3] فتح الباري (ج۸ص ٤١٩)، كتاب التفسير.باب :(فلمابلغ مجمع بينهما........) ۔
[4] صحيح البخاري (ج۲ص۶۸۹) كتاب التفسير.باب (فلما بلغامجمع بينهما......). رقم (۴۷۲۶)۔

په اول خل ئ اعتراض په هيره سره کړې وو، په دوہم خل ېئ شرط لګلو سره اوئيل ان سالتك عن شيء بعدها فلا تصحبني (١)

چې که چرته مې ددې نه پس هم اعتراض اوکړونو ته مې دخان سره مه ساته، او په درېم خل ئ په قصدا اوعمدا کړې وو۔

دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما يو مرفوع روايت دې ,, الاولى نسيان، والثانية عذر، والثالثة فراق،،_ (٢)

په اول خل ئي په هيره سره اعتراض کړې وو، په دوہم خل ئ عذر پيش کړوپه درېم خل ئ فراق اوجداي راغلله۔ ۔ البته حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه نه فراء رحمه الله نقل کړې دی ,, ولم ينس موسى ولكنه من معاريض الكلام،،_ (٣) يعنی ,, د موسى عليه الصلاة والسلام نه هيره خونه وه شوې، البته داداشارو کنايواودتوريئ دقبيلې نه وو،،_ حافظ رحمه الله فرمائي چې ددې روايت سند ضعيف دې، ددې وجې نه اصل اعتماد په اولنی رواياتو باندې دې، که چرته داخبره درست وه نو حضرت موسى عليه السلام په دوہم او درېم خل باندې ولې دمعاريض کلام اعتراض کولو، نه ولې کارنه اخستو ؟_ (٤)

قوله: فانطلقا، فاذا غلام يلعب مع الغلمان، فأخذ الخضر برأسه من أعلاه فاقتلع رأسه بيده: بيا دواړه روان شول، اچانک يوهلک ورته ملاوشو، چې دنوروهلکانوسره ئ لوبې کولې، حضرت خضر عليه السلام دهغه سردبرۀ نه اونيولو اوپه لاس سرئ دهغه سردبدن نه جدا کړو۔

عبدبن حميد دابن جريج روايت نقل کړې دې چې په هغې کښې دی:

,, فاضجعه ثم ذبحه بالسکين،،_ (٥) چې هغه ئ سملولو اوبيائ په چاړې سره ذبح کړو،،

دغه شان دطبری په يو روايت کښې دی ,, فاخذ صخرة فثلغ راسه _ (٦) يعنی هغوی يو کاڼړې اوچت کړواو دهغه سرئ پې اوچولو۔،،

په دې کښې دااخری روايت کمزورې دې (٧)، اګرچې په دې درې اړوکښې تطبيق کيدې شی چې اول ئ په کاڼړې ورله سر اووهلوبيا ئ په چاقويا په چړې سره دهغه مرئ کټ کړه، کومه څرمن وغيره به اينختې نو هغه ئ په لاس سره دبدن نه جدا کړه _ (٨) والله اعلم

(١) الکهف (٧٦) _
(٢) رواه ابن مردويه من طريق عکرمه عن ابن عباس رضی الله عنهما _ فتح البارى (ج ٨ص٤١٩) _
(٣) فتح البارى (ج٨ص٤١٩) _
(٤) هم برنئ حواله
(٥) فتح البارى (ج٨ص٤١٩)
(٦) هم برنئ حواله _
(٧) قاله الحافظ فی الفتح (ج ٨ص٤١٩) _
(٨) اوګورئ فتح البارى (ج٨ص٤١٩) _

د كتاب التفسير په روايت كښې دى .. فاخذ غلاما كافرا ظريفا ، ... [1]

دغه شان د صحيح مسلم وغيره په يو روايت كښې دى .. واما الغلام فطبع يوم طبع كافرا ..[2]

د دې مطلب دا نه دې چې دا هلک في الحال كافر شو ، بلكه مطلب دا دې كه چرته ژوندې پاتې شونو كافر به شى –

**يو اشكال او دهغې جواب** : دلته يو اشكال كيږى . چې په حديث كښې دى .. كل مولود يولد على الفطرة ....... .. [3] چې هر يو ماشوم په فطرت د دين اسلام باندې پيدا كيږى...... او د دې ماشوم په باره په حديث كښې تصريح راغلې ده چې دا ماشوم كافر مطبوع شوې وو ـ د دې جواب دا دې چې د ماشوم دغې نه مستثنى دې ، يا دا ونيلې شى چې د فطرت نه مراد استعداد د اسلام دې . . يعنى په هر يو كښې د اسلام د قبلولو صلاحيت اينبودې شوې دې ، خو دې به دغه صلاحيت د صحيح استعمالولو په ځې به غلط استعمال كړى او كافر به شى ـ والله اعلم

**قوله**: فقال موسى : اقتلت نفسا زكية بغير نفس ؟: حضرت موسى عليه السلام اوفرمائيل چې تا ديو بې ګناه وينه په ناحقه توې كړه؟:

**قوله**: قال : الم اقل لك انك لن تستطيع معى صبرا؟: ويوائيل چې تاته ما نو ونيلى چې ته څما سره صبر نه شې كولې ؟:

**قوله**: قال ابن عيينة : هذا اوكد: ابن عينه رحمه الله فرمائي چې دا اولنې كلام ډير سخت وو ـ د دې نه پس حضرت موسى اوشرمېدو او ونيلې ,ان سالتك عن شئ بعدها فلا تصحبنى ....[4] ,, اوس كه چرته د دې نه پس كه مې د څه باره كښې اعتراض اوكړو نو ته ما د ځان سره مه ساته ، . _

**قوله**: فانطلقا ، حتى اذا اتيا اهل قرية استطعما اهلها فابوا ان يضيفوهما : هغى دواړه مخكښې لاړل ترد دې چې هغوى ديو كلى والو ته اورسيدل نو دهغوي نه ئې روټې اوغستله نو هغې د دى د ملمستيا نه انكار اوكړو ـ

**قوله**: فوجدا فيها جدارا يريد ان ينقض فاقامه، قال الخضر بيده فاقامه: بيا دواړو اوكتل چې په دهغه كلى كښې يو ديوال وو چې په غورزېدو ، نو هغه ئې سيده كړو ، يعنى خضر عليه السلام په خپل لاس سره اشاره اوكړه او هغه ئې نيغ كړو ـ

فقال له موسى : لَوْشِئْتَ لَاتَّخَذْتَ عَلَيْهِ اَجْرًا ۝

---

[1] صحيح البارى (ج٢ص٦٨٩) كتاب التفسير . باب (فلما بلغامجمع بينهما.......) . رقم (٤٧٢٦) _

[2] صحيح مسلم .كتاب الفضائل الخضر . رقم (٦١٦٥) ، ومسنداحمد (ج٥ص٢١) رقم (٢١٤٣٥) .والدر المنثور (ج٣ص٢٣٧) _

[3] صحيح البخارى (ج١ص١٨٥) كتاب الجنائز . باب ماقيل فى اولاد المشركين .رقم (١٣٨٥) _

[4] كمافى رواية سعيدبن جبير عندابن مردويه . انظرفتح البارى (ج٨ص٤٢٠) _

حضرت موسی علیه السلام اوئیل که تا غستل نوپه دې کار به دې اجرت اخستې وو۔
په یو روایت کښې دی چې حضرت موسی علیه السلام اوفرمائیل

,, اناادخلنا هذه القرية، فلم يضيفونا، لو شئت لاتخذت عليه اجرا،،_(۱)

یعنی ,, مونږ دې کلي ته داخل شونو دې خلقونه زمونږ مېلمستيا اوکړه اونه ئې مونږ ته دخوراک دپاره څه راکړه،ددې په بدله کښې که تا غستل نوپه دې کاربه دې څه اجرت اغستې وو،،۔

**قوله: قال : هذا فراق بيني وبينك** :اوفرمائیل یې چې دا زمااو ستا په مینځ کښې جداۍ وخت دې ـ په قران کریم کښې (۲)نیز د دې حدیث په دوېم طرق کښې ددې نه پس تفصیل موجود دې چې حضرت خضر علیه السلام دجدا کیدونه مخکښې ددې واقعاتوپټ اسرار بیان کړل (۳)

**قوله: قال النبي صلى الله عليه وسلم :يرحم الله موسى ،لوددنا لو صبر حتى يقص علينا من امرهما** :نبي علیه السلام ارشاد اوفرمائیل الله تعالی دې په حضرت موسی علیه السلام باندې رحم اوکړی، مونږ خواهش وو چې هغه صبر کړې وو نو دهغوی نور حالات به هم مونږ ته بیان شوې وو۔

**قوله: قال محمد بن يوسف : ثنا به علي بن خشرم،قال : ثنا سفيان بن عيينه بطوله** :محمدبن یوسف فربری وائی چې علی بن خشرم مونږ تادا حدیث واورولو. هغوئ اوئیل چې مونږته سفیان بن عیینه داپوره حدیث بیان کړو۔
داعبارت په بعضې نسخو کښې شته اوپه اکثروکښې نشته،محمدبن یوسف فربری رحمه الله کوم چې دامام بخاری رحمة الله شاګرددې، هغه دخپل علواسناد بیان کول غواړی چې داروایت امام بخاری عبدالله بن محمد مسندی عن ابن عیینه نقل کوی، او ماتا داروایت دعلی بن خشرم عن ابن عیینه په طریق باندې حاصل دې،په دې شان ګویافربری دامام بخاری برابرشو۔ والله اعلم۔

**ایا حضرت خضر علیه السلام دحضرت موسی علیه السلام نه افضل وو ؟** :دبعضې جاهلانو ویناده چې د حضرت موسی علیه السلام په مقابله کښې حضرت خضر علیه السلام افضل وو اودا قصه ددې دلیل او ګواهي ده ـ لیکن ددې خبرې دحقیقت سره دلرې نه هم تعلق نشته، حضرت موسی علیه السلام چې الله تعالی دکوم رسالت،او کلام اوپه تورات سره خاص کړې دې، بیا دهغوی په شریعت کښې ټول انبیاء دبنی اسرائیلوشامل او داخل وو۔ دې دلا نلوطرف نظر کولوسره

---

۱) صحيح البخاری (ج۲ص ۶۹۰) كتاب التفسير،باب : (فلما جاوزا قال لفتاه ......) رقم (۴۷۲۷) ـ
۲) اوګورئ سورة الهكف ازايت ۷۹تا۸۲_
۳) اوګورئ صحيح البخاری (ج۲ص ۶۸۷_۶۹۰)، كتاب التفسير، رقم (۴۷۶۵_۴۷۶۷)، وصحيح مسلم،كتاب، كتاب الفضائل،باب من فضائل الخضر، رقم (۶۱۶۳_۶۱۶۸)

يوعقل مندسړي هم داخبره نشي كولې، دالله تعالى ارشاددې «يموسى انى اصطفيتك على الناس برسلتى وبكلامى»_(١)
اوكه حضرت خضر عليه السلام نبى وو نو په دې خبره دټولو اتفاق دې چې رسول نه وو اوداخبره معلومه او مسلمه ده چې رسول افضل وي دهغه سړي په مقابله كښې چې هغه صرف نبى ـ
اوكه على سبيل التنزل دا اومنوچې حضرت خضر عليه السلام رسول وو، نو بيا هم دحضرت موسى عليه السلام رسالت لوئ اودهغوى امت ګڼراو افضل وو ـ
اوكه چرته حضرت خضر عليه السلام ولى وونو بيا خودحضرت موسى عليه السلام افضليت واضح او بين دې(٢)
**ايا احكام شريعت لره نظر انداز كولو ګنجائش شته؟**: دمذكوره قصې نه بعضې زنادقو دااستدلال كړې دې د عام احكام شريعت تعلق دعواماو غبى خلقوسره دې، اودخواص امت دپاره دنصوصواوظاهرشريعت ضرورت نشته، بلكه دهغوى دپاره داحكم دې چې كومې خبرې طرف دهغوى د زړۀ ميلان اوشي نوهم هغه دې كوي. ځكه چې ددى زړونه دخيرى او ګندګئ نه پاک دى، ددې وجې نه په دهغه زړونوباندې دعلوم الهيه اودحقائق ربانيه ورود كيږي، نوبه دې طريقه هغوى دكائناتو داسرار نه هم خبر وي او جزوي احكامونه هم پيژني، ددې وجې نه هغوى تا دشريعت كلى احكاماتو حاجت نه پاتې كيږي ځنګه چې دحضرت خضر عليه السلام واقعه ده چې هغوى تاكوم علوم حاصل وودهغې په بنيادباندې هغه داحكام شرعيه ظاهره نه مستغنى شوې وو، دوى دخپل تائيددپاره د مشهورحديث „ استفت قلبك واستفت نفسك ثلاث مرات ......وان افتاك الناس وافتوك،، (٣) نه هم تمسك كړې دې ـ
علامه قرطبى رحمه الله فرمائى چې دا نظريه محض كفراوزندقه دې، ځكه چې ددې په شاباندې يقينى دشريعت نه انكار مقصود دې،ځكه چې الله تعالى دطريقه اوسنت مقرركړې دې چې په احكام خداوندى باندې پوهيدل اوخبرتيا بغيردحضرات رسولانواو انبياء كرامودواسطې نه ممكن نه ده اوالله جل شانه ددې حضرات انبياؤاورسلانو داطاعت حكم كړې دې اوهم دې ته ئ دهدايت لاره وائيلې ده،په دې خبره باندې دسلف اجماع هم ده ـ
اوس كه يوسړې دادعوى كوي چې حضرات انبياءكرامو اورسولان عظاموچې د اوامرو اونواهى كومې طريقې راوړې دى نودهغې پرېښودوسره بلهـ يوه لاره اختياركړې شى چې ددې وجې نه دحضراتوانبياء كرامودلارې نه استغناء اوشى نو داسې سړې كافر دې ـ
علامه قرطبى رحمه الله فرمائى چې داسې قسم دعوى عين دعوى دنبوت ده، ګوياچې حضوراكرم خاتم النبيين صلى الله عليه وسلم نه پس دهغه سړې دخپل خان دپاره نبوت ثابتول غواړى، ځكه چې كوم سړې داوائى چې زۀ دخپل زړه نه فتوى اخلم اوهم داحكم خداوندى دې،نودۀ تانه دكتاب ضروت شته اونه دسنت حاجت. ګوياچې داسړې دحضواكرم صلى الله عليه وسلم پشان دعوى كوي „ ان روح القدس

---

(١) الاعراف ١٤٤ـ
(٢) اوګورئ فتح البارى (ج١ ص٢٢١) ـ
(٣) مسند احمد (ج٤ ص٢٢٨) احاديث وابصة بن معبد رضى الله عنه. رقم (١٨١٦٩) ـ

نفثلى روعى، ،[1] اوظاهره ده چې دازنديقت اوكفردي[2]

**دحضرت موسى او خضرعليما السلام دقصې نه مستنبط شو فوائد**: دحضرت موسى اود خضر عليهما الصلاة والسلام د دې قصې نه ډيرشې فائدې مستنبط کړې شوى دى، څوفائدې دادى:

① ددې قصې نه معلومه شوه چې طالب علم لره دعالم ادب بهرحال ملحوظ ساتل پكاردى، اوپه دوى باندې اعتراضاتونه دى كول پكاركه چرته دهغوى په يوه خبره باندې پوهه ولره رانشى نوتاويل دې پكښې كوى۔

② يوه فائده دامعلومه شوه چې كله دوه مفسدات مخې ته راشى يوعظيم اوبل اخف، نودمفسده عظيمه دفعه كولودپاره دخفيف مفسده ارتكاب كېدې شى۔

③ ددې قصې نه دشريعت داعظيم اصل هم مخې ته راغللوچې كوم شې په شريعت كښې راغلې وى ټولولره دزړه نه تسليمول پكاردى، اګركه دهغې بعضې حكمتونه زمونږپه پوهه كښې رانشى ـ مطلب دادې چې الله جل شانه مونږته كوم شرائع اواحكام راكړى دى هغه په هرحال كښې حجت او واجب التسليم دى، اوهغه په عقولوباندې حجت دى، عقول په هغې بآندې حجت نه دى چې كه چرته دهغې حكمتونه په ذهن كښې رانشى نو هغه شرائع او احكام به پرېخودلې شى ـ [3]

# ۴۵ـ باب: مَنْ سَأَلَ وَهُوَ قَائِمٌ عَالِمًا جَالِسًا

,,وهوقائم،، دمن سال نه حال دې او,, عالما جالسا،، دسال مفعول به دې ـ [4]

**دباب سابق سره مناسبت**: په تيرشوى باب كښې دحضرت موسى عليه لسلام دحضرت خضر عليه السلام نه سوال كول اوعلم زدهٔ مذكوروو، اوپه دې باب كښې دناست عالم نه دولاړ طالب علم علمى سوال كول مذكوردى، په دې شان دواړوبابونوكښې مناسبت ظاهره دې ـ [5]

**دترجمة الباب مقصد**: ابن المنيررحمة الله اودهغه په اتباع كښې حافظ ابن حجراوعلامه عينى رحمة الله فرمائى چې دامام بخارى مقصوددې باب نه دادې چې كه چرته يو سړې په ولاړه ولاړه ديوعالم نه دكومې مسئلې تپوس كوى نو دادهغه حديث په وعيدكښې نه دې داخل په كوم كښې چې حضوراكرم ﷺ فرمائيلې دى: **من احب ان يمثل له الرجال قياما فليتبوا مقعده من**

---

[1] حلية الاولياء لابى نعيم (ج۱ص۲۸)، ترجمة احمدبن ابى الحوارى، وانظرشعب الايمان للبيهقى (ج۲ص۶۷) رقم (۱۱۸۵)، و(ج۷ص۲۹۹)، رقم (۱۰۳۷۶)، ومشكاة المصابيح (ج۳ص۱۴۵۸)، كتاب الرقاق، باب التوكل والصبر، الفصل الثانى، رقم (۵۳۰۰) ـ

[2] اوګورئ فتح البارى (ج۱ص۲۲۱و۲۲۲) ـ

[3] دفوائد مذكوره اودنوروفائدودپاره اوګورئ عمدة القارى (ج۲ص ۱۹۷) ـ

[4] عمدة القارى (ج۲ص۱۹۶) ـ

[5] هم پورتنئ حواله

النار،،۔(۱) یعنی ,, کوم سړي چي دخوښوی چي خلق دي دهغه دپاره اودریږی نوهغه خپله ټکانه خانله په جهنم کښي جوړه کړی،،۔ګویاچي امام بخاری رحمه الله دافرمائیل غواړي چي که چرته څوک ناست وی اودهغه نه یوولاړسړي تپوس اوکړي اوهغه دعجب نه هم مامون وی نو په داسي صورت کښي هیڅ حرج نشته ۔(۲)

حضرت شیخ الهند رحمه الله فرمائی چي په مخکښي باب تیرشو,, باب من برك على ركبتيه عند الامام اوالمحدث،،ددي نه معلومه شوه چي دمحدث په وړاندي په تواضع ادب اواطمینان سره ناسته مناسب ده، اوس داوائیل غواړی چي عند الحاجة په ولاړه باندي هم سوال کولي شي،جلوس اوبروک ضروری نه دی ۔(۳)

دلته قابل غور خبره داده چي په ترجمه کښي دوه څیزونه یوجلوس دعالم اوبل قیام دسائل ـحافظ وغیره دغرض بیانولوکښي په جلوس عالم باندي نظرکړي دي ۔ اوشیخ الهند رحمه الله په غرض بیانولوسره په قیام سائل باندي نظرکړي دي ۔

حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی چونکه په دي حالت سوال کول سوء ادب ګڼړلي کیږی،نوددي وهم دفع کولودپاره امام بخاری رحمه الله ترجمة الباب قائم کړي دي،څکه چي قاعده ده ,, الضرورات تبيح المحظورات،،۔(۴)

داهم عین ممکنه ده چي حضرت امام بخاری رحمه الله ددي ترجمة الباب نه په دي خبره باندي تنبیه کړی وی چي که چرته دضرورت نه طالب علم ولاړ وی اود عالم نه علم حاصل کړی اوعالم ناست وی نودامباح اوجائزدی، بعضي سلفوبه په ولاړه باندي علم حاصلول ناخوښه ګڼړل، په هغوی باندي ردکړي دي، لکه څنګه چي امام مالک رحمه الله نه چاتپوس اوکړو ,, لم لم تكتب عن عمرو بن دينار ؟،، چي تادعمروبن دینارنه حدیثونه ولي اونه لیکل ؟ نو امام مالک رحمه الله جواب ورکړو:,, اتيته والناس يكتبون عنه قياما، فأجللت حديث رسول الله صلى الله عليه وسلم ان اكتبه وانا قائم ـ(۵)

یعنی ,,چي څنګه زهٔ هغوی ته ورغلم نو اومي کتل چي خلق دهغه نه په ولاړه ولاړه حدیثونه لیکی، نوماته دا دحدیث پاک داحترام نه خلاف محسوس شوه چي په ولاړه ولاړه اولیکم،،۔ دغه شان امام مالک رحمه الله اوکتل چي ابوحازم رحمه الله په خپله حلقه حدیثونه بیانول،امام مالک

---

(۱) سنن ابی داود،کتاب الادب،باب الرجل يقوم للرجل يعظمه بذلك، رقم (۲۵۶۹)، هم دي سره جامع الترمذی، کتاب الادب، باب ماجاء فی کراهية قيام الرجل للرجل،(۲۸۶۵) ـ

(۲) المتواری (ص۶۴و۶۵)، وفتح الباری (ج۱ص۲۲۲)،وعمدة القاری (ج۲ص۱۹۶)ـ

(۳) الابواب والتراجم (ص۵۷) ـ

(۴) لامع الدراری (ج۲ص ۳۷۹) ـ

(۵) الجامع لاخلاق الراوی وآداب السامع (۲۲۵)،باب اصلاح المحدث هيئته ......الاحوال التي يكره التحديث فيها،رقم (۹۷۹) ـ

هغه خې سره تیرشو او اوني فرمائيل :

,, اني لم اجد موضعا اجلس فيه، فكرهت ان آخذ حديث رسول الله صلى الله عليه وسلم وانا قائم ،، ـ[1]

یعنی ,, ماته دناستې خې ملاؤنه شو، ددې وجې نه ماته داخبره ښه ښکاره نه شوه چې څه حضور اکرم ﷺ کوم حدیث په ولاړه ولاړه حاصل کړم ،، ـ

حضرت امام بخاری رحمه الله دااوښودل چې په داسې طریقه باندې علم حاصلولو اوپه مسئله معلومولو کښې څه باک نشته، که چرته ضروت وی، البته په امام مالک رحمه الله باندې دادب غلبه وه، نوددې وجې نه هغوی په دهغه حالت کښې دهغوی نه اخذحدیث خوښ نه کړۀ ـ

دهغه شان داهم ممکن ده چې امام بخاری رحمه الله د ,, من سال....... ، لفظ راوړلوسره دې خبرې طرف ته اشاره کړې وی چې په ولاړه ولاړه باندې سوال کولوکښې څه بدئ نشته. البته مستقل توګه باندې په ولاړه باندې علم حاصلول مناست نه دی ـ دحدیث نه په ولاړه ولاړه باندې دعالم نه سوال کولواجازت معلومیږی،لیکن په مستقل توګه باندې دولاړې صورت کښې علم حاصلولواجازت نه معلومیږی ـ

لهذا ممکن ده چې امام بخاری رحمه الله په امام مالک رحمه الله باندې رد نه ئ کړې،بلکه دا ئ ښودلی وی چې که چرته ضرورت وی اوڅوک په ولاړه باندې سوال کوی اوعالم ناست وی نوپه دې څه مضائقه (بدئ) نشته،بلکه جائزدی ـ

اودامام مالک رحمه الله چې کوم کراهت منقول دې نودمستقل حدیثونودلیکلوپه باره کې دې چې استاذ ناسته باندې بیان کوی اوتول خلق په ولاړه ولاړه باندې حدیثونه لیکی ـ والله أعلم

[۱۲۳] حَدَّثَنَا عُثْمَانُ قَالَ أَخْبَرَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا الْقِتَالُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَإِنَّ أَحَدَنَا يُقَاتِلُ غَضَبًا، وَيُقَاتِلُ حَمِيَّةً . فَرَفَعَ إِلَيْهِ رَأْسَهُ - قَالَ وَمَا رَفَعَ إِلَيْهِ رَأْسَهُ إِلاَّ أَنَّهُ كَانَ قَائِمًا - فَقَالَ «مَنْ قَاتَلَ لِتَكُونَ كَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا فَهُوَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ» [۲۶۵۵، ۲۹۵۸، ۷۰۲۰]

## رجال الحدیث

① عثمان: دامشهورمحدث عثمان بن محمدبن ابی شیبه رحمه الله دې، ددۀ احوال په کتاب العلم ,, باب من جعل لاهل العلم ایاما معلومة ،، لاندې تیر شوی دی ـ [2]

② جریر : دا جریر بن عبدالحمید قرط ضبی رازی رحمه الله دې،ددۀ حالات هم په کتاب العلم ,, باب من جعل لاهل العلم ایاما معلومة ،، لاندې تیر شوی دی [3]

[1] هم برنئ حواله،رقم (۹۷۸) ـ
[2] کشف الباری (ج۳ص۲۲۹) ـ
[3] کشف الباری (ج۳ص۲۳۰) ـ

④**منصور**: دامشهور محدث ابو عتاب منصوربن المعتمر السلمی الکوفی رحمه الله دي د دوي حالات هم په کتاب العلم، ،باب من جعل لاهل العلم ایاما معلومة، ،دلاندې تیرشوی دی (۱)

④**ابو وائل**: دابووائل شقیق بن مسلم اسدی کوفی رحمه الله دي ددوي حالات په کتاب العلم، ،باب خوف المومن من ان یحبط عمله وهو لا یشعر، ،دلاندې تیرشوي دي (۲)

⑤**حضرت ابو موسیٰ اشعری (رض)**: دحضرت ابوموسیٰ اشعری رضی الله عنه حالات په کتاب الایمان، ،باب ای الاسلام افضل، ،دلاندې تیرشوي دي (۳)

**قوله: قال: جاء رجل الی النبی ﷺ**: یو سړی نبی کریم ﷺ ته حاضر شو.

**رجل مبهم، نه څوک مراددي؟**: دبخاري شریف په یو روایت کښې دي: قال اعرابی للنبی ﷺ (۴) دا اعرابی یا، ،رجل مبهم، ،څوک دې؟ دطبرانی په یو روایت کښې دي، ،عن ابی موسیٰ انه قال: یارسول الله.......(۵) ددې نه معلومیږي چه سائل حضرت ابوموسیٰ اشعري رضی الله عنه دې، لیکن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه داروایت، ،وهم، ،دې ځکه اګرچه حضرت ابو موسیٰ اشعری خوخپل نوم مبهم ساتلو سره هم روایت کولي شي، خو داخبره ډیره بعیده ده چه هغوي خپل ځان ته، ،اعرابی، ،ووئیلي وي. (۶) همدغه شان دحضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه نه هم ددې قسم روایت منقول دې، ،انه قال: یارسول الله، کل بنی سلمة یقاتل، فمنهم من یقاتل ریاءً.......(۷) ددېنه معلومیږي چه سائل حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه دې، لیکن د حضرت ابوموسیٰ اشعري رضی الله عنه دوي لره، ،اعرابی، ، ګرځول ممکن نه دي، ددې وجه نه یاخوبه داسې وئیلې شي چه دا حدیث ضعیف دې اوکه چرې ثابت وي نو دابه په تعدد واقعه باندې محمولولې شي. (۸) البته حافظ بن حجر رحمه الله فرمائي چه دلته کښې د، ،رجل مبهم، ،یاد، ،اعرابی، ،نه حضرت لاحق بن ضمیره رضی الله عنه مراد کیدیشي، چه دهغوي روایت ابوموسیٰ المدیني رحمه الله په خپل کتاب الصحابه کښې نقل کړي دي، ،وفدت علی النبی ﷺ، فسالته عن الرجل یلتمس الاجر والذکر. فقال: لا شیء له. .(۹) خوددې حدیث سندهم ضعیفه دي (۱۰) والله اعلم

---

(۱) کشف الباری (ج ۲ص۲۳۲)_

(۲) کشف الباری (ج ۲ص۵۵۹)_

(۳) کشف الباری ج۲ص ۶۹۰)_

(۴) صحیح البخاری ج۱ص ٤٤٠ کتاب فرض الخمس، باب من قاتل للمغنم هل ینقص من اجره؟رقم ۳۱۲۶)

(۵) فتح الباری ج۱ص۲۸ کتاب الجهاد، باب من قاتل لتکون کلمة الله هی العلیا)_

(۶) فتح الباری ج۶ص۲۸)_

(۷) نقله الحافظ عن، ،فوائد ابی بکربن ابی الحدید، ،انظر فتح الباری ج ۶ص۲۸)_

(۸) حواله بالا)_

(۹) حواله بالا)_

(۱۰) حواله بالا)_

**قوله: فقال: يارسول الله، ما القتال في سبيل الله؟ فان احدنا يقاتل غضباً، ويقاتل حمية:** دالله په لار کښې جهنګيدل څنګه جهنګيدل دي، ؟ په مونږه کښې څوك دغصې دوجه نه جهنګ کوي اوڅوك دغيرت دوجه نه جهنګ کوي، دبخاري شريف په يوروايت کښې دي، ،الرجل يقاتل للمغنم، والرجل يقاتل للذكر، والرجل يقاتل ليرى مكانه ، ، يعني سړي دغنيمت دمال دپاره جهنګ کوي، دشهرت دپاره جهنګ کوي اودريا کارې دپاره جهنګ کوي، ، ددې دواړو روايتونو دملاولونه پس دمعلوميږي چه دقتال سببونه پنځه څيزونه دي، غضب، حميت، غنيمت، شهرت اورياکاري (۱) حافظ رحمه الله فرماني چه دغصې مآل جلب منفعت وي اودغيرت اوحميت مآل دفع مضرت وي (۲)

**قوله: فرفع اليه راسه:** نو هغوی خپل سر مبارك ددې کس طرفته اوچت کړو

**قوله: قال: وما رفع راسه الا انه كان قائما:** حضرت ابو موسى اشعري رضي الله عنه فرماني چه هغوی خپل سر مبارك څکه اوچت کړې ووچه هغه کس ولاړوو. ظاهره خو داده چه ددې جملې وايونکې حضرت ابوموسى اشعري دي، اګرچه داحتمال هم پکښې شته چه ددې وايونکي بل راوي وي (۳) هم ددې ځاي نه امام بخاري ترجمة الباب اخذ کړيدې، ،من سال وهو قائم عالما جالسا، ،

**قوله: فقال: من قاتل لتكون كلمة الله هي العليا فهو في سبيل الله:** تاسو اوفرمائيل چه کم کس ددې خبرې دوجه نه قتال کړې وي چه دالله پاك نوم اودهغه ددين نوم سربلنده شي نو هغه د، ،في سبيل الله، ، مصداق دې، يعني دهغه قتال کول به دالله په لار کښې شمارلې شي، دادحضوراکرم صلى الله عليه وسلم دجوامع الكلم څني ده، جمله خو مختصره ده خوهريو څيز ته شامل ده. تاسونه چه کله تپوس اوکړې شو چه انسان ډير کارونه مثال په طور باندې، غصه، غنيمت، شهرت، رياکارې په وجه باندې کوي نو په دې کښې به کم يو صورت دالله په لار کښې شمارلې شي ؟ نو تاسوداسې اونه وونيل چه په دې کښې يو صورت هم د، ، في سبيل الله مصداق نه دې، اونه موورته داسې اوونيل چه داټول صورتونه په، ، في سبيل الله، ، کښې داخل دي، ددې وجه داده چه په ديکښې په هر يو صورت کښې دمدحې اړخ هم شته اودذم اړخ هم شته دې نو که تاسو په اثبات کښې جواب ورکړې وونو دذم اړخ به هم په، ، في سبيل الله، ، کښې داخل شوې وو، اوکه په نفي کښې جواب ورکړې وونو دمدحې اړخ به ترينه خارج شوې وو، نو ددې وجه نه تاسو جدا جواب ورکړو چه که هر يو صورت وي خوچه دالله (جل جلاله) دنوم اودده ددين سربلندي په کښې مقصودوي اونيت هم خالص وي، (۴)

---

(۱) قاله الحافظ رحمه الله في الفتح ج۶ص۲۸)_
(۲) حواله بالا)_
(۳) حواله بالا)_
(۴) فتح الباري ج۱ص۳۲۲ و ج ۶ص ۲۹)_

حاصل داچه د قتال سبب خوکله قوت عقلیه وي اوکله قوت غضبیه وي اوکله قوت شهوانیه وي، نوپه دې کښې د ،،في سبیل الله،، د کیدلو صلاحیت صرف په قوت عقلیه کښې دې.[1]

**په قتال کښې د اعلاء کلمة الله نه علاوه څه بل غرض نیت**: د دې حدیث نه معلومه شوه چه دجهاد اودمجاهدینو چه څه فضائل راغلي دي نوهغه دهغه مجاهدینو دپاره دي چه څوك داعلاء کلمة الله دپاره جهاد کوي لهذا، ،من قاتل لتکون کلمة الله هي العلیا فهو في سبیل الله،، مطلب به داشي چه، ،لا یکون في سبیل الله الا من کان سبب قتاله طلب اعلاء کلمة الله فقط،، یعني دکوم کس سبب قتال چه اعلاء کلمة الله وي نو داهغه قتال به، ،في سبیل الله،، شمارلې شي اوکه په دې کښې ئې دمذکوره اسبابو نه دیوسبب اضافه اوکړله نودهغه قتال به، ،في سبیل الله،، نه نه شمارلې کیږي. لیکن په دې کښې دا احتمال هم شته دې چه ددې معنی داشي چه یوکس اراده خود اعلاء کلمة الله کړې ده خو ضمناً نه اصلاً اونه مقصوداً دیوبل سبب نیت هم اوکړي نوهغه هم په، ،في سبیل الله،، کښې داخل دې. امام طبری رحمه الله ددې تصریح کړې ده، دجمهورو اودمحققینو هم دارائې ده.[2] والله اعلم

**دابوالولید بن الشحنه حلبی حنفي یوه واقعه**: امیر تیمور لنګ داسلامی سلطنت دتوسیع اراده اوکړه اواسلامی ښارونه ئې یوبل پسې په خپله قبضه کښې اخستل شروع کړل، کله چه دشام ښارونوته اورسیدو اوهلته کښې ئې وینې توي کړې نو دهغه ځائ علماؤ اوخواص ئې رااوغستل، اودهغې نه ئې تپوس اوکړو چه دقتال، ،فی سبیل الله،، دې اوکه نه دې؟ اوددواړو طرفونو مقتولین به په جنت کښې وي اوکه په جهنم کښې؟ علامه ابن الشحنه حنفی رحمه الله دډیرذهانت مظاهره اوکړه څکه که چرته داسې ئې ووئیلې وو چه، ،قتلاکم في النار،، چې ستاسو مړی به په جهنم کښې وي نو تیمورلنګ به خفه شوي وو اودوی ته به دهغه غصه متوجه شوې وه اوکه داسې ئې ونیلی ووچه، ،قتلانا،، چه زمونږه مړی به په جهنم کښې وي نو بیا داخطره وه چه تیمور به ورته ووئیل چه تا ولې داخپل خلق نه منع کول؟ لیکن الله تعالی ددې په زړه کښې داخبره واچوله چه دامذکوره حدیث ئې ورته واورولو، یعنی چه کم کس داعلاء کلمة الله دپاره جهاد کوي نو هغه به حقیقی مجاهد اودجهاد دفضائلو مستحق وي. نو تیمور لنګ خاموشه شو.[3]

## ۴۶- بَابُ السُّؤَالِ وَالْفُتْيَا عِنْدَ رَمْيِ الْجِمَارِ.

**د سابق باب سره منا سبت**: په دې باب اوپه ماقبل باب کښې مناسبت بالکل واضح دې، څکه چه په تیرشوي باب کښې هم د، ،سوال عن العلم ذکرووا اوپه دې باب کښې هم دسوال ذکر دې.

**دترجمة الباب نه مقصد**: حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائیلې دي چه امام بخاری رحمه الله داوائې چه عالم مشغول وي نودمشغولې په حالت کښې هم دهغه نه سوال کول جائز دي، خوپه دې شرط چه

---

[1] ) فتح الباری ج ۶ص۲۹)_

[2] ) فتح الباری ج ۶ص۲۹)_

[3] ) اوګورئ الضوء الامع ج ۱۰ ص ٤)_

هغه په خپله مشغولتوب کښې بالکل ډوب نه وي (۱)حافظ ابن حجر رحمه الله صرف دسوال لفظ ته کتلي دي،حالانکه امام بخاري رحمه الله په ترجمه کښې دسوال دلفظ سره لفظ د ،،فتيا ،، هم ذکر کړېدي،،سوال،،دطالب علم کار دي او ،،فتيا،،دعالم کار دي، لهذا دترجمه غرض داسې بيانول پکار دي چه ددواړو لفظونو لحاظ پکښې اوساتلې شي،علامه ابن بطال رحمه الله اودوي په تابع داري کښې علامه کرماني اوعلامه عيني رحمهما الله فرمائي چه دامام بخاري رحمه الله مقصد دادې چه که عالم مشغول وي نودهغه نه په هم هغه حالت کښې سوال کول جائز دي اوهغه عالم دې حالت کښې جواب هم ورکولې شي خو په دې شرط باندې چه په دې مشغوليت کښې جواب ورکول جائزهم وي (۲)حضرت گنگوهي رحمه الله فرمائي چه ددې باب اودتيرشوي باب مقصد يودې خکه چه دمشغوليت په وخت کښې سوال کول بې ادبي شمارلې شي نود توهم دلرې کولو په غرض ئې داباب روړې دې چه دضرورت په وخت کښې داپه بې ادبې کښې نه دي داخل چه سړې سوال اوکړي (۳) حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائي چه دامام بخاري غرض ددې ترجمه نه دادې چه اګرچه وخت د مشغوليت هم وي خودضرورت په وخت کښې دداسې مشغلوتيا په حالت کښې هم په سوال او جواب کښې هيڅ حرج نشته، (۴)حاصل داشو چه درمي جمار په وخت کښې کوم چرې داعالم نه سوال اوشو نو سوال کول جائز دي،اودغه شان عالم جواب هم ورکولې شي په دې باندې دتنبيه ضرورت خکه راپيښ شو چه،،درمي جمار،، په وخت کښې په سوال جواب کولو کښې داخطره وي چه رش به جوړ شي،چه هغه درمي کونکو والا دپاره دتنګې سبب وي نو داهغې تقاضا داوه چه سوال اوجواب دې جائز نشي،خو امام بخاري رحمه الله اوفرمائيل چه جائز ده،يا خو ئې ددې دوجه نه جواز بيان کړو چه په لاره کښې دعلم تذکره کول دعلم بې قدري ده،نوامام بخاري اوفرمائيل چه هغه دعبادت محفل دې اوس که سوال تعلق هم ددغه عبادت وي کم چه هلته اداکولې شي نو بيا خو سوال کول مناسب دي خکه چه سوال اونکړې شي نو دعبادت دوخت ختميدلو خطره ده،والله اعلم

[۱۲۴] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي سَلَمَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عِيسَى بْنِ طَلْحَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- عِنْدَ الْجَمْرَةِ وَهُوَ يُسْأَلُ، فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ نَحَرْتُ قَبْلَ أَنْ أَرْمِيَ. قَالَ «ارْمِ وَلاَ حَرَجَ». قَالَ آخَرُ يَا رَسُولَ اللَّهِ حَلَقْتُ قَبْلَ أَنْ أَنْحَرَ. قَالَ «انْحَرْ وَلاَ حَرَجَ». فَمَا سُئِلَ عَنْ شَيْءٍ قُدِّمَ وَلاَ أُخِّرَ إِلاَّ قَالَ افْعَلْ وَلاَ حَرَجَ.

---

(۱) فتح الباري ج۱ص۲۲۳)_
(۲) شرح صحيح البخاري لابن بطال ج۱ص ۲۰۴،وشرح الکرماني ج۲ص۱۴۹،وعمدة القاري ج۲ص ۱۹۸)
(۳) اوګورئ لامع الدراري ج۲ص۳۷۹)_
(۴) الابواب والتراجم ص۵۷)_

# رجال الحدیث

① **ابو نعیم** : دا مشهور محدث ابونعیم الفضل بن دکین الملائی الکوفی الاحول رحمه الله ددوی حالات دکتاب الایمان، باب فضل من استبرأ لدینه، دلاندې تیرشوي دي [1]

② **عبدالعزیز بن ابی سلمه** : دامشهور فقیه اومحدث عبدالعزیز بن عبدالله بن ابی سلمه الماجشون المدنی التیمی رحمه الله دي اوددهٔ کنیت ابو عبدالله یا ابوالاصبغ دي، دادې دنیکه ابوسلمه نوم میمون یا دینار دي [2] دوی دامام زهری، محمد بن المنکدر، وهب بن کیسان، هلال بن أبی میمونه، اوډیر نورو یعقوب بن ابی سلمه، سهیل بن ابی صالح، عبدالرحمان بن القاسم بن محمد، عبدالله بن الفضل الهاشمی، عبدالله بن دینار، سعد بن ابراهیم، هشام بن عروة اودایوب سختیانی رحمه الله نه روایت کوي. اوددوي نه داخلق روایات کوي، ابراهیم بن طهمان، وهو من اقرانه، زهیر بن معاویه، لیث بن سعد، وکیع بن الجراح، عبدالرحمان بن مهدي، عبدالله بن وهب، ابو داود طیالسی، ابوسلمه التبوذکی، ابو نعیم الفضل بن دکین رحمه الله [3] دابن معین رحمه الله نه چه کله تپوس اوکړی شو چه : عبدالعزیز بن الماجشون هو مثل اللیث وابراهیم بن سعد؟ نو هغوی جواب ورکړو چه: لا، هو دونهما، انما کان رجلاً یقول بالقدر والکلام، ثم ترکه واقبل الی السنة ولم یکن من شانه الحدیث، فلما قدم بغداد کتبوا عنه، فکان بعد یقول: جعلني اهل بغداد محدثاً وکان صدوقاً ثقة. [4]

یعنی دعبدالعزیز بن ابی سلمه مقام د لیث بن سعد اودابراهیم بن سعد نه کم تر دي، ددوي نظریات رومبي دقدریو په شان و، بیا ئي هغه پریخودل اود سنت طرف ته راغلل، دحدیثو سره ئي ډیره مشغولتیه نه وه، البته چه بغداد ته لاړو نو دهغه ځائ خلقو ترینه په کثرت سره حدیثونه اولیکل، نودوي به بیا اویل چه دبغداد خلقو زمانه محدث جوړ کړو، او هغوی صدوق اوثقه وو، امام ابوزرعه، امام ابو حاتم، امام ابوداودا وامام نسائی رحمه الله فرمائي چه، ثقة، او ابن خراش وائي چه، صدوق [5]

ابن سعد رحمه الله فرمائي چه، وکان ثقة کثیر الحدیث، [6]

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائي، ثقة مشهور، وکان اماما معظما، [7]

امام عجلی رحمه الله فرمائي چه، ثقة، مامون رجل صالح، [8]

---

[1] کشف الباری ج۱ص۶۶۹)_

[2] تهذیب الکمال ج۱۸ص۱۵۲)_

[3] دشیوخ اوتلامذه د تفصیل دپاره اوګورې تهذیب الکمال ج۱۸ص ۱۵۳،۱۵۴) وسیرا علام النبلا ج۷ ص ۳۰۹،۳۱۰)_

[4] تهذیب الکمال (ج ۱۸ ص ۱۵۶)_

[5] حواله باله.

[6] الطبقات لابن سعد ج۷ص۳۲۳)_

[7] الکاشف ج ۱ ص ۶۶) رقم ۳۳۹۵)_

[8] تعلیقات تهذیب الکمال ج ۱۸ ص ۱۵۷)_

امام دار قطني رحمه الله فرمائي: ،، حافظ،، (۱) امام احمد بن صالح رحمه الله فرمائي: کان لزها، صاحب سنة، ثقة، (۲) امام ابوبکر البزار رحمه الله فرمائي: ثقة،، (۳) امام اشهب رحمه الله فرمائي: هو اعلم من مالك،، (۴) موسی بن هارون الحمال رحمه الله فرمائي: کان ثبتا متقنا،، (۵) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي: ثقة فقيه مصنف،، (۶) ابن حبان رحمه الله دوي په کتاب الثقات کښې ليکلي دي او فرمائي چه،، وکان فقيها، ورعا،، متابعا لمذ هب اهل الحرمين من اسلا فه، مفرعا على اصولهم، ذابا عنهم،، (۷)

بشر بن السري رحمه الله فرمائي چه: لم يسمع ابن ابي ذئب ولا الماجشون من الزهري،، (۸)
ليکن احمد بن سنان فرمائي چه د مطلق سماع نه انکار صحيح نه معلو ميږي، بلکه مطلب دادي چه عبدالعزيز د امام زهری نه عرضا حديثونه اخستی دی (۹) چنانچه امام بخاری رحمه الله په دی باندې تصريح کړی ده،، سمع الزهری،، (۱۰)

**د لفظ،، ماجشون،، تحقيق** :،، ماجشون،، د ځنی حضراتو په نيز دجيم د کسره سره ونيلی شوې دې او ځنی حضراتو دا مفتوح وئيلي دې، بلکه ځنی حضراتو وئيلی دی چه په دې لفظ باندې درې واړه حرکات صحيح دی. (۱۱) بيا دوجی تسميه په باره کښې وئيلی شوی دی چه چونکه دوی اصبهان ته تلی وو، او دهغه ځائ د خلقو نه به ئې دهغوی د حالاتو معلومولو دپاره،، چونی چونی،، (يعنی ته سنګه يئ ؟) وئيل، نو ځکه د دوی لقب،، ماجشون،، اوګرځيدو،
ابراهيم حربی وائې چه دا دفارسی نه معرب دې، په اصل کښې،، ماه ګون،، وو، يعنی دسپوږمئ رنګ والا، چونکه د دوی دواړه انتګی سره وو ځکه ورته،، ماو ګون،، وئيلی شی، نو بيا ئې معرب کړو نو،، ماجشون،، ترينه جوړ شو. (۱۲)
دعبدالعزيز بن ابی سلمه رحمه الله انتقال په ۱۶۴ هجری کښې شوی دې. (۱۳)

---

(۱) حواله بالا_
(۲) تهذيب التهذيب ج ۱۸ص ۳٤٤)_
(۳) حواله بالا)_
(۴) حواله بالا)_
(۵) حواله بالا)_
(۶) تقريب التهذيب ص ۳۵۷ رقم ٤۱۰٤)_
(۷) الثقات لابن حبان ج ۷ ص ۱۱۱)_
(۸) تهذيب الکمال ج ۱۸ص ۱۵۶)_
(۹) پورتنئ حواله)_
(۱۰) التاريخ الکبير ج۶ ص۱۳ رقم ۱۵۳۰)_
(۱۱) اوګورئ تقريب التهذيب ص ۳۵۷ رقم ٤۱۰٤)، والمغنی فی ضبط انسماء الرجال ص۶۷،۶۸)_
(۱۲) اوګورئ تهذيب الکمال ج ۱۸ ص۱۵۵).وسير اعلام النبلاء ج ۷ص ۳۱۰)_
(۱۳) الکاشف ج ۱ ص۶۵۶).رقم)(۳۳۹۵)_

③ **الزهري** : دوی محمد بن مسلم بن شهاب زهری رحمه الله دی، د دوی حالات په ، ،بدء الوحی، ، د دریم حدیث د لاندې تیر شوی دی . (١)

④ **عیسی بن طلحه** : دوی ابومحمد عیسی بن طلحه بن عبیدالله قرشی تیمی مدنی رحمه الله دی، د دوی حالات په ، ،کتاب العلم ، باب الفتیا وهو واقف علی الدابة وغیرها ، ، کښې تیر شوی دی(٢)

⑤ **عبدالله بن عمرو** : د حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنه حالات په کتاب الایمان ، ،باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده ، ، د لاندې تیر شوی دی . (٣)

**قوله: قال: رایت النبي صلی الله علیه وسلم عند الجمرة وهو یسئل**: حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما فرمائی چه ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ، ،جمره ، ، سره او کتلو چه خلقو ترینه تپوسونه کول ،

، ،**الجمرة**، ، کښې الف لام یا خو دجنس دپاره دې، لهذا هره یوه جمره ترې نه مراد کیدی شی، اویا دعهد دپاره دې نومراد ترینه جمرة العقبه ده ځکه چه کله ، ،الجمرة ، ، مطلق اوئیلی شی نو ددې اطلا ق په جمرة العقبه باندې کیږي . (٤)

**په ترجمة البا ب باندې اشکالات** : ځنی حضراتو په ترجمة الباب باندې دا اشکال کړې دې چه په حدیث باب کښې خو دا مذکور نه دی چه دا سوال درمی په حالت کښې شوی وو، بلکه په دې کښې خو صرف دومره خبره ده چه هغوی ، ،جمرة ، ، سره ولاړ وو . ددې جواب دا ورکړې شوې دې چه امام بخاری رحمه الله اکثر د عموم نه تمسك (استدلال) کوي، او ، ،سوال عند الجمرة ، ، عام دې برابره ده که د اشتغال بالرمی په حالت کښې وی اوکه د هغې نه دفارغیدلو په حالت کښې وی، ځکه په ترجمة الباب باندی هیڅ اشکال نشته . (٥)

امام اسماعیلی رحمه الله په ترجمة الباب باندې دا اشکال کړی دې چه په ترجمة الباب کښې چه دکم ځائ تصریح شوی ده، ددې دذکر هیڅ فائده نشته، ځکه چه په سوال او جواب کښې دځائ د تخصیص څه معنی ده ؟ بیا خو امام بخاری رحمه الله له ، ،باب السؤال والمسئول علی الراحلة ، ، او ، ،باب السؤال یوم النحر ، ، هم قائمول پکاروو ، د علامه اسماعیلی رحمه الله داوینه چه ، ، د ترجمة الباب هیڅ فائده نشته ، ، صحیح نه ده ، ځکه چه ددې فوائد مونږ رومبی ذکر کړی دی . البته دوی په امام بخاری داخبره لازمه کړه چه دوی له دا نور ابواب هم قائمول پکاروو لهذا د ، ،باب السؤال والمسئول علی الراحلة ، ، دمضمون ترجمه په ، ،باب الفتیا وهو واقف علی الدابة وغیرها ، ، سره منعقده کړی شوه . او ، ،باب السوال یوم النحر ، ، ترجمه واقعی چه اهم ده، کمی نه

---

(١) کشف الباری (ج ١ص٣٢۶)_
(٢) کشف الباری ج ٣ص ٤٠٣)_
(٣) کشف الباری (ج ١ ص۶٧٩)_
(٤) عمدة القاری (ج ٢ ص١٩٨)_
(۵) فتح الباری (ج ١ص٢٢٣)_

چه هغوی اشاره هم او کړه .څکه کیدی شی چه چا داخیال کړی ووچه یوم النحر دخوراك څکاك اودا لوبو ورځې وې،لهذا په دې ورځ په تعلیم اوتعلم کښې مشغولتوب نه دې پکار، نو امام بخاري رحمه الله کچرې داترجمه قائمه کړې وه نو ونیلی شوی به ووچه امام بخاری دا خبره ښکاره کړه چه په دې ورځ کښې علم حاصلول جائز دي اګرکه دا دخوراك څکاك اود لوبو ټوقو ورځې دي،بلکه د لوبو ټوقو په ځائ دعلم په حصول کښې مشغوله اوسیدل ډیر غوره او اولی دی.[1]

**قوله: فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ نَحَرْتُ قَبْلَ أَنْ أَرْمِيَ. قَالَ «ارْمِ وَلاَ حَرَجَ». قَالَ آخَرُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ حَلَقْتُ قَبْلَ أَنْ أَنْحَرَ. قَالَ «انْحَرْ وَلاَ حَرَجَ». فَمَا سُئِلَ عَنْ شَيْءٍ قُدِّمَ وَلاَ أُخِّرَ إِلاَّ قَالَ افْعَلْ وَلاَ حَرَجَ:** یو کس تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ ما درمی نه مخکښې قربانی اوکړله،نو هغوی ورته اوفرمائیل چه اوس رمی اوکړه،هیڅ حرج نشته، یو بل کس ترینه تپوس اوکړو چه یارسول الله، ما دقربانی نه مخکښې حلق اوکړلو،نو هغوي ورته اوفرمائیل چه اوس قرباني اوکړه، هیڅ حرج نشته. دهغوی نه چه دڅه څیز دتقدیم اوتاخیر په باره کښې تپوس اوکړې شو نو هغوي ورته اوئیل چه، ،اوس اوکړه،هیڅ حرج نشته،

داحدیث وړاندې تیرشوی دې اوهم هلته ددې سره متعلقه مباحث هم په تفصیل سره راغلی دی،فلیراجع الیه.[2]

**دحدیث په ترجمة الباب باندې انطباق:** روستو اشارةً تیرشو چه اما م بخاری رحمه الله د، ،رایت النبي صلى الله عليه وسلم عند الجمرة وهو يسئل، ،د عموم نه ترجمه ثابته کړې ده چه هغوی جمرة سره وو برابره ده چه رمی کښې مشغول وو اوکه درمی نه فارغ شوی وو، والله اعلم

## (۴۷)_ باب: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَى (وَمَا أُوتِيتُمْ مِنَ الْعِلْمِ إِلاَّ قَلِيلاً)

**دسابق باب سره مناسبت:** په دواړه بابونو کښې مناسبت داسې دی چه په دواړو کښې سوال کول ذکر کړی شوی دی، البته په ړومبی باب کښې مسئول ذکر کړې شوی دی او سائل ته دده د علم ضرورت دی، اوپه دې باب کښې مسئول مذکور نه دې.[3]

**دترجمة الباب مقصد:** علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دامام بخاری مقصد دادې چه ځنی علوم داسې دی چه په هغې باندې الله تعالی انبیاء او ملائکو ته هم اطلاع نه ده ورکړې.[4] ددې تائید ددینه کیږي چه کله د یهودیانو وړاندې هغوي دا آیت ((وما اوتيتم من العلم الا قليلا)) مبارك اولوستلو[5] نو هغوی یهودیانو تپوس اوکړو چه دا خطاب صرف زمونږ دپاره دې یا تا

---

[1] پورتنۍ حواله)_
[2] اوګورئ کشف الباری (ج ۳ص ۴۱۰،۴۰۵)کتاب العلم وهو واقف على الدابة وغيرها)_
[3] عمدة القاري ج ۲ص ۱۹۹)_
[4] پورتنۍ حوا له)_
[5] الاسراء ۸۵)_

سو هم په دې كښې دا خل يې ؟ نو تاسو ورته اوفرمائيل چه، ، بل نحن والتم لم لوت من العلم الا قليلا، ، [1] په دې باندې په ظاهره دا اشكال دې چه داباب خو په، ، كتاب الايمان، ، كښې ذكر كول پكاردى ځكه چه دادې تعلق دا اعتقادى مسائلو سره دې . ليكن دا هم ښكاره ده چه ددې تعلق د كتاب العلم سره هم دې ځكه امام بخارى رحمه الله داپه، ، كتاب العلم، ، كښې ذكر كړې دې . حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائى چه امام بخارى دااووئيل چه سړى له پكاردى چه تواضع اختيار كړى اودخلاف تواضع كارونو نه ځان بچ كړى. ځكه چه دټولو مخلوقاتو علم چه رايوځې كړې شى نو بيا هم هغه قليل دې نو ديو كس دعلم قلت اوسپكوالئ پيژندل هيڅ ګران نه دى. حكماء دا وينا كړې ده چه يوسړې څومره هم لوئ اوغټ عالم شى خو بالبداهت دهغه جهل دهغه دعلم نه ډير زيات وي. يعنى دسړى علم متناهى او دهغه جهل غير متناهى دې،لهذا علماء له پكاردى چه دخپل علم د لږوالي اوسپكوالي لحاظ اوساتى اودخلاف تواضع كارونو نه احتراز اوكړى . [2]

**په مذكوره باب او د تير شوى باب په مينځ كښې فرق :** ددې نه پس پوه شې چه شيخ الهند رحمه الله فرمائى چه روستو يوباب تيرشوې دې، ، باب ما يستحب للعالم اذا سئل اي الناس اعلم ؟ فيكل العلم الى الله ، ، ددې غرض ئې هم دابيان كړې ووچه علماء له تواضع اختيارول پكاردې اودلته كښې ددې باب مقصد ئې هم دابيان كړو،آخر په دواړو كښې څه فرق دې ؟ په دې دواړو بابونوكښې دافرق كيدى شى چه په تيرشوى باب يعنى، ، مايستحب للعالم........، ، نه داتواضع مسنونه طريقه كړې شوى ده اوپه دې باب كښې امام بخارى رحمه الله ددې علت طرف ته اشاره كړې ده،يعنى تواضع ځكه اختيارول پكاردي چه دسړي علم څومره هم زيات وى دهغې هيڅ حثيت نشته، الله تعالى ټولو مخلوقاتو ته خطاب كوى ((وما اوتيتم من العلم الا قليلا)) يعنى ستاسو دټولو علم لږ دې، قليل دې،دټو ل مخلوق علم قليل دې نو ديوكس دعلم به څه حثيت وى ؟

داهم ممكن ده چه اما م بخارئ ددې باب نه دتواضع تعليم اوتبليغ وركړى وي اود، ، باب ما يستحب للعالم......، نه ادب خودلى وى،يعنى چه ډير علماء راجمع شوى وى او اتفاقاً په كښې ديو كس نه دا تپوس اوكړى شى چه، ، اي الناس اعلم ؟ ، ، نوعالم به څنګه جواب وركوي، نو دحديث نه دا معلومه شوه چه الله ته حواله كول پكاردى اوداسې وئيل پكاردى، الله اعلم، ، يعنى الله تعالى ښه پوهيږي چه څوك لوئې عالم دې .

حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائى چه دترجمه اولى نه مراد اوغرض دعلماء دپاره تواضع ده. يعنى ديوعالم دپاره دامناسب نه دى چه هغه خپل ځان په خپله اعلم الناس اوګنړى.اګرچه واقعى هغه اعلم وى ځكه چه حضرات انبياء عليهم السلام دخپلو امتونو په مقابله كښې اعلم دى .بياهم دوى حضراتو ته د، ، اي الناس اعلم، ، په جواب كښې، ، الله اعلم، ، وئيلو

---

[1] عمدة القارى ج ۲ص۱۹۹)_

[2] الابواب والتراجم ص۵۸)_

تلقين ور كړې شوى دى. ظاهر دا ده چه د واضح په تو ګه باندې تواضع ده. او ددې ترجمې غرض دالله تعالى د علم په مقابله كښې د مخلوقاتو تردې پورې چه د انبياء د علم قلت بيانول مقصود دى، چه كم قطعى اويقينى دې، نو داسې په دواړو تراجمو كښې فرق ښكاره كيږي.[1]

[۱۲۵] [2] حَدَّثَنَا قَيْسُ بْنُ حَفْصٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ قَالَ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ سُلَيْمَانُ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ بَيْنَا أَنَا أَمْشِي مَعَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فِي خَرِبِ الْمَدِينَةِ، وَهُوَ يَتَوَكَّأُ عَلَى عَسِيبٍ مَعَهُ، فَمَرَّ بِنَفَرٍ مِنَ الْيَهُودِ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ سَلُوهُ عَنِ الرُّوحِ. وَقَالَ بَعْضُهُمْ لَا تَسْأَلُوهُ لَا يَجِيءُ فِيهِ بِشَيْءٍ تَكْرَهُونَهُ. فَقَالَ بَعْضُهُمْ لَنَسْأَلَنَّهُ. فَقَامَ رَجُلٌ مِنْهُمْ فَقَالَ يَا أَبَا الْقَاسِمِ، مَا الرُّوحُ فَسَكَتَ. فَقُلْتُ إِنَّهُ يُوحَى إِلَيْهِ. فَقُمْتُ، فَلَمَّا انْجَلَى عَنْهُ، قَالَ (وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الرُّوحِ قُلِ الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي وَمَا أُوتُوا مِنَ الْعِلْمِ إِلَّا قَلِيلًا). قَالَ الْأَعْمَشُ هَكَذَا فِي قِرَاءَتِنَا. [۴۴۴۴، ۶۸۶۷، ۷۰۱۸، ۷۰۲۴]

## رجال الحديث

① **قيس بن حفص**: دوى ابومحمد قيس بن حفص بن القعقاع التميمى الدارمى البصرى رحمه الله دې.[3] دوى د اسماعيل بن عليه، عبدالواحد بن زياد، هشيم بن بشير، معتمر بن سليمان، عبدالوارث بن سعيد، يزيد بن زريع اود ابو عوانه رحمهم الله نه روايت حديث كړى دې. او ددوى نه روايت كونكو كښې امام بخارى، امام ابوداود، امام احمد بن الحسن الترمذى، ابوزرعه، ابوحاتم، يعقوب بن سفيان، عبدالعزيز بن معاويه اوفضل بن محمد شعرانى رحمهم الله شامل دى.[4]

امام ابن معين رحمه الله فرمائى چه: "ثقة".[5]

امام دارقطنى رحمه الله فرمائى: "ثقة".[6]

---

[1] الكنز المتوارى ج ۲ص ۳۸۱، ۳۸۳_

[2] قوله: "عن عبدالله رضى الله عنه: "الحديث، اخرجه البخارى ايضا فى صحيحه ج ۲ص ۶۸۶) كتاب التفسير، سورة الا سراء، باب: ((ويسئلونک عن الروح))، رقم (۴۷۲۱). ج ۲ ص ۱۰۸۳) كتاب الاعتصام بالكتاب والسنة، باب ما يكره من كثرة السنوال وتكلف ما لا يعنيه، رقم (۷۲۹۷). ج ۲ص ۱۱۱۱) كتاب التوحيد، باب: ((ولقد سبقت كلمتنا لعبادنا المرسلين)) رقم ۷۴۵۶)، و باب قول الله تعا لى ((انما قولنا لشيء ..........)) رقم ۷۴۶۲)، ومسلم فى صحيحه، فى كتاب صفات المنا فقين، باب سوال اليهود النبى صلى الله عليه وسلم عن الروح وقوله تعا لى: ((يسئلونک عن الروح)) رقم (۷۰۵۹_۷۰۶۱) والترمذى فى جامعه، فى ابواب التفسير، باب: ومن سورة بنى اسرائيل، رقم ۳۱۴۱)_

[3] تهذيب الكمال ج ۲۴ص ۲۱)، رقم (۴۸۹۹)_

[4] د شيوخو اود تلامذه د تفصيل د پاره اوګورئ: تهذيب الكمال ج ۲۴ص ۲۲، ۲۳)_

[5] تهذيب الكمال ج ۲۴، ص ۲۳)_

[6] تهذيب الكمال ج ۸ص ص ۳۹۰)_

امام عجلی رحمه الله فرمائی، ،لا باس به ،(۱) امام ابو حاتم رحمه الله فرمائی، ، شیخ، ، (۲)
ابن حبان رحمه الله دوی په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې او فرمائی ، ،یغرب ، ، (۳) ، ، یعنی دوی تفرد اختیاره وی او غریب احادیثه راوړی . غالبا حافظ ابن حجر رحمه الله د دوی نه متاثره شوې دې او دائي فرمائیلی دی، ،ثقة له افراد، ، (۴) البته د دوی باره کښې، د . . یعرب، . تصریح کول د ابن حبان تفرد دې، ګنې ددوی نه علاوه بل چا هم په دوی داسې کلام نه دې کړې. څنګه چه پورته د دوی حضراتو اقوال نقل کړې شو . (۵) ددوی انتقال په ۲۲۷ هجری کښې شوی دې.(۶)

② **عبدالواحد** : دوی عبدالواحد بن زیاد عبدی بصری رحمه الله دی، ددوی حالات په کتاب الایمان، ،باب الجهاد من الایمان، ، دلاندې تیر شوی دی .(۷)

③ **الاعمش سلیمان بن مهران** : دوی امام ابو محمد سلیمان بن مهران اسدی کوفی المعروف بالاعمش رحمه الله دی، د دوی حالات په کتاب الایما ن. .باب ظلم دون ظلم، ، دلاندې تیر شوی دی.(۸)

④ **ابرا هیم** : دوی مشهور امام او فقیه ابراهیم بن یزید بن قیس بن اسود نخعی رحمه الله دې، د دوی حالات هم په کتاب الایمان، ،باب ظلم دون ظلم، ، دلاندې تیر شوی دې . (۹)

⑤ **علقمه** : دې د کوفې مشهور تابعی فقیه او امام ابو شبل علقمه بن قیس بن عبدالله بن مالك نخعی کوفی رحمه الله دې .ددوی حالات هم په کتاب الایمان، باب ظلم دون ظلم، ،دلاندې تیر شوی دی . (۱۰)

⑥ **عبدالله** رضی الله عنه : دوی مشهور صحابی حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دی، د دوی حالات هم په کتاب الایمان، ، باب ظلم دون ظلم، ،دلاندې تیر شوی دی، (۱۱)

## قوله: قال: بینا انا امشي مع النبي صلى الله علیه وسلم في خرب المدینه:

حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه یو ځلې زه نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره د مدینې منورې په

---

(۱) تهذیب الکمال ج ۲۴ ص۳۳)_
(۲) پورتنۍ حواله) -
(۳) الثقات لابن حبان ج ۹ ص ۱۵)_
(۴) تقریب التهذیب ص ۴۵۶، رقم.۵۵۶۹)_
(۵) اوګورئ، تحریر تقریب التهذیب ج ۳ص۱۸۷.رقم. ۵۵۶۹)_
(۶) اوګورئ حاشیة السبط ابن العجمی علی الکاشف ج ۲ص۱۳۹.رقم ۴۵۹۹)_
(۷) کشف الباری ج۲ص ۳۰۱)_
(۸) کشف الباری ج ۲ص ۲۵۱) _
(۹) کشف الباری ج ۲ص۲۵۳)_
(۱۰) کشف الباری ج ۲ص ۲۵۶)_
(۱۱) کشف الباری ج ۲ص ۲۵۷)_

كهنډراتو باندې تيريدم.

**خرب**: دخاء معجمې دفتحې سره اود ..راء..دكسرې سره راخي. دامفرد هم استعماليږي اود ..خربة..د جمع په طور هم مستعمل دي لكه..كلمه..او..كلم.. [1] دا لفظ خرب ((بكسر الخاء المعجمه وبفتح الراء المهمله)) هم ضبط كړې شوې دي. [2] ددې معنى ويرانه اوكهنډر راخي، په صحيح بخاري كښې په دې مقام كښې خو دالفظ هم دغه شان دې يعنى..خرب.. البته په نورو مقاماتو كښې..حرث.. واقع شوى دې. [3] هم دغه شان په صحيح مسلم كښې هم..حرث.. واقع شوې دې، [4] البته ددې په يو طريق كښې..نخل.. راغلې دې. [5] په دې ټولو رواياتو كښې تطبيق داسې كيدې شي چه هغه خاى په اصل كښې كهنډرپاتې شوى وو،بيا روستو په كښې كرونده وغيره هم كولې شود اوخنى خلقو پكښې د كهجورو ونې هم كرلې وې. اود كهنډر څنې نښې پكښې هم باقى پاتى شوى وې.. والله اعلم.

**قوله: وهويتوكأعلى عسيب معه**: هغوى د كهجورې دونې په يوه لښتې باندې اړخ لګولې وو، علامه صنعانى رحمه الله فرمائى چه د كهجورې ښاخ ته..سعف..ونيلى شى،بيا په..سعف..كښې چه دجرړې كمه حصه پرته(چوړا) وى هغې ته..كرب..ونيلى شي... او ددينه بره حصه په كمه چه د كهجورې پاڼې نه وى هغې ته..عسيب..ونيلى شى [6] څنى حضرات وائې چه..عسيب..د كهجورې هغه ښاخ دې چه دهغې نه پاڼې صفا كړې شى [7]

**قوله: فمر بنفر من اليهود**: نو هغوى ديهوديانو په يو ډلې باندې تيرشو، دبخاري شريف په نورو مقاماتو كښې داسې دى..مر بنفر من اليهود.. البته دكتاب التفسير په طريق كښې داسې دى ..اذ مر اليهود.. [8] دطبرى په يو روايت كښې ..اذ مررنا على يهود.. راغلې دې. [9]

---

[1] اوګورئ عمدة القاري ج ۲ص ۲۰۰)_

[2] فتح الباري ح۱ص ۳۲٤، وعمدةالقاري ج ۲ص ۲۰۰)_

[3] روستو مونږه ددې حديث تخريج كړې دې فليراجع اليه.)_

[4] صحيح مسلم،كتاب صفات المنافقين،باب سوال اليهود النبى صلى الله عليه وسلم عن الروح.........
رقم (۷۰۵۹)، (۷۰٦۰)_

[5] پورتنئ حواله، رقم ۷۰٦۱)_

[6] عمدة القاري ج ۲ص ۲۰۰)_

[7] پورتنئ حواله) _ فائده :دكهجرې ونه نخلة : تنه : جذع النخلة، پوستكى اوريشې، ليف : دښاخ د كټ كولو نه پس چه كمه حصه دتنې سره باقې پاتې شي،كرناف دښاخ دجرړې پلنه حصه كرب دښاخ نرئ حصه عسيب پوره ښاخ سعف پاڼې خوص اوګورئ القاموس الوحيد : د كهجورې غنچقه كباسه، قنو، عذق، كهجورې چه څه سره انخښتې وى شماريخ ددې مفرد شمروخ يا شمراخ راخي، بيا دكهجورو ترتيب دادې طلح، بلح، بسر، زهو، معو، رطب ، تمر، اوګورئ كفاية المتحفظ ص ۳۸) وفقه اللغة ص ۲۷۱)، والمعاجم العربيه الاخرى) _

[8] صحيح بخارى ج۲ص ٦۷٦ كتاب التفسير،سورة بنى اسرائيل،باب: ويسئلونک عن الروح،رقم ٤۷۲۱)

[9] تفسير الطبرى ج ۱۵ص٦۷) تحت تفسير قوله تعالى : ويسئلوناک عن الروح)_

په دې دواړو رواياتو کښې تطبيق په داسې طريقه کيدې شي چه په لاره کښې ئې ملاقات شوې وی ، يعنی ديو طرف نه حضور مبارك صحابه كرامو سره روان وو او دبل طرف نه يهودی راراوان وو ،

فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ سَلُوهُ عَنِ الرُّوحِ. وَقَالَ بَعْضُهُمْ لاَ تَسْأَلُوهُ لاَ يَجِيءُ فِيهِ بِشَيْءٍ تَكْرَهُونَهُ. فَقَالَ بَعْضُهُمْ لَنَسْأَلَنَّهُ. فَقَامَ رَجُلٌ مِنْهُمْ فَقَالَ يَا أَبَا الْقَاسِمِ، مَا الرُّوحُ فَسَكَتَ. فَقُلْتُ إِنَّهُ يُوحَى إِلَيْهِ. فَقُمْتُ، فَلَمَّا انْجَلَى عَنْهُ، قَالَ (وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الرُّوحِ قُلِ الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي وَمَا أُوتُوا مِنَ الْعِلْمِ إِلاَّ قَلِيلاً).

يهوديانو کښې څنې کسانو څنو ته اووئيل چه دروح په باره کښې سوال اوکړې ، په دوی کښې څنې خلقو اوئيل چه ددوی نه سوال مه کوئ ، هسې نه چه دوی په جواب کښې داسې خبره اوکړی چه دهغې دوجې تاسو ته خفګان يا شرمندګی دررسی ، څنو اوئيل چه مونږه خوبه خامخا تپوس کوو ، چنانچې په دې کښې يو کس اودريدو اووئيل .. اې ابو القاسم ، روح څه څيز دې ؟ نو هغوی خاموشه شو ، نوما اووئيل چه په تاسو باندې وحی نازليږی .نو زه اودريدم ، بيا چه کله دوحی اثرات ختم شو نو هغوی اوفرمائيل «وَيَسْأَلُونَكَ» يعنی داخلق تاسونه دروح په باره کښې سوال کوی نو تاسو ورته اووائې چه روح څما درب حکم دې اودې خلقو ته لږ شان علم ملاوشوې دې .

**واقعه مذ كوره په مدينه منوره کښې شوې وه اوکه په مکه مکرمه کښې ؟** : ددې حديث نه معلوميږی چه داواقعه په مدينه منوره کښې شوی ده ، حلانکه دامام احمد اودامام ترمذی رحمهماالله د روايتونو نه معلوميږي چه داواقعه په مکه مکرمه کښې شوی ده ، ځکه چه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې :

.. قالت قريش ليهود : اعطونا شيأ نسال عنه هذا الرجل ، فقال : سلوه عن الروح ، فانزل الله تعالى «وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الرُّوحِ قُلِ الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي وَمَا أُوتُوا مِنَ الْعِلْمِ إِلاَّ قَلِيلاً» ، قالوا اوتينا علما كبيرا ، اوتينا التوراة ، ومن اوتي التوراة فقد اوتي خيرا كثيرا ، فانزلت : «قُلْ لَوْ كَانَ الْبَحْرُ مِدَادًا لِكَلِمَاتِ رَبِّي لَنَفِدَ الْبَحْرُ...» الى آخر الاية [1] اللفظ للترمذی

يعنی .. قريشو يهودو ته درخواست کړې ووچه مونږه له څه داسې څيز راکړې چه دهغې تپوس مونږه د (حضورمبارك نه اوكړو) نو يهوديانو اوئيل چه ، روح ، باره کښې ترې نه سوال اوکړې ، نو الله تعالی آيت نازل کړو «يسئلونك» يعنی داخلق تاسونه دروح په باره کښې تپوس کوی نو تاسو ورته اوفرمائې چه روح څما درب حکم دې ، اوتاسو ته خو لږ شان علم درکړې شوېدې . يهودو او ئيل چه مونږه له خو ډير علم راکړی شوی دې ، مونږه له خو تورات هم راکړی شوی دې اوچا له چه توراة ورکړی شوی دې نو هغوی ته خير كثير وركړی شوی دې ، ځکه چه په دې کښې حکمت او دعقل خبرې دې او چا ته چه دحکمت اود عقل

[1] جامع الترمذی ، ابواب التفسير ، ومن سورة بنی اسرائيل ، رقم ۳۱۴۰ ، ومسندالامام احمد ج ۱ ص ۲۵۵ ، رقم (۲۳۰۹) _

خبرې ورکړې شي نو هغوی ته خير کثير ورکړې شی.» نو دا آيت نازل شو. «قُل لَّوْ كَانَ الْبَحْرُ مِدَادًا.........» يعنى تاسو اووائي چه که سمندر زما درب د کلماتو دليکلو دپارهم سياهى جوړه کړې شی نو سمندر به ختم شی خو زما درب کلما ت به ختم نه شی.»

ددې روايت نه معلوميږي چه دا واقعه په مکه مکرمه کښې شوی ده ، او ددې تائيد ددې نه کيږي چه دا آيت دسورة بنی اسرائيل دې ،اوپه مکه مکرمه کښې نازل شوی دې، (1)

حافظ ابن کثير رحمه الله فرمائى چه ددې داجواب کيدلې شی چه د آ يت مکرر نازل شوی وی، يوځل په مدينه منوره کښې او يوځل په مکه مکرمه کښې، (2) مګر د حافظ ابن القيم د رائې مطابق دا واقعه هم په مدينه منوره کښې شوی ده، ځکه چه دصحيح بخارى روايت ناطق دې، هغوی فرمائي که چرې دا واقعه په مکه مکرمه کښې شوې وې ، او حضور مبارك له ددې متعلق علم ورکړې شوې وو ، نو هغوی به ديهوديانو په سوال باندې خاموشی ولې اختياروله.؟ بلکه فوراً به هغوی جواب ورکړې وو . ستاسو خاموشی اختيارول ددې خبرې دليل دې چه تر اوسه پورې ددې متعلق هغوی ته علم نه وو ورکړې شوې، (3) ليکن حقيقت دادې چه په مکية النزول کيدو باندې دلالت کونکی د تو لو رواياتو رد ممکن نه دې، ځکه چه دارواياتـ کم از کم حسن ضرور دې. بلکه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه.، رجاله رجال مسلم.، (4)

پاتې شو دا ابن القيم اعتراض نوداهغې جواب حافظ ابن کثير رحمه الله ورکړې دې : چه کله دنبې اکرم ﷺ نه په مدينه منوره کښې دوباره سوال اوشو نو هغوی دمزيد بيان په انتظار کښې خاموشه شو چه شايد ددې متعلق څه تفصيلی بيان راشی، ليکن د الله تعالی دطرفنه فرشتې دا اونيل چه تاسو هم دا آيت اولولئ . (5) اويا دې دصحيح بخارى روايت له ترجيح ورکړې شی، چنانچه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي که چرې دا جمع ممکن وی نو فبها والا فما فى الصحيح اصح ..؛ (6) والله اعلم

**خلاصه د کلام** : بهرحال خلاصه داشوه چه د صحيحينو دروايت نه خو دامعلوميږي چه داواقعه په مدينه منوره کښې شوې ده او ابن عباس رضی الله عنهما دروايت نه کوم چه په مسند احمد اوجامع ترمذی کښې دې، دهغې نه معلوميږي چه داواقعه دمکه مکرمه ده، اودا آيت مکية النزول دې،اوس به يا خو دترجيح طريقه اختياروله شی،لکه څنګه چه حافظ ابن القيم رحمه الله داطريقه اختيارکړې ده، اويابه دا جمع کولی شی اود تعدد نزول قول به اختياروله شی، حافظ ابن القيم رحمه الله په دې مقام کښې يوه بله خبره هم کړې ده، هغه دا چه دابن عباس رضی الله عنهما

---

(1) اوګورئ: الجامع لا حکا م القران للقر طبی ج ۱۰ص۲۰۳، تفسير سورة بنی اسرائيل)۔
(2) اوګورئ: تفسير ابن کثير ج ۳ص ۶۰)، سورة الا سراء، ويسئلو نک عن الروح)۔
(3) اوګورئ: کتا ب الروح لابن القيم ص۳۶۶)۔
(4) فتح البارى ج ۸ص ۴۰۱ ، کتاب التفسير، باب : ويسئلونک عن الروح)۔
(5) اوګورئ: تفسير ابن کثير ج ۳ص۶۰) ۔
(6) فتح البارى ج ۸ص ۴۰۱) ۔

روايات ډير مضطرب دي (۱) اوس يا خوبه داوئيلى شئ چه ددوى دا شاګردانو بيانات مختلف شوى دى اويا به داسې اووايو چه پخپله ددوى اقوال مختلف اومتعدد دى. ګويا مطلب داشو چه چونکه دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما په بياناتو کښې اختلاف دې لهذا ددې په مقابله کښې به دحضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه روايت (کم چه په صحيحنو کښې دې) راجح وى والعلم عندالله سبحانه وتعالىٰ

**د روح متعلق يو څو مباحث : بحث اول** : دلته کښې ړومبې بحث دادې چه يهوديانو دکم ،،روح،، متعلق سوال کړې وو دهغې نه څه مراد دې ؟ په دې کښې اختلاف دې .

① دټولونه مشهور قول دادې چه د ،،روح حيات،، متعلق سوال شوى وو. امام فخرالدين رازى. قاضى ابوبکر بن العربى رحمهماالله هم داقول اختيار کړې دې، علامه خطابى اوعلامه کرمانى رحمهماالله داکثروعلماؤ نه دانقل کړى دى،

② څنى حضرات وائي چه د ،،روح انسانى،، متعلق سوال شوى وو. په ،،روح حيات،، او ،،روح انسانى،، کښې فرق واضح دې. ،،روح حيات،، عام دې ددې نه مراد دهر ژوندى مخلوق روح دې، برابره ده چه هغه دانسان روح وى اوکه دڅه بل مخلوق روح وى . اوروح انسانى خاص دې ددې نه مراد صرف دانسان روح دې. څنى حضرات وائي چه دحضرت جبرائيل عليه السلام روح مراددې ، ③ څنى حضرات وائى چه دحضرت عيسىٰ عليه السلام روح مراددې،

④ څنى حضرات وائى چه ددې نه مراد قرآن شريف دې، ⑤ څنو ترې نه ،،وحى،، مراد اخستې ده، ⑥ يوقول دادې چه ددې نه مراد يوه مخصوصه فرشته ده چه دقيامت په ورځ به په صف کښې يواځې ولاړه وي، ⑦ يوقول دادې چه ددې نه مراد يوه مخصوصه فرشته ده ، دهغې به يوولس زره وزرې او مخونه وى ،⑧ يوقول دادې چه ددې نه مراد يوه فرشته ده چه دهغې به اويازره ژبې وى اوديوقول مطابق اويا زره مخونه به ئې وى، په هر مخ به ئې اويا زره ژبې وى، اودهرې ژبې به زر لغته وى، هغه فرشته به د الله تعالىٰ تسبيح کوى اودهرې تسبيح نه به يو د فرشته پيدا کيږي، چه هغه به نوروفرشتو سره آلوځى . هم دغه شان يو قول دادې چه يوه فرشته ده چه دهغې دواړه خپې به په آخرې زمکه کښې وى اوسر به ئې عرش سره لګى،

⑨ يو قول دادې چه دروح نه مراد دبنيادمانو په شا ن يومخلوق مراد دې چه هغې ته ،،روح،، وونيلى شى، دامخلوق خوراك څکاك کوې، دآسمان نه چه کله هم فرشته راکوځيګى، نو داروح هم ورسره لاندې راځى،

⑩ يوقول دادې چه ددينه دملائکو يو خاص صنف مراد دې. چه خوراك څکاك کوى.

دلته کښې دې دا خبره واضحه وى چه دروح متعلق چه څومره هم اقوال نقل شو، نو دا په هغه صورت کښې دې چه په قرآن کريم کښې وارد شوى ،،روح،، دتتبع (تلاش) په معنى کښې

---

۱) کتاب الروح لابن القيم ص ۳۶۶ـ

شی، خصوصا په ((وَيَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الرُّوْحِ)) والا آیت کښې چه کم روح راغلې دې دهغې په باره کښې دا اقوال نه دی [1] په دې اقوالو کښې دټولو نه مشهور قول رومبې قول دې، اود اکثرو علماؤ هم دا رائې ده چه دحضور اکرم ﷺ نه د روح دحقیقت په باره کښې سوال شوی وو.

**دحافظ ابن القیم رحمه الله رائې**: حافظ ابن القیم رحمه الله فرمائی چه په آیت کښې دروح نه روح انسانی مراد نه دې، داکثرو سلفو بلکه دټولو رائې داد ه چه دروح نه مراد یو ه لوئې فرشته ده چه دهغې په باره کښې الله تعالی خبر ورکړې دې چه هغه به دقیامت په ورځ نورو فرشتو سره ولاړه وی، دبنیادمانو ارواح ترینه مراد نه دی، ددې وجه داده چه یهودیانو کم سوال کړې وو دهغې مبنی داوه چه هغوی دداسې څیز په باره کښې تپوس کول غوښتل چه دهغې علم د وحې الهی نه بغیر ممکن نه وو، اوهغه هم هغه روح دې چه دهغې نه صرف الله تعالی واقف دې، حلانکه دبنیادمانو روحونه څه د عیب څیز نه دې، اومختلف خلقو اومختلفو مذهبونو والاپه دې باندې کلام کړې دې، لهذا دبنیادمانو دارواحو متعلق جواب ورکول دنبوت دنښونه نه ده.[2]

حاصل داچه دابن القیم رحمه الله په نیز دلته د ،،روح،، نه مرادیوه فرشته ده، چه دهغې ذکر الله تعالی په ((يَوْمَ يَقُوْمُ الرُّوْحُ وَالْمَلٰٓئِكَةُ صَفًّا ........)) [3] او په ((تَنَزَّلُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَالرُّوْحُ فِيْهَا بِاِذْنِ رَبِّهِمْ ...)) [4] کښې کړې دې.[5]

**دحافظ ابن القیم رحمه الله په رائې باندې تبصره**: دحافظ ابن القیم رحمه الله خبره په ظاهره باندې ډیره مضبوطه ده، بیاهم علی الاطلاق ددینه انکار کول چه دروح نه مراد ،،روح حیات،، یا روح انسانی نه دې، مشکل دی، آخرپه دې کښې څه دتعجب خبره ده چه که فلاسفه، حکماؤ، اومختلفو ډلو اواهل مذهبو دروح متعلق کلام کړې دې نوکه دیونبی نه داسوال اوشی نوڅه به اوشی، ؟ دفلسفیانو اودحکماؤ خبرې په اټکل اوپه گمان باندې مبنی وی، اونبی چه کمه خبره کوی هغه ثابته اوواضحه او مستحکم وی. لهذا عین ممکن دی چه سوال دروح انسانی یا دروح حیات متعلق وی، اوددې حقیقت معلوم کړې شوی وی چه داروح په بدن انسانی کښې څنگه ځائې شوی دې؟ اوددې نوعیت څه دې.؟ چنانچه دبعضو اهل نظرو دا رائې ده چه امتزاج الروح بالبدن په باره کښې سوال وو.[6]

**دوئم بحث**: دوئم بحث دادې چه نبی اکرم ﷺ ته ددې سوال جواب ورکړې شوې وو اوکه نه؟ نو یو جماعت وائې چه حضوراکرم ﷺ ته دروح حقیقت نه وو بیان شوې، چنانچه ابن بطال رحمه الله دمهلب رحمه الله نه نقل کړی دی:

---

[1] اوگورئ: فتح الباری ج ۸ص ۴۰۲)_

[2] اوگورئ: کتاب الروح ص۲۶۳، ۲۶۴)_

[3] سورة النباء\۳۸)_

[4] سورة القدر \۴)_

[5] کتاب الروح ص۳)_

[6] اوگورئ: فتح الباری ج ۸ص ۴۰۲)_

..هذا يدل على ان من العلم اشياء لم يطلع الله عليها نبيا، ولا غيره، اراد الله تعالى ان يختبر خلقه فيوقفهم على العجز عن علم ما لا يدركون حتى يضطرهم الى رد العلم اليه، الا تسمع قوله تعالى ((وَلَا يُحِيطُونَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهِ إِلَّا بِمَا شَاءَ)) فعلم الروح مما لم يشاء تعالى ان يطلع عليه احد من خلقه..[1]

مطلب داچه..داحديث په دې خبره دلالت کوی چه ځنې څیزونه داسې دی چه دهغې علم الله تعالی نه يو نبي له ورکړې دې اونه بل يو کس ته. الله تعالی غواړی چه دخپل مخلوق امتحان واخلی.اودکمو څیزونو ادراك چه مخلوق نشي کولې دهغې نه عاجزه کيدلو باندې زان پوهه کړی. ځکه چه مجبوراهغوی ددې علم الله تعالی ته اوسپاری. دالله تعالی ارشاد دې..خلق د الله تعالی دعلم هيڅ احاطه نشي کولې مګر څومره چه هغه اغواړی..

د..روح..علم هم الله تعالی دخپل زان سره خاص کړې دې، دالله تعالی اراده داده چه په مخلوق کښې څوك هم ددې نه واقف نه شي..يوه بله ډله فرمانی چه هغوی ته دروح حقيقت اوعلم ورکړې شوې وو. اوهغوی ددې دحقيقت نه واقف وو. نوعلامه عينی رحمه الله فرمانی:

جل منصب النبي صلى الله عليه وسلم، وهو حبيب الله وسيد خلقه، ان يكون غير عالم بالروح، وكيف وقد من الله عليه بقوله: ((وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ ۚ وَكَانَ فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكَ عَظِيمًا)) وقد قال اكثر العلماء: ليس في الاية دليل على ان الروح لا يعلم، ولا على ان النبي صلى الله عليه وسلم لم يكن يعلمها..[2]

..يعنی حضور نبي اکرم ﷺ چه دالله حبيب اودمخلوق سردار دې. دهغوی مقام اومرتبه ددې خبرې نه ډيره اوچته ده چه هغوی..روح..اونه پيژنی،اودا کيدې هم شي.اوالله تعالی په خپل ارشاد سره لوئ احسان ظاهرکړو..اوالله تعالی هغوی له دداسې داسې کارونو علم ورکړو چه دهغې علم ددينه مخکښې هغوی ته نه وو. اوپه هغوی باندې دالله تعالی لوئ فضل دې..اکثرعلماء وائی چه آيت کښې ددې خبرې هيڅ دليل نشته چه دروح علم نه شي کيدې اونه ددې خبرې څه دليل شته چه حضوراکرم ﷺ ته دروح علم نه وو ورکړې شوی..

دامام ابوالقاسم سهيلی رحمه الله رجحان هم دې طرف ته دې.[3]

**دريم بحث**: دلته دريم بحث دادې چه هغوی ديهوديانودسوال جواب ورکړو اوکه نه؟ په دې کښې اختلاف دې:

ځنې حضرات وائی چه يهوديانو علی وجه التعنت سوال کړې وو.تحقيق نی مقصود نه وو بلکه د حضوراکرم ﷺ تنګول نی مقصد وو.ځکه تاسوجواب ورنکړو.[4]

ځنې حضرات وائی چه تاسوجواب ورکړو. په داسې توګه چه الله تعالی هغوی ته اوونيل ((قُلِ الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي)) يعنی تاسو اووايئ چه..روح..زمادرب حکم دې،اود..امر..نه مراد شريعت دې،مطلب دادې چه دهغه امرد جنس نه ده دځه دپاره چه تاسو مبعوث کړې شوی وې. يعنی

---

[1] اوګورئ شرح ابن بطال ج ۱ص ۲۰۴) _

[2] عمدة القاری ج ۲ص ۲۰۱)_

[3] اوګورئ الروض الانف ج ۱ص۱۹۷)-

[4] اوګورئ الروض الانف ج ۱ص۱۹۷)-

يودينى اوشرعى څيزدې چه دهغې حقيقت دطبعيت، فلسفه، قياس اورائې نه معلومول ممكن نه دى بلكه د دين په ذريعه به دهغې حقيقت معلومه ولې شى، تاسوپه دين كښې داخل شئ، نوتاسوته به پخپله ددې حقيقت معلوم شى.[1]

نو دقرآن اوحديث نه معلوميږى چه، روح، قبض كولې شى، اوعذاب ورته وركولې شى اوهغه ته دردهم رسى، جنت ته هم ليګلى شى اوهلته به خوند اومزې اخلى، اودغه شان نورهم ډير اوصاف په نصوصو كښې واردشوى دى.[2]

ددې نه دا معلومه شوه چې روح يو سپک جسم دې، حضرات علماء محققين فرمائى چې روح هغه سپک جسم دې چې د انسان په بدن كښې داسې خور شوې دې لكه څنګه چې د ګلاب اوبه په ګلاب كښې خورې شوې وى او دهغې خوشبو په هغې كښې خوره شوې وى.[3]

**څلورم بحث:** دلته يو بحث ضمنى شانتې دې چې الله تعالى فرمائى "قُلِ الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي" دلته د "امر" ذكر دې، قران كريم د الله تعالى د پاره د "امر" سره سره "خلق" هم ثابت كړې دې ارشاد دې "أَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْأَمْرُ".[4]

"خلق" او "امر" كښې څه فرق دې؟ لنډه دا اوګنړه چې دې كښې اختلاف دې: ابن ابى حاتم رحمه الله د سفيان بن عيينه رحمه الله نه نقل كړې دى "الخلق ما دون العرش والامر ما فوق ذلك".[5]

دغه شان ابن ابى حاتم د سفيان بن عيينه نه نقل كړې دى "الخلق هو الخلق والامر هو الكلام".[6]

په دې دواړو تفسيرونو كښې لفظى فرق دې معنى د دواړو يوه ده، مطلب دادې چې د امر تعلق د بره عرش سره دې د الله تعالى د طرف نه حكم رازى، او د خلق تعلق لاندې سره دې، لاندې ټول صرف مخلوقات دى.

امام غزالى رحمه الله فرمائى "فالاجسام ذوات الكمية والمقادير من عالم الخلق وكل موجود منزه عن الكمية والمقدار فانه من عالم الامر".[7]

يعنى د عالم خلق تعلق د هغې جسمونو سره دې چې كميت او مقدار والا دى او عالم امر تعلق هغه موجوداتو سره دې چې د كميت او مقدار نه خالى وى.

شيخ عربى محى الدين فرمائى چې عالم خلق هغه دى چې په واسطه سره پيدا شوې دې لهذا څوک چې الله تعالى لفظ "كن" سره پيدا كړل هغه د عالم امر څيز دې او كوم څيز چې بل څيز نه پيدا شوې دې هغه د عالم خلق څيز دې.[8]

---

[1] پورتنئ حواله) -
[2] پورتنئ حواله)_
[3] التفسير الكبير للرازى(٤٤/٢١) وكتاب الروح لابن القيم(ص٤٢٢)-
[4] الاعراف٥٤/٥-
[5] الدر المنثور(٩٢/٢) سورة اعراف-
[6] حواله بالا
[7] احياء علوم الدين(١٣٥٦)كتاب ذم الغرور-
[8] الفتوحات المكية(١٧٥/٣) السوال الثالث والخمسون ومائة)-

حضرت تهانوى رحمه الله د صوفياؤ حضراتو نه نقل كړې دى چې د عالم امر تعلق مجرداتو سره دې، دې نه دا مطلب اووتلو چې عالم خلق د مادياتو نه دې([1])

علامه شبير احمد عثمانى رحمه الله فرمائى چې لفظ "امر" په قرآنكښې شل ځاينو كښې راغلې دې او ددې په معنى كښې علماؤ ډيرې خبرې كړې دى خو زمونږ مطلب د سورة اعراف ددې آيت "الا له الخلق والامر" طرف ته توجه راړول دى چې كوم ځائې "امر" د "خلق" په مقابله كښې اينبودې دې چې د هغې نه مونږ په دې نتيجه رسيدلې يو چې د الله تعالى په نيز دوه مدونه جدا جدا دى يو "امر" بل "خلق"

**په دواړو كښې څه فرق دې؟:** دا مونږ د مخكښې آيتونو نه په آسانۍ سره پيژنو،اول ئې اوفرمائيل "إِنَّ رَبَّكُمُ اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ"([2])

(بې شكه ستاسو رب الله دې چا چې آسمانونه او زمكې په شپږ ورځو كښې پيدا كړل) دا خو "خلق" شو په مينځ كښې د "استواء على العرش" ذكر كولو سره چې، شان حكمرانى ظاهره وى وئې فرمائيل چې "يُغْشِي اللَّيْلَ النَّهَارَ يَطْلُبُهُ حَثِيثًا وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُومَ مُسَخَّرَاتٍ بِأَمْرِهِ"([3])

يعنى دا مخلوقات په يو معين نظام باندې چلول چې هغې ته تدبير او تصريف وئيلې شى دا "امر" شو.

دغه شان په سوره طلاق كښې ارشاد دې "اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ وَمِنَ الْأَرْضِ مِثْلَهُنَّ يَتَنَزَّلُ الْأَمْرُ بَيْنَهُنَّ"([4])

ګويا د دنيا مثال د يو غټې كارخانې دې چې په هغې كښې مختلف قسم مشينونه لږيدلې وى، څوك كپړا جوړه وى ځوك اوړه اغړى څوك كتابونه چهاپ كوى څوك په بنارونو كښې رڼا رسوى څوك پكى چلوى وغيره

په هر يو مشين كښې ډيرې پورزې دى چې د مشين غرض وغايت لحاظ كولو سره يو مقرره اندازه باندې لګولې شى بيا ټولې پرزې راجمع كولو سره مشين فټ كړې شى،چې كله ټول مشينونه فټ شى او تيار شى بيا د اليكټرك(بجلى) خزانې نه هر مشين ته جدا جدا لارو سره كرنټ پرينبودلې شى،په يو وخت كښې ولاړ مشينونه د خپل جوړخت مطابق په تاويدو او كار كولو كښې لګيا شى، بجلى هر يو مشين او هر يو پرزې لره په يو خاص ساخت او مقصد مطابق تاوه وئى، تر دې چې كومه لره او ډيره بجلى د رڼا په ليمپونو او قمقمو كښې رسولې شى نو هلته رسيدلو سره هم د دغې قمقمو رنګ ډهنګ اختياره وى.

ددې مثال نه دا خبره ښكاره كيږى چې د مشين ډهانچه تيارول،ددې پرزو ته صحيح ترتيب

---

[1]) مسائل السلوك على هامش بيان القران تحت آية "الا له الخلق والامر")-

[2]) الاعراف/٥٤-

[3]) حواله بالا

[4]) الطلاق/١٢-

ورکول او بیا فټ کول د یو سلسلې کار دې چې د هغې د پوره کولو نه پس د مشین چالو کولو د پاره د یو بل څیز، بجلی یا استیم(لوګې) د هغې د خزانې نه د راوړلو ضرورت وی، داسې اوګڼړه الله تعالی رومبې د آسمان او زمکې ټول مشینونه پیدا کړل چې هغې ته "خلق" ونیلې شی. هره وړه غټه پورزه یې د صحیح اندازې مطابق تیاره کړه چې هغې ته "تقدیر" ونیلې شوې دې او ټولې پرزې نې یوځائې کړې او مشین نې فټ کړو چې هغې ته "تصور" یا "تسویه" ونیلې شی "خلقنكم ثم صورنكم" (١) او "فاذا سويته" (٢) دا ټول د افعال خلق په زمره کښې وو.
اوس ضرورت وو چې کوم مشین په کوم کار کښې لګول وو نو اودې لګولې شی، د مشین د چالو کولو د پاره د "امر الهی" بجلی پرینبودې شوه او کیدې شی ددې تعلق اسم "باری" سره وی "الخالق البارى المصور" (٣) او حدیث کښې دی "فلق الحبة وبرا النسمة" (٤)
سوره حدید کښې دی "من قبل ان نبراها" (٥) ای النفوس كما هو مروى عن ابن عباس وقتادة والحسن (٦)
مطلب د هغه ځائې نه حکم اوشو چې "ځا" نو فورا روان شو، او دې امر الهی ته نې اوفرمائیل "إِنَّمَآ أَمْرُهُۥٓ إِذَآ أَرَادَ شَيْـًٔا أَن يَقُولَ لَهُۥ كُن فَيَكُونُ" (٧) بل ځائې کښې ډیر په وضاحت سره امر "کن" خلق جسد باندې مرتب کولو سره ارشاد اوشو "خَلَقَهُۥ مِن تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهُۥ كُن فَيَكُونُ" (٨) بلکه د تلاش نه ښکاریږی چې په قرآن کریم کښې "کن فیکون" چې څومره ځایونو کښې راغلې دې عموما د خلق او ابداع ذکر کولو نه پس راغلې دې چې د هغې نه دا خیال کیږی چې کلمه "کن" خطاب د خلق نه پس د تدبیر او تصرف وغیره د پاره وی.
بهرحال د امر معنی دلته د حکم ده او هغه حکم دغه دې چې کوم لفظ کن سره تعبیر کړې شوې دې او لفظ کن جنس کلام نه چې د الله تعالی صفت قدیم دې څنګه چې مونږ د هغه ټول صفات مثلا حیات، سمع، بصر، وغیره بلا کیف منو نو کلام الله او کلمة الله متعلق هم دغه مسلک منل پکار دی.
خلاصه دا شوه چې دروح سره په قرآن کښې اکثر ځایونو کښې د امر لفظ استعمال شوې دې مثلا "قُلِ ٱلرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّى" (٩)

---

(١) الاعراف/١١-
(٢) ص/٧٢-
(٣) الحشر/٢٤-
(٤) صحيح البخارى (٤٢٨/١) كتاب الجهاد والسير باب فكاك الاسير رقم(٣٠٤٧) من قول سيدنا على رضي الله عنه
(٥) الحديد/٢٢-
(٦) انظر الدر المنثور (١٧٦/٦و١٧٧)-
(٧) يس/٨٢-
(٨) ال عمران/٥٩-
(٩) بنى اسرائيل/٨٥-

او ﴿وَكَذٰلِكَ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ رُوْحًا مِّنْ اَمْرِنَا﴾ (۱) او ﴿يُلْقِى الرُّوْحَ مِنْ اَمْرِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ﴾ (۲) او ﴿يُنَزِّلُ الْمَلٰٓئِكَةَ بِالرُّوْحِ مِنْ اَمْرِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖٓ﴾ (۳)

او مخکښې تير شوي دي چې د روح مبدا د الله تعالى صفت قديمه كلام دې چې د صفت علم وحيات لاندې دې، ګويا هم دغه حيثيت لحاظ ساتلو سره "نفخت فيه من روحى" كښې خپل خان طرف ته منسوب كړې دې ځکه چې د كلام او امر نسبت د متكلم او آمر نه د صادر او مصدور وى د مخلوق او د خالق نه وى ځکه "الا له الخلق والامر" كښې ئې امر د خلق مقابله كښې اولګولو(۴) والله اعلم

**قوله: قال الاعمش :هكذا فى قراءتنا:** امام اعمش رحمه الله فرمائى چې زمونږ قراءت كښې هم دغه شان ده.

مطلب دادې چې دې آيت كښې متواتر او مشهور قراءت "وَمَآ اُوْتِيْتُمْ مِّنَ الْعِلْمِ اِلَّا قَلِيْلًا" دې خو د امام اعمش رحمه الله قراءت "وما اوتوا" د صيغه غائب سره دې

شارحينو ښكاره كړې ده چې دا قراءت نه د قراءات سبعو نه دې او نه څه مشهور قراءت دې (۵) والله اعلم بالصواب

## ۴۸: باب: مَنْ تَرَكَ بَعْضَ الِاخْتِيَارِ مَخَافَةَ أَنْ يَقْصُرَ فَهْمُ بَعْضِ النَّاسِ عَنْهُ فَيَقَعُوا فِى أَشَدَّ مِنْهُ

په دې ترجمه كښې د "الاختيار" نه "المختار" يعنى "الشئ المختار" يا "فعل المختار" مراد دې، مطلب د ترجمة الباب دادې:

"دا باب د هغه كس په بيان كښې دې چې خپل بعضې مستحب عمل يا قول ددې وجه پرېږدى چې د بعضې خلقو عقل كم وى نو په دې عمل يا خبره به پوه نه شى بيا به د دې نه په سخته خبره كښې اونخلى(۶)"

**مخكښې باب سره مناسبت:** د دې باب مخكښې باب سره مناسبت دا شان دې چې مخكښې باب كښې د سوال كونكى د سوال جواب د څه حكمت د وجه ورنه كړې شو، دلته هم د بعضې اعمال مختاره او مستحبه د پرېښودلو ذكر دې(۷)

---

(۱) الشورى/۵۲-
(۲) المومن/۱۵-
(۳) النحل/۲-
(۴) الروح فى القران (ص۱۰۸-۱۱۱) مطبوعه در ضمن مجموعه "تاليفات عثمانى"-
(۵) فتح البارى (۱/۲۲۴) وعمدة القارى (۲/۲۰۲)-
(۶) عمدة القارى(۲/۲۰۲)-
(۷) حواله بالا

**د ترجمة الباب مقصد:** د امام بخاری مقصد دادې که چرې یو مستحب عمل کولو د وجه د خلقو په غلط فهمۍ کښې د غورزیدلو ویره وی نو دا مستحب پرېښودل پکار دی.ځکه د مستحب پرېښودلو سره به زیات نه زیات دا اوشی چې اجروثواب به نه ملاویګی.او دخلقو په مسئله کښې غورزیدل ډیره ګرانه ده چې څه عملی یا علمی غلطۍ کښې مبتلا شی او دا غلطی به راروانه وی،چنانچه د نبی کریمﷺ اراده وه چې د ابراهیم(علیه السلام) په شان د کعبې جوړنه اوکړی خو ددې ویرې ئې پرېښوده چې قریش به وائی چې زمونږ څیزونه ورانه وی او خپل څیز ترې جوړه وی.

**د ترجمة الباب مقصد: باندې یو اشکال او د هغې جواب:** دلته یو سوال دا پیدا کیږی چې ددې ترجمة الباب تعلق خو کتاب العلم سره او نه شو ځکه دې کښې خود اعمالو د پرېښودلو ذکر دې.

ددې جواب دادې چې تعلیم څنګه قولی وی دغه شان فعلی هم وی،استاذان عالمان د خلقو هر قسم اصلاح کوی،څنګه چې د هغوی علمونو ته ترقی ورکوی دغه شان د هغوی اعمال هم برابره وی،لهذا که د اعمالو د صحیح کولو ضرورت راشی او اصلاح په عملی صورت کښې د اختیارولو تقاضا کوی او خطره دا وی چې د بعضې اعمال اختیارولو سره موجوده خلق په غلطۍ کښې غورزیدلې شی نو اصلاح کونکوله پکاردی چې هغه داسې مستحب عمل پرېږدی خلاصه دا شوه چې کله تعلیم قولی وی او کله عملی،که عملی تعلیم کښې په یو خاص مسئله کښې دا خطره وی چې خلق به غلط فهمۍ کښې مبتلا شی،نو دا کول نه دی پکار بلکه پرېښودل پکار دی[1]

د بعضې علماؤ د کلام نه دا معلومیږی چې دلته "من ترك بعض الاختيار" کښې اقوالو او افعال دواړه داخل دی.

لهذا مطلب دا شو چې بعضې افعال ددې خطرې د وجه پرېښودلې شی چې څوک په غلط فهمی کښې راګیر نه شی.او بعضې اقوال ددې وجه بیان نه کړې شی چې اوریدونکې به په غلط فهمۍ کښې اوغورزیګی،دواړه پرېښودلې شی، مختار او خوښ چې څنګه افعال وی دغه شان اقوال هم وی.

بعضې علمونه داسې وی چې د عوامو په مخکښې د بیانولو نه وی که بیان کړې شی نو عوام به غلط فهمۍ کښې اوغورزیګی،نو هلته دې چپوالې اوشي.[2]

[۱۲۶] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْأَسْوَدِ قَالَ قَالَ لِي ابْنُ الزُّبَيْرِ كَانَتْ عَائِشَةُ تُسِرُّ إِلَيْكَ كَثِيرًا فَمَا حَدَّثَتْكَ فِي الْكَعْبَةِ قُلْتُ قَالَتْ لِي قَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم - «يَا عَائِشَةُ، لَوْلَا قَوْمُكِ حَدِيثٌ عَهْدُهُمْ - قَالَ ابْنُ الزُّبَيْرِ بِكُفْرٍ - لَنَقَضْتُ الْكَعْبَةَ فَجَعَلْتُ لَهَا بَابَيْنِ بَابٌ يَدْخُلُ النَّاسُ، وَبَابٌ يَخْرُجُونَ» . فَفَعَلَهُ ابْنُ الزُّبَيْرِ _ [۱۵۰۶ـ ۱۵۰۹، ۳۱۸۸، ۴۲۱۴، ۶۸۱۶]

---

[1] الکنز المتواری علی لامع الدراری(۲/۳۸۳)-

[2] حواله بالا

# رجال الحدیث

①عبیدالله بن موسی: دا عبیدالله بن موسی بن باذام عبسی کوفی رحمه الله دي. ددوی حالات د کتاب الایمان: باب الایمان وقول النبی(ص۹: بنی الاسلام علی خمس" لاندې تیر شوي دی[1]

②اسرائیل: دا مشهور محدث اسرائیل بن یونس بن ابی اسحاق همدانی سبیعی کوفی رحمه الله دې دده کنیت ابویوسف دې دوی د عیسی بن یونس رور دي[2]

دوی د خپل نیکه ابواسحاق سبیعی نه علاوه زیاد بن علاقه، زیدبن جبیر، عاصم بن بهدله، عاصم الاحول، سماک بن حرب، امام اعمش، عثمان بن ابی زرعه، مجزاة بن زاهراسلمی، موسی بن ابی عائشه او هشام بن عروه رحمهم الله وغیره نه د حدیث روایت کوی.

دده نه روایت کوونکو کښې دده خوئي مهدی، ابواحمدالزبیری، نضربن شمیل، ابوداود طیالسی، ابوالولید طیالسی، عبدالرزاق صنعانی، وکیع، یحیی بن آدم، محمدبن اسحاق، ابوغسان نهدی، ابونعیم او علی بن الجعد رحمهم الله وغیره ډیر حضرات شامل دی[3]

عیسی بن یونس رحمه الله فرمائی چې ماته اسرائیل بیان اوکړو "کنت احفظ حدیث ابی اسحاق کما احفظ السورة من القرآن"[4]

امام احمد رحمه الله په دده په حافظه حیرانه کیدلو او فرمائیل به ئې "کان شیخنا ثقة"[5]

یحیی ابن معین فرمائی "ثقة"[6]

امام عجلی رحمه الله فرمائی "کوفی ثقة"[7]

ابوحاتم رحمه الله فرمائی "ثقة صدوق من اتقن اصحاب ابی اسحاق"[8]

ابن سعد رحمه الله فرمائی "وکان ثقة حدث عنه الناس کثیرا ومنهم من یستضعفه"[9]

امام احمد رحمه الله نه ابوطالب تپوس اوکړو "ایهما اثبت: شریك او اسرائیل؟" نو وئې فرمائیل "اسرائیل کان یودی ما سمع کان اثبت من شریك" بیا هغوی تپوس اوکړو "من احب الیك: یونس او اسرائیل فی ابی

---

[1] کشف الباری(۱/۶۳۶)-
[2] تهذیب الکمال(۲/۵۱۵) رقم(۴۰۲)-
[3] تهذیب الکمال(۲/۵۱۵-۵۱۸)-
[4] تهذیب الکمال(۲/۵۱۹)-
[5] حواله بالا
[6] تهذیب الکمال(۲/۵۲۱)-
[7] حواله بالا
[8] تهذیب الکمال(۲/۵۲۱)-
[9] الطبقات(۲/۳۷٤)-

اسحاق؟نو وئي فرمائيل: اسرائيل: لانه كان صاحب كتاب.[1]
هر كله چې د امام احمد رحمه الله نه تپوس اوكړې شو كه چرې اسرائيل يو حديث كښې متفرد وى نو حجت دې كه نه؟ نو وئې فرمائيل: اسرائيل ثبت الحديث.[2]
عيسى بن يونس رحمه الله فرمائى چې زمونږ ملګرى سفيان او شريک په مينځ كښې چې كله به د ابواسحاق سبيعى رحمه الله د احاديثو باره كښې اختلاف رالو نو خما والد يونس بن ابى اسحاق طرف ته به راغلو، هغه به وئيل چې خما خوى اسرائيل ته لاړ شئ: فهو اروى عنه منى اتقن لها منى.[3] امام شعبه رحمه الله ته چې كله اووئيلې شو: حدثنا حديث ابى اسحاق قال: سلوعنها اسرائيل فانه اثبت فيه منى.[4]
امام عبدالرحمن بن مهدى رحمه الله فرمائى چې زه د ابواسحاق سبيعى حديثونه د سفيان په طريق سره څكه نه روايت كوم چې ما دې رواياتو سلسله كښې د سفيان ثورى په ځائې په اسرائيل باندې بهروسه كړې ده څكه چې اسرائيل دې رواياتو له پورا روايت كوى.[5]
امام عبدالرحمن بن مهدى رحمه الله فرمائى چې: اسرائيل فى ابى اسحاق اثبت من شعبة والثورى.[6]
يعنى: اسرائيل د ابواسحاق په رواياتونو كښې د شعبه او ثورى رحمهما الله نه زيات قوى دې.
محمد بن عبدالله بن نمير رحمه الله فرمائى: ثقة.[7]
امام ترمذى رحمه الله فرمائى: اسرائيل ثبت فى حديث ابى اسحاق.[8]
اسرائيل بن يونس په باره كښې د محدثينو او د جرح وتعديل علماؤ اقوال ستاسو مخكښې دى دې ټولو حضراتو د دوى پورا توثيق كړې دې خو بعضې حضراتو پكښې په ده باندې كلام هم كړې دې چنانچه: امام يحيى القطان رحمه الله به د ده د ابويحيى القنات نه اخستلې شوې رواياتو په وجه په ده باندې كلام كولو او وئيل به ئې: روى عنه مناكير.[9]
دغه شان يعقوب بن شيبه رحمه الله فرمائى: صالح الحديث وفى حديثه لين.[10]

---

[1] تهذيب الكمال(۲/۵۱۹)-
[2] تهذيب الكمال(۲/۵۲۰)-
[3] تهذيب الكمال(۲/۵۲۲)-
[4] الكامل(۱/٤۲۲)-
[5] الكامل(۱/٤۲۳)-
[6] حواله بالا
[7] تهذيب التهذيب(۱/٦۲۳)-
[8] حواله بالا
[9] تهذيب التهذيب(۱/۲٦۲)-
[10] حواله بالا

دغه شان هغوی فرمائی "ثقة صدوق وليس في الحديث بالقوى ولا بالساقط"[1]
دغه شان ابن حزم رحمه الله اسرائيل ته مطلقا ضعيف ګرځولې دې او دده رواياتو کښې ئې ډير روايات رد کړي دی[2]
دغه شان علی بن المدینی فرمائی "اسرائيل ضعيف"[3]
اسرائيل بن یونس رحمه الله په باره کښې چې دذکر شوې حضراتو په کلام کښې غور اوکړې شی نو معلومیږی چې یا خو جرح مبهم ده ځنګه چې د علی بن المدینی، یعقوب بن شیبه یا د ابن حزم کلام دی،. او ترڅو چې د یحیی القطان رحمه الله د کلام تعلق دې نو حافظ رحمه الله د هغې په باره کښې تفصیل ذکر کړې دې چې هغې سره د اسرائیل لمن بالکل صفا کیږی چنانچه هغوی فرمائی: "وقد بحثت عن ذلك فوجدت الامام ابابكر بن ابي خيثمة قد كشف علة ذلك وابانها بما فيه الشفاء لمن انصف قال ابن ابي خيثمة في تاريخه قيل ليحيى بن معين: ان اسرائيل روى عن ابي يحيى القتات ثلاثمائة وعن ابراهيم بن مهاجر ثلاثمائة يعني مناكير فقال لم يؤت الى منهما"[4]
مطلب دادې چې" ما د امام یحیی القطان رحمه الله د کلام وجه د پیدا کیدلو کوشش اوکړو،. چنانچه ماته دا وجه ذ امام ابوبکر بن ابی خیثمه رحمه الله د کلام نه معلومه شوه، هغوی چې کومه وجه بیان کړې ده د هغې نه هر انصاف خوښوونکې کس مطمئن کیدې شی، چنانچه هغوی فرمائی چې امام یحیی ابن معین رحمه الله ته چا اووئیل چې اسرائیل د ابویحیی القتات نه درې سوه او ابراهیم بن مهاجر نه درې سوه منکر احادیث نقل کړې دی، ابن معین جواب ورکړو چې دا خرابوالې د اسرائیل د وجه نه نه دې بلکه د ابراهیم بن مهاجر او ابویحیی القتات د وجه نه راغلې دې".
حافظ ابن حجر فرمائی: "خبره حقیقت کښې هم دغه ده چې کومه ابن معین رحمه الله فرمائی لهذا د ابن القطان رحمه الله کلام به هم په دې باندې محمول کولې شی چې هغوی په دې احادیثو منکرو باندې نکیر کړې دې چې کوم هغه د یحیی القتات نه نقل کوی، او هغوی دا اوګنړله چې دا خرابوالې د اسرائیل د وجه نه دې، خو واقعه دا ده چې دا خرابوالې د ابویحیی د وجه دې، هسې هم ائمه ناقدینو ابویحیی ضعیف ګرځولې دې او د اسرائیل علماؤ توثیق کړې دې لهذا دلته هم کلام په ابویحیی باندې محمول کول بنه خبره ده په نسبت د اسرائیل"[5]
حافظ ابن حجر رحمه الله د نورو حضراتو د تضعیف باره کښې تبصره کولو سره لیکی:
"وبعد ثبوت ذلك واحتجاج الشيخين به لا يجهل من متاخر لا خبرة له بحقيقة من تقدمه ان يطلق على اسرائيل الضعف ويرد الاحاديث الصحيحة التي يرويها دائما، لاستناده الى كون القطان كان يحمل عليه من غير

---

[1] تهذيب التهذيب(۲۶۲/۱)-
[2] تهذيب الكمال(۲۶۳/۱)-
[3] تهذيب الكمال(۵۲۲/۲)-
[4] هدى السارى(ص ۳۹۰)-
[5] هدى السارى(ص ۳۹۰)-

ان يعرف وجه ذلك الحمل.(١)

مطلب دادې چې کله دجرح او تعديل علماؤ توثيقات مخښې ته راغلل اود شيخينو د دوی نه احتجاج هم ثابت شو نو يو داسې متاخر سړې د پاره چې هغه ته د خپلو متقدمينو په باره کښې پوره علم نه وی نو هغوی باندې د ضعف اطلاق کول او په دې بنياد باندې د هغوی صحيح روايات رد کول بالکل نا مناسبه دد. په دې سلسله کښې د ابن القطان د قول نه استناد هم فائده مند نه دې هرکله چې هغه د ابن القطان د قول صحيح محمل نه پيژنی.

حافظ ذهبی هم ډير په زور دار انداز سره د هغوی دفاع کړې ده چنانچه ونې فرمائيل:

"اسرائيل اعتمده البخاری ومسلم فی الاصول وهو فی الثبت کالاسطوانة فلا يلتفت الى تضعيف من ضعفه".(٢)

يعنی په اسرائيل باندې امام بخاری او امام مسلم رحمه الله په اصولو کښې احتجاج کړې دې نه چې په متابعاتو او فروعو کښې، هغوی په ثقه او ثبت کيدلو کښې د اسطوانه(ستنې) په شان دې لهذا دوی ضعيف ګڼړلو والا کلام ته بالکل توجه پکار نه ده.

دغه شانه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی "ثقة تکلم فيه بلاحجة".(٣)

دغه شان حافظ صاحب فرمائی:

"وسماع اسرائيل من ابی اسحاق فی غاية الاتقان للزومه اياه لانه جده وکان خصيصا به".(٤)

يعنی د اسرائيل د ابواسحاق نه سماع ډيره مضبوطه ده ځکه چې هغه به هر وخت ابواسحاق سره وو، او ځکه چې هغه د هغوی نيکه وو او هغه سره خاص کړې شوې وو.

ابن عدی د دوی يو څو روايات چې منکر به ګڼړلې کيدل، د نقل کولو نه پس ليکی: "واسرائيل بن يونس بن ابی اسحاق السبيعی کثير الحديث مستقيم الحديث فی حديث ابی اسحاق وغيرهم وقد حدث عنه الائمة، ولم يتخلف احد فی الرواية عنه وهذه الاحاديث التی ذکرتها من انکر احاديثه رواها وکل ذلک يحتمل".(٥)

يعنی "اسرائيل بن يونس کثير الحديث او دهغوی روايات اګر چې د ابواسحاق نه وی يا د بل نه، ټهيک دی، دده نه لوئې لوئې امامانو راويت کړې دې، چا د هغه د رواياتو نه انکار نه دې کړې، دا حديثونه چې کوم ما ذکر کړل دده د منکرترين رواياتو نه ګڼړلې شی خو حقيقت دادې چې دا هم اخستلې شی.

دغه شان هغوی مخکښې فرمائی: "وسائر ما ذکرت من حديثه ومالم اذکره کلها محتملة وحديثه عامتها مستقيمة وهو من اهل الصدق والحفظ".(٦)

(١) حواله بالا

(٢) ميزان الاعتدال(٢٠٩/١)-

(٣) تقريب التهذيب(ص ١٠٤) رقم(٤٠١)-

(٤) فتح الباری (٣٥١/١) کتاب الوضوء باب:اذا القی علی ظهر المصلی قذر او جيفة لم تفسد عليه صلاته)-

(٥) الکامل(٤٢٥/١)-

(٦) الکامل لابن عدی(٤٢٦/١)-

يعني ددوی تول احاديث کوم چه ما ذکر کړل يا مې نه دی ذکرکړی تول د قبلولو قابل دی. ددوی اکثر احاديث صحيح دی، دې په صدق او حفظ سره د متصف رواتو ځينې دې.

دغه شان هغوی فرمائی: "ولاسرائيل اخبار كثيرة غير ما ذكرته واضعافها عن الشيوخ الذين يروی عنهم وحديثه الغالب عليه الاستقامة وهو ممن يكتب حديثه ويحتج به"(١)

يعني"د اسرائيل چې کوم راويات ما ذکر کړل د دې نه علاوه ډير اجاديث دی بلکه د دې نه څو چنده زيات روايات هغه د خپل شيوخو نه نقل کوی.ددوی ډير احاديث ټهيک دی او هغوی د هغه راويانو نه دې د چا احاديث چې ليکلې شی او د چا د رواياتو نه چې استدلال او احتجاج کيږی"

اسرائيل بن يونس رحمه الله ۱۰۰هجرئی کښې پيدا شوې وو،او ۱۶۰ه يا ۱۶۱ه يا ۱۶۲ه کښې د هغوی انتقال اوشو(٢)،رحمه الله تعالى رحمة واسعة

③**ابواسحاق**:دا مشهور تابعی ابواسحاق عمروبن عبدالله بن عبيدسبيعی کوفی رحمه الله دې،د دوی حالات د "كتاب الايمان"باب الصلوة من الايمان" د لاندې تير شوې دی(٣)

④**الاسود**:دا مشهور تابعی اسودبن يزيدبن قيس نخعی کوفی رحمه الله دې،د دوی کنيت ابوعمرو يا ابوعبدالرحمان دې(٤)

دوی د عبدالرحمن بن يزيد رور،د علقمه بن قيس وراره او ابراهيم نخعی ماما دې دوی په عمر کښې د خپل ترۀ نه زيات وو،(٥)

دوی د ابوبکرصديق،حضرت عمر، حضرت علی،حضرت عبدالله بن مسعود، حضرت حذيفه، حضرت بلال، حضرت عائشه، حضرت ابومحذوره او حضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنهم وغيره نه د حديثو روايت کړې دې،

د دوی نه روايت کوونکو کښې دده څوئې عبدالرحمن، رور عبدالرحمن بن يزيد، وراره ابراهيم نخعی، عمارة بن عمير، ابواسحاق سبيعی، ابوبرده بن ابی موسی، محارب بن وثار او اشعث بن ابی الشعثاء رحمهم الله وغيره دی(٦)

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی"ما بالعراق رجل اكرم علی من الاسود"(٧)يعنی"په عراق کښې ځما په نيز د اسود نه څوک زيات قابل د احترام نشته"

---

(١) حواله بالا

(٢) تهذيب الكمال(٢/٥٦٤)-

(٣) كشف البارى(٢/٣٧٠)-

(٤) تهذيب الكمال(٣/٢٣٣)-

(٥) تهذيب الاسماء واللغات(١/١٢٢)-

(٦) تهذيب الكمال(٣/٢٣٣-٢٣٤)-

(٧) طبقات ابن سعد(٦/٧٣)-

عمارة بن عمیر رحمه الله فرمائی "ماکان الاسود الا راهبا من الرهبان"[1] یعنی د اسود د عبادت گزارئ او د دنیا نه مخ اړولو دا حالت وو گویا چې هغه د دنیا پرېښودونکو راهبانو نه وو.

امام عجلی رحمه الله فرمائی "کوفي جاهلي، ثقة، رجل صالح"[2]

یعنی دې د کوفې دې. دجاهلیت زمانه ئې کتلې ده، ثقة او نیک سړې دې.

ابراهیم نخعی رحمه الله دوی لره د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په هغه شاگردانو او ملگرو کښې شمیر کړې دې چاته چې د فتوی ورکولو اجازت وو[3]

امام ابن حبان فرمائی "کان فقیها زاهدا"[4]

امام احمد رحمه الله فرمائی "ثقة من اهل الخیر"[5] امام یحیی رحمه الله فرمائی "ثقة"[6]

امام نووی رحمه الله لیکی: قال احمد بن حنبل: هو ثقة من اهل الخیر واتفقوا على توثیقه وجلالته"[7]

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی "وهو نظیر مسروق في الجلالة والعلم والثقة والسن یضرب لعبادته المثل"[8]

ابن سعد رحمه الله فرمائی "وکان ثقة وله احادیث صالحة"[9]

اسود بن یزید رحمه الله عابد، زاهد او شپه رنړونکې بزرگ وو، ددوی د عبادت دا شان وو چې په رمضان کښې به په دوو شپو کښې او په غیر رمضان کښې به په شپږو شپو کښې د قرآن ختم کولو عادت وو، او روزانه به ئې اووه سوه رکعاته کول[10]

په دې هم خلقو وئیل چې اسود په خپل خاندان کښې د ټولو نه کم عبادت کوونکې گڼړلې شو[11]

او دغه وجه ده چې خلقو به وئیل "آل الأسود اهل الجنة"[12] یعنی د اسود خاندان والا جنتیان دی.

د اسود بن یزید دوفات په سلسله کښې د علماؤ نه ډیرې خبرې منقول دی خو بیا هم حافظ ذهبی فرمائی چې د ټولو نه راجح کار د ۷۵ه دې[13] رحمة الله تعالی رحمة واسعة.

---

[1] تعلیقات تهذیب الکمال(۲۳۵/۳)-
[2] تهذیب التهذیب(۳٤۳/۱)-
[3] حواله بالا
[4] الثقات لابن حبان(۳۱/٤)-
[5] تهذیب الکمال (۲٤٤/۳)-
[6] حواله بالا
[7] تهذیب الاسماء واللغات(۱۲۲/۱)-
[8] سیر اعلام النبلاء(٥۰/٤)-
[9] طبقات ابن سعد(۷٥/٦)-
[10] سیر اعلام النبلاء(٥۱/٦)-
[11] تهذیب الاسماء واللغات(۱۲۲/۱)-
[12] عمدة القاری(۲۰۲/۲)-
[13] سیراعلام النبلاء(٥۳/٤)-

⑤ابن الزبیر:دا حضرت عبدالله بن الزبیر بن العوام رضی الله عنهما دي، ددوی حالات روستو باب اثم من کذب علی النبي ﷺ د لاندې تیر شوي دی.
⑥عائشه:دا ام المومنین صدیقه بنت صدیق حضرت عائشه بنت ابوبکر الصدیق رضی الله عنهما ده، ددوی حالات د بدء الوحی د دویم حدیث لاندې مختصر راغلي دی[1]

**قوله: قال: قال لي ابن زبیر: کانت عائشة تسر الیك کثیرا فما حدثتك في الکعبة؟**:اسود فرمائی چې ابن زبیر رضی الله عنه ماته اوفرمائیل چې حضرت عائشه رضی الله عنها به تاته ډیر د راز خبرې کولې،هغوی تاسو ته د کعبې په باره کښې څه اوفرمائیل؟

حضرت عبدالله بن الزبیر د حضرت عائشه رضی الله عنها خوریې وو.او هغوی سماع هم کړې وه.بیا به اسود بن یزید رحمه الله به د حضرت عائشه رضی الله عنها علوم حاصولولو د پاره ډیر هغوی طرف ته تلو راتلو،څکه به ئې هغه ته ډیرې خبرې د خلقو په غیر موجودګۍ کښې کولې،او غالباً هم په دې خصوصیت سره حضرت ابن الزبیر رضی الله عنه تسر الیك کثیرا: فرمائیلي دی.

عبدالله بن زبیر رضی الله عنه چې د اسود رحمه الله نه تپوس اوکړو نو دا د هغه وخت خبره ده چې کله عبدالله بن زبیر د کعبې د نوې جوړیدلو اراده کړې وه،صورت دا شو چې یزید بن معاویه د طرف نه د حصین بن نمیر یو غټ لښکر د عبدالله بن الزبیر د ښکته کولو د پاره مکې طرف ته راروان شو،محرم ۶۴ هجرئې په آخره کښې مکې ته راورسیدو تقریبا ۶۴ اورځې ئې محاصره اوکړه د هغې نه پس چې کله د یزید مرګ واقع شو نو دا لښکر واپس لاړلو،د یزید نه پس د هغه خوې معاویه بن یزید خلیفه شو،چې څلور میاشتې پس مړ شو،بیا مروان حاکم جوړ شو لس میاشتې ژوندې وو هغه هم مړ شو،دهغې نه پس د هغه څوې عبدالملک بن مراون خلیفه جوړ شو او هغه بیا په ټولو ښارونو رو قبضه اوکړه او مکه مکرمې ته ئې حجاج بن یوسف ثقفي اولیږلو،هغه عبدالله بن الزبیر رضی الله عنه شهید کړلو او دغه شان په بیت الله شریف او مکه مغظمه باندې د عبدالملک قبضه اوشوله،

د اهل شام دې حملې دوران کښې هغوی د بیت الله شریف نه ګیرچاپیره په دیوالونو باندې منجنیق لګولو سره کاڼړی او اور اوورولو،چې د هغې نه کعبې تعمیر او غلاف ته نقصان اورسیدلو.

چې کله دحصین بن نمیر محاصره ختمه شوه او عبدالله بن زبیر ته لګ آرام میلاؤ شو نو هغوی د کعبې د نوې جوړیدلو اراده اوکړله او دې سلسله کښې ئې مشورې اوکړې بعضې خوددوی هم خیال وو خو د ډیرو حضراتو رائې وه چې بیت الله دې په خپل حال پرېښودې شی.
د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما هم دا رائې وه او د دغه خلقو وینا وه چې د کوم عمارت د اطرافو نه حضوراکرم ﷺ طواف اوکړو او چې په کومه د هغوی نظر پریوتلو نو په هغې کښې د تبدیلی او نکړی شی،بلکه صحیح والې او مرمت دې اوکړې شی.

[1]) کشف الباری(۲۹۱/۱)-

خلقو ته چې کله ویره اوشوه نو عبدالله بن زبیر په خپله لاس کښې کوداله واخستله او بره اوختلو او په خپل لاس ئې کانړې راغورزول شروع کړل، چې کله خلقو اوکتل چې هغوی ته څه نقصان اونه رسیدلو نو نور ورسره هم شامل شول د هغې نه پس ئې کعبة الله د بنیاده پورې اوکنستلو، او د حضرت ابراهیم علیه السلام بنیادونه تلاش کړې شول چې میلاؤ هم شول، حضرت ابن الزبیر هم د هغې مطابق تعمیر اوکړلو[1]

حضرت ابن الزبیر خو چونکه صرف خپل تائید مقصود وو څکه ئې د اسودبن یزید رحمه الله نه تپوس اوکړو چې حضرت عائشه رضی الله عنها څه بیان کړې وو؟

چنانچه ابن الزبیر د کعبې جوړیدل د حضورپاک ﷺ په خوښه باندې اوکړل، دروازې ئې لاندې کړې، دوه دروازې ئې کړې او د حطیم حصه ئې د کعبې په جوړولو کښې دننه واخستله.

د حضرت عبدالله بن الزبیر رضی الله عنه نه پس هر کله چې د عبدالملک د سپه سالار حجاج بن یوسف غلبه اوشوه نو هغه د عبدالملک په حکم سره بیت الله شریف وران کړو او دوباره ئې د قریشو د جوړولو مطابق کړو.

عبدالملک بن مروان ته د حضورپاک ﷺ ارشاد نه وو رسیدلې روستو چې هغه ته علم اوشو نو افسوس ئې اوکړو او وئې وئیل "وددنا انا ترکناه وما تولى من ذلك" یعنی کاش چې مونږ کعبه چې څنګه عبدالله ابن زبیر رضی الله عنه کړې وه، هم هغه حال کښې مو پریښودې وه!

روستو بیا عباسی خلیفه مهدی د امام مالک سره مشوره اوکړه چې کعبه بیا د سره د عبدالله ابن الزبیر د تعمیر مطابق جوړه کړی، امام مالک ډیر حکیمانه مشوره ورکړه او وئې فرمائیل "انی اکره ان یتخذها الملوك لعبة" یعنی ماته دا اندازه ده چې بادشاهان او مالداران به بیت الله شریف د لوبو څیز اوګنړی چې یو ته د ابن الزبیر تعمیر خوښ رازی او بل ته به د حجاج، او دریم ته به یو بل صورت خوښ راتلې شی، دغه شان به کعبې نه د لوبو چیز جوړ شی. چنانچه خلیفه مهدی خپله اراده ختمه کړه[2]

**قوله: قلت: قالت لی:** ما ورته اوئې (اسود بن یزید اوونئیل) چې ماته حضرت عائشه رضی الله عنها دا بیان کړې دې.

د ابن ابی شیبه رحمه الله روایت دې "قلت: لقد حدثنی حدیثا کثیرا انسیت بعضه وانا اذکر بعضه قال: ای ابن الزبیر ما نسیت اذکرتك قلت: قالت"[3]

مطلب دادې چې اسود فرمائی چې حضرت عائشه رضی الله عنها ماته ډیر حدیثونه واورول، په هغې کښې بعضې ماته څه یاد دی او څه ما هیر کړې دی ابن الزبیر رضی الله عنه ورته اوفرمائیل چې ته وایا، چې څه هیره وې زه به درته یادوم بیا اسود دا ذکر شوې حدیث ذکر کړو.

---

[1] الکامل فی التاریخ (۳/۳۱۶-۳۵۴) والبدایة والنهایة (۸/۲۵۰-۳۵۱) صحیح مسلم کتاب الحج باب نقض الکعبة وبنائها رقم(۳۲۴۵) وفتح الملهم(۳/۳۶۴-۳۶۶)-

[2] البدایة والنهایة[۸/۲۵۰]-

[3] انظر فتح الباری(۱/۲۲۴)-

**قوله: قال النبي ﷺ :يا عائشه لولا قومك حديث عهدهم:** حضورپاک ﷺ اوفرمائيل چې اې عائشة!كه چرې ستا قوم(قريش) نوې مسلمانان شوې نه وې،

حديث عهدهم: كښې په حديث باندې تنوين دې او په عهدهم كښې عهد مرفوع دې چې د "حديث" صفة مشبه فاعل دې.([1])

**قوله: قال ابن الزبير بكفر:** ابن زبير ﷺ اوفرمائيل يعنى د كفر زمانه اوسه پورې لاتيره شوې نه ده،

حضرت ابن الزبير چې دلته راتلو سره د "بكفر" كومه لقمه وركړه نو د هغې څه مطلب دې؟

علامه كرمانى صاحب فرمائى چې ددې مطلب يا خو دادې چې كله "حديث عهدهم" پورې اسود اورسيدلو نوابن الزبير "بكفر" وئيلو سره دحديث دباقى حصې د ختميدلو طرف ته اشاره اوكړله، يا دا مطلب دې چې اسود اول حديث بيانولو سره د آخر حديث طرف ته اشاره اوكړله،او دا دغه شان ده څنګه چې وئيلې شى "قراءت الم ذلك الكتاب" يعنى ما "الم ذلك الكتاب" وئيلې دې،چې د هغې مقصد د پوره سورة د وئيلو خبر وركوى،چې كله اسود د حديث اوله حصه اووئيله نو ابن الزبير ورته اوفرمائيل چې ددې آخرى حصه دا ده.([2])

خو نزدې خبره داده چې كله اسود "لولا قومك حديث عهدهم" پورې حديث اوفرمائيلو نو دهغه د مخكښې لفظ په باره كښې څه شک شان اوشو هغوى په دې باندې اونختل،ابن الزبير دې موقع كښې اووئيل چې مخكښې لفظ "بكفر" دې دا لفظ هغوى ته ياد نه وو.

پاتې شو ددې نه مخكښې مضمون نو په هغې كښې دوه احتماله دى كيدې شى چې مخكښې مضمون اسود ته ياد نه وى او ابن الزبير وئيلې وى،او دا هم كيدې شى چې اسود ته هغه حصه ياده وى او هم هغوى دا وئيلى وى.

**ايا په دې روايت كښې ادراج دې؟:** دا روايت مستخرج اسماعيلې كښې دې په هغې كښې دى چې اسود اووئيل "حدثتنى حديثا حفظت اوله ونسيت آخره" اسماعيلى هغې لره د "زهير بن معاوية عن ابى اسحاق" په طريق سره نقل كړې دې اودا ئې د اسرائيل د باب په روايت باندې غوره ګرځولې دې([3])

د اسماعيلى ددې روايت نه د ړومبى احتمال ستائننه كيږى چې اسود صرف اوله حصه واوروله، آخره حصه ئې واوروله نه،څكه چې هغه ورته ياده نه وه.

خو هم دا اسود روايت مخكښې مصنف په كتاب الحج([4])او كتاب التمنى([5])كښې نقل كړې

---

[1]) فتح البارى(۲۲٤/۱)-
[2]) شرح الكرمانى(۱۵۲/۲)-
[3]) فتح البارى(۲۲۵/۱)-
[4]) صحيح البخارى(۲۱۵/۱)كتاب الحج باب فضل مكة وبنيانها رقم(۱۵۸٤)-
[5]) صحيح البخارى(۱۰۷۵/۲-۱۰۸٦) كتاب التمنى باب ما يجوز من اللو رقم(۷۲٤۳)-

دي،په دي كښې تول روايت د اسود نه مروى دي، دغه شان صحيح مسلم[1] سنن نسائي[2] او جامع ترمذى[3] كښې هم دغه روايت د اسود بن يزيد نه منقول دي او په دې تولو كښې مكمل حديث هم دده نه منقول دي البته په دې تولو كښې د "بكفر" په ځائې "بالجاهلية" لفظ دي. ددې نه د دويم احتمال تائيد كيږى چې اسود ته پوره روايت ياد وو او هم هغوى پوره روايت نقل كړې دې.

كه د اسماعيلي روايت صحيح اوګنړلې شي نو ونيلې به شي چې د اسود په نورو رواياتو كښې ادراج دې يعني يو حصه يو رواى د اسود نه واوريده او نقل ئې كړه او دويمه حصه د ابن الزبير نه روايت شوې ده چې هغه يو راوى په ادراج سره نقل كړې ده.

كه د اسماعيلى روايت صحيح اونه ګنړلې شي يا دا اوونيلې شي چې "نسيت آخرة" صرف يو نيمه كلمه ده پورا باقى حصه نه ده نو بيا به دا ونيلې شي چې تول روايت هم اسود نقل كړې دې او دا هم دهغه د مروياتو نه دې[4] والله اعلم

**قوله: لنقضت الكعبة فجعلت لها بابين باب يدخل الناس وباب يخرجون ففعله**

ابن الزبير: نو ما به كعبه غورزولې وه بيا به ما دهغې دوه دروازې جوړې كړې وې په يو دروازه به خلق داخليدل او په يو دروازې به خلق وتل، چنانچه ابن الزبير هم دغه شان اوكړل.

د ابوذر په نسخه كښې دلته دواړو ځايونو كښې "بابا" منصوب واقع شوې دې نو په دې صورت كښې به دا د "بابين" نه بدل اوګرزولې شي.

او باقى تولو نسخو كښې "باب" د رفع سره دې چې په استيناف باندې محمول دې[5] والله اعلم

**د حديث باب د ترجمة الباب سره مطابقت:** د حديث باب د ترجمة الباب سره مطابقت بالكل واضح دې چونكه قريش د كعبې شريفې په سلسله كښې ډير حساس او د هغې ډير عزت كوونكې وو او چونكه هغوى نو مسلم وو اسلام ته نوې نوې راغلې وو، نو دهغوى په زړه كښې دا خيال راتلې شو چې حضور ﷺ د كعبې په تعمير كښې چې بدلې راوستلو نو ددې د پاره چې د قريشو د پاسه هغوى ته اوچتوالى حاصل شى او ددې نه بيا فتنه جوړيدلې شوه، نو حضور ﷺ د دغې ويرې د وجه دا كار پريښودلو.[6] والله أعلم

---

[1]) صحيح مسلم كتاب الحج باب جدر الكعبة وبابها رقم(۳۲۴۹)-
[2]) سنن نسائى كتاب المناسک باب بناء الكعبة رقم(۲۹۰۵)-
[3]) جامع الترمذى ابواب الحج باب ما جاء فى كسر الكعبة رقم(۸۷۵)-
[4]) فتح البارى(۲۲۵/۱)-
[5]) فتح االبارى(۲۲۵/۱)-
[6]) حواله بالا

## ۴۹-باب: مَنْ خَصَّ بِالْعِلْمِ قَوْمًا دُونَ قَوْمٍ كَرَاهِيَةَ أَنْ لَا يَفْهَمُوا

دا باب د هغه کس په باره کښې دې چې علم يو جماعت سره خاص کوی، بل جماعت ته هغه علم نه ښائی. ددې ويرې چې دا دويم جماعت پوه نه شی. دلته "دون" د غير په معنی باندې دې د "ادون" په معنی کښې نا[۱]

**مخکښې باب سره مناسبت:** د دې باب مناسبت مخکښې باب سره ډير واضح دې چې په مخکښې باب کښې د خلقو د کم فهمۍ په وجه بعضې اعمال مختاره، مستحبه او امور مباحه پريښودل ذکر وو، او په دې باب کښې هم د دغې ويرې نه څه خلقو ته علمی خبرې نه ښودل مذکور دی، [۲]

**مقصد د ترجمة الباب او مخکښې باب کښې او دې باب کښې فرق:** امام بخارى رحمه الله ددې باب نه دا فرمائيل غواړی چې د حاضرينو د پوهې په اعتبار سره خبره کول پکار دی او د هغوی د عقل او پوهې په اعتبار سره وئيل پکار دی، داسې خبره کول پکار نه دی چې د هغوی د سوچ د دائرې نه باهر وی او هغوی څه غلط فهمی کښې مبتلا شی، لهذا که څه پټ علوم وی چې د هر چا په مخکښې د بيانولو نه وی نو هغه د هر چا په مخکښې بيانول پکار نه دی، بلکه چې څوک ددې اهل وی عقل مند وی د هغی مخکښې دې بيان کړې شی، دغه شان که يو سړې يو خاص جماعت ته علم اوښائی نورو ته ئې اونه ښائی ددې ويرې چې هغوی به پوهه نه شی، نو په دې کښې هيڅ گناه نشته، دا جائز دی.

حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائی چې ددې باب مقصود دادې که يو شيخ يو عقل مند شاگرد ته يا يو مخصوص جماعت ته په مخصوص وخت څه د علم حاصلولو موقع ورکړی او نورو ته ور نکړی نو ددې اجازت دې او دا کتمان علم کښې نه راځی، او نه نورو له په دې باندې د اعتراض حق دې، چنانچه وئيلې شی چې د امام ابوحنيفه رحمه الله به دوه مجلسونه کيدل يو به عام مجلس وو او بل مجلس کښې به صرف علماء او حافظان حاضريدل. [۳]

دلته دا هم معلوميدل پکار دی چې اولنې ترجمة الباب عام دې چې اقوال او افعالو دواړو ته شامل دې، او دا باب اقوالو سره خاص دې [۴]

حضرت انورشاه کشميری صاحب رحمه الله فرمائی چې ددې باب د ترجمه تعلق د شريف او وضيع په مينځ کښې فرق سره دې او د مخکښينۍ ترجمې تعلق د غبی او بليد، او د ذکی او فطين په مينځ کښې فرق سره دې [۵]

حاصله دا ده چې حضرات علماء کرامو لره د علمی يا يو مسئلې د بيان په وخت کښې د

---

[۱] فتح البارى(۱/۲۲۵) وعمدة القارى(۲/۲۰٤)-
[۲] عمدة القارى(۲/۲۰٤)-
[۳] الكنز المتوارى(۲/۳۸۵)-
[۴] فتح البارى(۱/۲۲۵)-
[۵] فيض البارى(۱/۲۲۳)-

حاضرینو خیال ساتل پکار دی. که عقل نه لرونکی او غبی بلید قسم خلق وی نو د هغوی مخکښې دې علمی او باریکې مسئلې بیان نه کړې شی، دغه شان د شریف او وضیع په مینځ کښې د فرق هم خیال او ساتلې شی،
دغه وجه ده چې علماء کرام خاص خاص څیزونه بیانول نه خوښه وی مثلا امام احمد ابن حنبل به ددې احادیثو بیانول نه غوښتل چې د هغې نه به "خروج علی السلطان" یعنی "سلطان المسلمین" خلاف د بغاوت مضمون معلومیدلو(۱)
امام مالک رحمه الله به احادیث صفات بیانول نه غوښتل(۲)
امام ابویوسف رحمه الله فرمائی "من تتبع غریب الحدیث کُذب"(۳)
د امام ابوحنیفه رحمه الله نه هم دا قسم قول منقول دې(۴)
حضرت ابوهریره رضی الله عنه د حضورپاک ﷺ نه د علم دوه لوښی اغستلې وو چې هغې کښې یو لوښې هغوی په خلقو کښې خور کړو او دویم ئې بیان نه کړو(۵)
حضرت انس بن مالک چې کله د حجاج ابن یوسف په مخکښې د عرنیینو حدیث بیان کړو نو حسن بصری دا خوښ نه کړلو ځکه حجاج ابن یوسف دې حدیث لره د وینې توېولو ذریعه جوړه کړه(۶)
په دې سلسله کښې ضابطه دا ده چې کوم ځائې مراد نه وی او د ظاهر حدیث نه بدعت ته طاقت میلاویګی نو په داسې موقعو کښې حدیث پټول پکار دی چې اوریدونکې به صرف په ظاهر باندې عمل شروع کړی(۷)

[۱۲۷] وَقَالَ عَلِيٌّ حَدِّثُوا النَّاسَ بِمَا يَعْرِفُونَ، أَتُحِبُّونَ أَنْ يُكَذَّبَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ

حضرت علی رضی الله عنه فرمائی چې خلقو ته "د دین" هغه خبرې وراوښایئ چې په کومو هغوی پوهیږی، آیا تاسو دا غواړئی چې الله او د هغه رسول او نه منلې شی؟
په الله او په رسول به ځکه دروغ وئیلې کیږی چې دا خبره د هغوی په عقل راغلې هم نه ده، دا د هغوی د پوهې د دائرې نه بهر ده نو هغوی به دا ناممکن ګڼړی او انکار به کوی، که دغه خبره الله طرف ته منسوب وی نو دا الله تعالی باندې به دروغ اوئیلې شی او که حضورپاک ﷺ طرف ته منسوب وی نو د هغوی به تکذیب لازم راځی.

(۱) فتح الباری(۱/۲۲۵)-
(۲) حواله سابقه
(۳) المحدث الفاضل بین الراوی والواعی(ص۵۶۲) فقره(۷۶۹) الکفایة فی علم الروایة(ص۱۴۲) جامع بیان العلم وفضله (۲/۱۰۳۳) رقم (۱۹۸۶)-
(۴) فتح المغیث للسخاوی(۴/۱۰)-
(۵) صحیح البخاری(۱/۲۳)کتاب العلم باب حفظ العلم رقم(۱۲۰)_
(۶) فتح الباری(۱/۲۲۵)-
(۷) حواله بالا

د آدم ابن ابی ایاس په کتاب "کتاب العلم" او د ابونعیم د "مستخرج" په روایاتو کښې نوره هم اضافه ده "ودعوا ماینکرون" (۱) یعنی چې کوم معروف نه وی او د چا په پوه کښې چې شک وی نو هغه پریږدئی"
ددې اثر نه دا معلومیږی چې متشابهات د عام خلقو په مخکښې بیانول پکار نه دی.
د حضرت عبدالله بن مسعود ارشاد دې "ما انت بمحدث قوما حدیثا لا تبلغه عقولهم الا کان لبعضهم فتنة" (۲) یعنی "هر کله چې تاسو چاته یو داسې حدیث وراوروئی چې کوم خائې ته د هغوی عقل نه رسیږی نو د هغه د پاره به دا د امتحان ذریعه جوړیږی"
دغه شان حضرت عروه رحمه الله فرمائی "ما حدثت احدا بشیء من العلم قط لم یبلغه عقله الا کان ضلالا علیه" (۳) یعنی "چې ما کله هم چا سره د هغه د عقل نه اوچته خبره کړې ده نو هغه د هغه د پاره په غلطئ او گمراهئ کښې د غورزیدلو وجه جوړه شوه"
حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی "لقد حدثتکم باحادیث لوحدثت بها زمن عمر لضربنی بالدرة" (۴) یعنی "ما تاسو ته هغه احادیث اوروليې دی که چرې ما د حضرت عمر رضی الله عنه په دور کښې دا احادیث اوروليې وو نو هغوی به خما په درې سره خبر اخستلې"

**قوله: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى عَنْ مَعْرُوفِ بْنِ خَرَّبُوذٍ عَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ عَنْ عَلِيٍّ بِذَلِكَ:** دا د حضرت علی رضی الله عنه د ذکر شوی اثر سند دې د ابوذر په روایت کښې سند د نور کله په شان مخکښې دې، او د کشمینی په روایت کښې دا ټول اثر سره د سنده غورزیدلې دې او د باقی حضراتو په نسخو کښې اول متن دې او روستو سند ذکر دې (۵)

**متن په سند باندې د مخکښې والی څه وجه ده؟:** علامه کرمانی رحمه الله ددې ډیرې نکتې ذکر کړې دی یو دا چې حدیث مرفوع او په اثر د صحابی کښې د فرق ظاهرولو دپاره ئې داسې کړې دی.
دویمه وجه دا هم ممکنه ده چې امام بخاری دې اثر لره د ترجمه جز جوړول غواړی، ځکه ئې د سند نه مخکښې متن ذکر کړو.
دریمه احتمال لرونکې وجه دا بیان کړې ده چې چونکې په دې سند کښې معروف بن خرّبوذ ضعیف دې، نو د دې ضعیف راوی د ضعف د وجه دا فرق کړې شوې دې.
یا مقصود تفنن او تنوع دې څه بل زیاتی کار په نظر کښې نشته (۶)

---

(۱) فتح الباری (۲۲۵/۱)-
(۲) مقدمة صحیح المسلم باب نهی عن الحدیث بکل ما سمع رقم(۱۳) وجامع بیان العلم وفضله(۵۳۹/۱) رقم(۸۸۸)-
(۳) جامع بیان العلم وفضله(۵۳۹/۱)رقم(۸۸۹)-
(۴) جامع بیان العلم وفضله(۱۰۰۳/۲) رقم(۱۹۱۳)-
(۵) فتح الباری(۲۲۵/۱)-
(۶) شرح الکرمانی(۱۵۵/۲)-

# رجال الحديث

①**عبيدالله بن موسى:** دا عبيده الله بن موسى باذام عبسى كوفى رحمه الله دي ددوى حالات د "كتاب الايمان وقول النبى صلى الله عليه وسلم: بنى الاسلام على خمس" د لاندې تير شوي دى[1]

②**معروف ابن خرّبوذ:** دا معروف بن خربوذ (بفتح الخاء المعجمة وتشديد الراء المفتوحة بعدها باء موحدة مضمومة وبعدها واو ساكنة وآخره ذال معجمة) مكى مولى عثمان دې[2] ددوى شمير صغارتابعينو كښې كيږى[3]

دوى د حضرت ابوالطفيل عامر بن واثله ليثى رضي الله عنه، عبدالله بن بريده (ان كان محفوظا)، ابوجعفرمحمدبن على بن حسين، محمدبن عمربن عتبه او ابوعبدالله مولى ابن عباس رحمهم الله نه روايت نقل كوى.

دده نه روايت كوونكو كښې ابوداود طيالسى، ابوعاصم النبيل، عبيدالله بن موسى، فضل بن موسى سينانى، وكيع بن الجراح او ابوبكر بن عياش وغيره حضرات دى[4]

امام ابن معين فرمائى "ضعيف"[5]

امام احمد رحمه الله فرمائى "ما ادرى كيف حديثه؟"[6] يعنى ماته معلومه نه ده چې د هغوى حديثونه د كومې درجې دى؟

امام عقيلى رحمه الله دوى په كتاب الضعفاء كښې ذكر كړې دى او وئيلې دى "لايتابع على حديثه ولا يعرف الابه"[7]

ابن حبان رحمه الله په خپل كتاب "الضعفاء" كښې نقل كړې دى چې دده به كتابونه اخستل او د هغې نه به ئې احاديث بيانول، روستو د هغه حافظه كمزورې شوې وه چنانچه بيا به ئې توهم سره روايت كولو[8]

خو حافظ رحمه الله فرمائى چې د معروف بن خربوذ په روايت كښې دا خبره نه معلوميږى، ممكنه ده چې ابن حبان د بل چا حالات ده هغه نوم سره او ترجمې لاندې ذكر كړې وى[9]

---

[1]) كشف البارى (۱/۶۳۶)-
[2]) تهذيب الكمال (۲۸/۲۶۳)-
[3]) هدى السارى (٤٤٤)-
[4]) تهذيب الكمال (۲۸/۲٦٤)-
[5]) تهذيب الكمال (۲۸/۲٦٤)-
[6]) حواله بالا)-
[7]) كتاب الضعفاء للعقيلى (٤/۲۲۰)-
[8]) تهذيب التهذيب (٤/۲۲۰)-
[9]) حواله بالا. قال الدكتور فى تعليقاته على تهذيب الكمال (۲۸/۲٦٥) كذا قال الحافظ ولم تقف عليه فى المطبوع من "المجروحين")-

ددې په مقابله کښې ساجى رحمه الله فرمائى "صدوق"[1]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى "يكتب حديثه"[2]

ابن حبان دوى په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دى[3]

حافظ ابن حجر فرمائى "صدوق ربما وهم وکان اخباريا، علامة"[4]

حافظ ذهبى فرمائى "صدوق شيعى"[5]

حاصله داده چې معروف بن خربوذ اکثرو حضراتو کمزورې گنړلې دې خو بيا هم څو حضراتو په نرم انداز کښې د دوى تعديل کړې دې.

ددوى احاديث ډير کم دى[6] بيا امام بخارى خو صرف دغه يو اثر نقل کړې دې چې په هغې کښې دده واسطه نشته، دې نه علاوه دده نه ئې بل خائې کښې روايت اخستې نه دې[7]

او امام مسلم، امام ابوداود او امام ابن ماجه رحمهم الله هم دده صرف د يو حديث اخراج کړې دې "سمعت ابا الطفيل يقول: رايت رسول الله يطوف بالبيت ويستلم الركن بمحجن معه ويقبل المحجن"[8]

(اللفظ لمسلم)

گويا امام بخارى رحمه الله دده نه مرفوع روايت نقل کړې نه دې ورسره ورسره متن مخکښې کولو او سند روستو کولو سره ئې دا اشاره هم اوکړه چې په دې سند کښې څه ضعف دې او امام مسلم رحمه الله هم دده حديث استشهاداً نقل کړې دې، اصالةً نا[9] والله اعلم (رحمه الله تعالى رحمة واسعة)

③ **حضرت ابوالطفيل:** دا حضرت ابوالطفيل عامر بن واثله بن عبدالله بن عمر بن جحش ليثى رضى الله عنه دې بعضې حضراتو دده نوم د عامر په خائې عمرو ښودلې دې خو صحيح خبره هم "عامر" دې[10]

دوى د غزوه احد په کال باندې پيدا شوې وو، او د حضورپاک صلى الله عليه وسلم د ژوند نه ئې تقريبا اته کاله

---

[1] تهذيب التهذيب(۱۰/۲۳۱)-

[2] تهذيب الكمال(۲۸/۲۶۴)-

[3] الثقات لابن حبان(۵/۴۳۹)-

[4] تقريب التهذيب(ص۵٤۰)رقم(۶۷۹۱)-

[5] ميزان الاعتدال(٤/١٤٤) رقم(۸۶۵۵)-

[6] حواله بالا)_

[7] هدى السارى(ص ٤٤٤)-

[8] صحيح مسلم كتاب الحج باب جواز الطواف على بعير وغيره..رقم(۳۰۷۷) وسنن ابى داود كتاب المناسک باب الطواف الواجب رقم(۱۸۷۹) وسنن ابن ماجه كتاب المناسک باب من استلم الركن بمحجنه رقم(۲۹٤۹)-

[9] تعليقات الكاشف(۲/۲۸۰) رقم(۵۵۵۱)-

[10] تهذيب الكمال(١٤/٧٩)-



موندلې وو([1])

دوی د حضور ﷺ نه علاوه د حضرت ابوبكر، حضرت عمر، حضرت علی، حضرت معاذ بن جبل او حضرت عبدالله بن مسعود وغيره نه روايت د حديث نقل كړې دې.

او دده نه روايت كونكو كښې حبيب ابن ابى ثابت، امام زهرى، ابوالزبير مكى، على بن زيد بن جدعان، عبدالله ابن عثمان بن خثيم، معروف بن خربوذ، سعيد الجريرى او فطر بن خليفه وغيره نه علاوه ډير حضرات دى([2])

حضرت ابوالطفيل رضی الله عنه په كوفه كښې اوسدلو، بيا مكه ته راغلو اوهم هلته كښې وفات شو([3]).

حضرت ابوالطفيل رضی الله عنه د حضرت على رضی الله عنه د خاص مينه كوونكې نه دې او د هغوى د خصوصى اصحابو نه وو، هغوى سره په ټولو معركو كښې شريک وو. د حضرت ابوبكر او حضرت عمر رضی الله عنهما فضل او كمال ئې منلو. او حضرت عثمان رضی الله عنه سره به ئې مينه كوله. خو بيا هم حضرت على رضی الله عنه به ئې مقدم كولو([4])

د حضرت على رضی الله عنه او اهل بيت سره د ميلاودو او ربط لرلو په وجه خوارج دده نه خفا او په ده باندې ئې مختلف قسم الزامونه لګول([5])

حافظ ذهبى رحمه الله نقل كوى "وكان ابوالطفيل ثقة فيما ينقله صادقا عالما شاعرا فارسا عمر دهرا طويلا وشهد مع على حروبه"([6])

يعنى دوى په نقل كښې ثقه او معتمد وو رشتونې وو عالم شاعر او شهسوار وو. عمر ئې ډير اومندلو، او حضرت على رضی الله عنه سره په ټولو جنګونو كښې شريک وو.

حضرت ابوالطفيل هغه آخرى صحابى دې چې د هغه د وفات سره په دنيا كښې د حضرات صحابه كرام رضی الله عنهم دور ختم شو([7]).

ددوى نه تقريبا شل احاديث مروى دى([8]) چې دده هغې نه په بخارى كښې صرف يو حديث دې او په مسلم شريف كښې دوه روايتونه دى([9])

ابن عبدالبر رحمه الله فرمائى چې دده نه څلور احاديث مروى دى([10]) غالبًا چې ددوى مراد په اصول سته كښې روايت كړې شوې احاديث دى، چې ټول څلور دى([11])

---

[1]) حواله بالا

[2]) تهذيب الكمال(۱٤٧٩-۸۰)-

[3]) حواله بالا

[4]) الاستيعاب بهامش الاصابة(١١٧/٤)-

[5]) تهذيب التهذيب(٨٣/٥)-

[6]) سير اعلام النبلاء(٤٧٠/٣)-

[7]) سيراعلام النبلاء(٤٦٧/٣)-

[8]) الكامل لابن عدى(٨٧/٥)-

[9]) خلاصة الخزرجى(ص١٨٤٥) وذخائر المواريث(٩٦/٢)-

[10]) تعليقات معجم الصحابة (٣٨٨٦/١١)-

[11]) ذخائر المواريث(٩٦/٣)-

د اصح قول په اعتبار سره ددوی وفات په ۱۱۰ هجرئی کښې اوشو[۱] رضی الله عنه وارضاه.

⑨ **حضرت علی رضی الله عنه**: د حضرت علی رضی الله عنه تذکره په دې جلد کښې په باب "اثم من کذب علی النبی صلی الله علیه وسلم" لاندې تیره شوې ده.

[۱۲۸] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ قَالَ حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ قَتَادَةَ قَالَ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - وَمُعَاذٌ رَدِيفُهُ عَلَى الرَّحْلِ قَالَ «يَا مُعَاذُ بْنَ جَبَلٍ» . قَالَ لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَسَعْدَيْكَ . قَالَ «يَا مُعَاذُ». قَالَ لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَسَعْدَيْكَ. ثَلاَثًا.
قَالَ «مَا مِنْ أَحَدٍ يَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ صِدْقًا مِنْ قَلْبِهِ إِلاَّ حَرَّمَهُ اللَّهُ عَلَى النَّارِ». قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَفَلاَ أُخْبِرُ بِهِ النَّاسَ فَيَسْتَبْشِرُوا قَالَ «إِذًا يَتَّكِلُوا». وَأَخْبَرَ بِهَا مُعَاذٌ عِنْدَ مَوْتِهِ تَأَثُّمًا

## رجال الحدیث

① **اسحاق بن ابراهیم**: دا د فقه او حدیث مشهور امام اسحاق بن ابراهیم بن مخلد حنظلی رحمه الله دې، ددوی حالات د "کتاب العلم باب فضل من علم وعلّم" دلاندې تیر شوې دی[۲]

② **معاذبن هشام**: دا معاذ بن هشام بن ابی عبد الله سنبر الدستوائی بصری رحمه الله دی[۳]
دوی د اشعث بن عبدالملک، بکیر بن ابی السمیط، شعبه بن الحجاج، عبدالله بن عون، یحیی بن العلا الرازی او خپل پلار هشام الدستوائی رحمهم الله نه روایت کوی.
او د ده نه امام احمد، اسحاق بن راهویه، علی بن المدینی، عمرو بن علی الصیرفی، محمد بن بشار بندار، عبیدالله بن عمر القواری، بکربن خلف، ابراهیم بن عرعره، ابوسعید الاشج، نصر بن علی، ابوهشام الرفاعی، یزید بن سنان او زید بن اخزم رحمهم الله وغیره حضراتو نه علاوه نور ډیر حضرات روایت کوی[۴]

امام یحیی بن معین فرمائی "صدوق ولیس بحجة"[۵]
امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی "ثقة"[۶]
دغه شان هغوی فرمائی "لیس بذاك القوی"[۷]

---

[۱] سیر اعلام النبلاء(۳/۴۷۰)-
[۲] کشف الباری(۳/۳۷۱)-
[۳] تهذیب الکمال(۲۸/۱۳۹)-
[۴] تهذیب الکمال(۲۸/۱۴۰-۱۴۱)-
[۵] تهذیب الکمال(۲۸/۲۴۱)-
[۶] تهذیب التهذیب(۱۰/۱۹۷)-
[۷] حواله بالا

ابن قانع رحمه الله فرمائي "ثقة مامون"[1]
حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي "صدوق صاحب حديث ومعرفة"[2]
حافظ ذهبي رحمه الله دده د تذكرې په شروع كښې ليكي "معاذ بن هشام ابن ابي عبدالله بن سنبر الامام المحدث، الثقة، البصري"[3]
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي "صدوق ربما وهم"[4]
ابن عدي فرمائي "ولمعاذ بن هشام عن ابيه عن قتادة حديث كثير ولمعاذ عن غير ابيه احاديث صالحة وهو ربما يغلط في الشئ بعد الشئ وارجوانه صدوق"[5]
ابن حبان دوى په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دى او ليكلې دى "وكان من المتقنين"[6]
حاصله داده چې د ابن معين دا قول دده باره كښې مختلف دې كله په ثقه ونيلو سره ئې توثيق كړې دې او كله د "صدوق وليس بحجة" د توثيق سره سره ئې د هغه درجه هم اوچته نبودلې ده چې هغه "حجت" نه دې. ابن قانع، ابن ذهبي او ابن حبان رحمهم الله د دوى توثيق كړې دې خو بيا هم كه چرې دې كښې څه كمزوري وى نو هم قابل د تحمل او احتجاج دى. حضرات شيخين په دوى اعتماد كړې دې اګرچې امام بخاري ترې زيات حديثونه اخستې نه دى[7]
۲۰۰هجرئ كښې ددوى وفات اوشو[8] رحمه الله تعالى رحمة واسعة
③ابي: دا معاذ بن هشام پلار هشام بن عبدالله سنبر دستوائي بصري رحمه الله دې. د دوى حالات د كتاب الايمان باب زيادة الايمان ونقصانه" دلاندې تير شوې دى[9]
④قتاده: دا امام قتاده بن دعامه سدوسي بصري رحمه الله دې. د دوى حالات د "كتاب الايمان باب من الايمان ان يحب لاخيه مايحب لنفسه" د لاندې تير شوې دى[10]
⑤انس بن مالك رضي الله عنه: د حضرت انس بن مالك رضي الله عنه حالات هم د "كتاب الايمان باب من الايمان ان يحب لاخيه مايحب لنفسه" د لاندې تير شوې دى[11]

---

[1] حواله بالا
[2] ميزان الاعتدال(٤/١٣٣) رقم(٨٦١٥)-
[3] سيراعلام النبلاء(٩/٣٧٢)-
[4] تقريب التهذيب(ص٥٣٦)رقم (٨٦١٥)-
[5] الكامل(٦/٤٣٤)-
[6] الثقات لابن حبان(٩/١٨٨،١٨٦)-
[7] هدى السارى(ص٤٤٤)-
[8] سير اعلام النبلاء(٩/٣٧٢)-
[9] كشف البارى(٢/٤٥٦)-
[10] كشف البارى(٢/٣)-
[11] كشف البارى(٢/٦)-

**قوله: ان النبی ﷺ ومعاذ ردیفه علی الرحل قال: یا معاذ بن جبل:**
حضورپاک ﷺ اوفرمائیل: اې معاذ بن جبل! دغه وخت معاذ رضی الله عنه حضور ﷺ پسې شاته په سورلۍ ناست وو.

**ردیف یا ردف** هغه کس ته وئیلې شي چې په یو سورلئی کښې چا پسې شاته سور وی[1]

رحل په اصل کښې د اوښ کجاوې ته وائی[2]خو دلته د "رحل" اطلاق تجوزاً شوې دې ځکه چې د کتاب الجهاد په روایت کښې راروان دی چې حضورپاک ﷺ په یو خر باندې سور وو او معاذ رضی الله عنه هغوی پسې شاته سور وو، د دغې خر نوم عفیر (بالعین المهملة والفاء مصغرا) وو.[3]
د حافظ ابن الصلاح رائې داده چې دا دواړه واقعې جدا جدا دی، په یو کښې د سورلۍ ځناور اوښ وو او په بل کښې خر[4]

خو امام نووی رحمه الله فرمائی چې کیدیشی چې واقعه یوه وی او "علی الرحل" معنی "علی قدر مؤخرة الرحل" وی[5]

دې نه پس دا زده کړه چې په بخاری شریف کښې خو دی "علی حمار یقال له: عفیر"[6] خو په مسند احمد کښې "یقال له یعفور" دی[7]
په دې سلسله کښې عبدوس او ابن القیم رحمهما الله رائې خو داده چې دا دواړه د یو خر دوه نومونه دی. خو د حافظ دمیاطی رحمه الله رائې دا ده چې دا دواړه جدا جدا خرونه وو. یو مقوقس د هدیې په طور رالیږلې وو، او یو فروه بن عمر.[8] والله اعلم
"یا معاذ ابن جبل" کښې "ابن" خو په اتفاق سره منصوب دې البته معاذ باندې په نصب وئیلې شي یا ضمه؟ په دې کښې اختلاف دې ابن مالک رحمه الله د ضمې وئیلو قائل دې او ابن الحاجب رحمه الله د فتحې.
د ضمې وئیلو وجه خو ښکاره ده چې دا منادی مفرد ده او منادی مفرد معرفې لره په علامت رفع سره مبنی ګرځوی، او د ضمه وئیلو وجه داده چې منادی "ابن" یا "ابنة" سره متصف کیدو

---

[1] مختار الصحاح (ص ۲٤۰)-
[2] الرحل: رحل البعیر مختار الصحاح (ص ۲۳۷) وانظر فتح الباری (۲۲۶/۱)-
[3] عن معاذ بن جبل رضی الله عنه قال: کنت ردف النبی ﷺ علی الحمار یقال له عفیر "صحیح البخاری (٤۰۰/۱) کتاب الجهاد باب اسم الفرس والحمار رقم (۲۸۵۶)-
[4] شرح النووی علی صحیح مسلم (٤٤/۱) کتاب الایمان باب الدلیل علی ان من مات علی التوحید دخل الجنة قطعا)-
[5] حواله بالا
[6] صحیح البخاری (٤۰۰/۱) کتاب الجهاد باب اسم الفرس والحمار رقم (۲۸۵۶)-
[7] مسند احمد (۲۳۸/۵) رقم (۲۲٤۲۳) حدیث معاذ بن جبل رضی الله عنه-
[8] فتح الباری (۵۹/۶)

سره راشي نو ددې استعمال ډير دې،او کثرت استعمال تخفيف غواړي،لهذا چونکه دا مفعول دې ددې حرکت اصليه فتحه ده،نو خکه مو ورله تخفيفا فتحه ورکړه[1]

**حضرت معاذ بن جبل ﷺ:** دامشهور انصاري صحابي حضرت معاذبن جبل بن عمرو بن اوس خزرجي انصاري ﷺ دې،ددوی کنيت ابوعبدالرحمن دې[2]

د اتلس کالو په عمر کښې ئې اسلام راوړلو ،بيعت عقبه ثانيه،غزوه بدر او نورو غزواتو کښې حضورپاک ﷺ سره شريک شوي وو[3]

دوی به د حضورپاک ﷺ نه روايت حديث کولو.

د دوی نه حضرت عبدالله بن عمر، حضرت عبدالله بن عباس، حضرت جابر،حضرت انس،حضرت ابوامامه، حضرت ابوثعلبه خشني او حضرت عبدالرحمن بن سمره ﷺ نه علاوه په تابعينو کښې ابوالاسوددؤلي،کثيربن مره، ابووائل، ابن ابی ليلی، عمرو بن ميمون، ابومسلم خولاني، مسروق او عبدالرحمن بن غنم ﷺ وغيره نه علاوه ډير حضرات د حديثو روايت کوی.[4]

د حضرت معاذبن جبل شمير د صحابه په علماؤ کښې کيدلو ، د حضورپاک ﷺ نه ددوی ډير مناقب رانقل دی.

حضورپاک ﷺ اوفرمائيل چې قرآن د څلورو کسانو نه حاصل کړئ.او بيا ئې د عبدالله بن مسعود ،سالم مولی ابی حذيفه، ابی بن کعب او معاذ بن جبل ﷺ نومونه ئې واخستل.[5]

د حضورپاک ﷺ ارشاد دې"اعلمهم بالحلال والحرام معاذبن جبل"[6]

هغوی ﷺ دا ارشاد اوفرمائيل"نعم الرجل معاذبن جبل"[7]

دغه شان هغوی ﷺ دا هم اوفرمائيل"يامعاذ انی لاحبك فی الله"[8]

سهل بن ابی حثمه ﷺ فرمائي چې د حضورپاک ﷺ په دور کښې فتوی ورکولو والا شپږ کسان وو،د مهاجرينو نه درې:حضرت عمر،حضرت عثمان او حضرت علی ﷺ او په انصارو کښې درې:حضرت ابی بن کعب،حضرت معاذ او حضرت زيد ﷺ[9]

---

[1] اوضح المسالک(۷۹/۳)باب النداء الفصل الثانی فی اقسام المنادی واحکامه،شرح الجامی(ص۱۲۷) المنصوبات توابع المنادی)-

[2] تهذيب الکمال(۱۰۵,۱۰۶/۲۸)-

[3] تهذيب الکمال(۱۰۷/۲۸)-

[4] تهذيب الکمال(۱۰۸،۱۰۹/۲۸)-

[5] صحيح البخاري(۵۳۷/۱)کتاب فضائل اصحاب النبی ﷺ باب مناقب معاذبن جبل،رقم(۳۸۰۶)-

[6] جامع الترمذی ابواب المناقب،باب مناقب معاذبن جبل وزيد بن ثابت وابی بن کعب وابی عبيدة بن الجراح ﷺ رقم(۳۷۹۰،۳۷۹۱)-

[7] جامع الترمذی ابواب المناقب،باب مناقب معاذ بن جبل..رقم(۳۷۹۵)-

[8] سنن النسائی کتاب السهو باب نوع آخر من الدعاء رقم(۱۳۰۴)-

[9] سيراعلام النبلاء(۴۵۲/۱)-

حضرت عمر ﷛ فرمائي "من اراد الفقه فليات معاذ بن جبل"[1]
يو خل مدينه کښې دا واقعه اوشوه چې يو سړې تقريبا دوه کاله د کور نه غائب وو.د هغې نه پس چې کور ته راغلو نو ښځه ئې حامله وه.حضرت عمر ﷛ هغه سنګساره کول اوغوښتل.حضرت معاذبن جبل اعتراض اوکړو او ونې فرمائيل.چې دا ښځه خو سنګسار کولې شی خو چې ددې په خيټه کښې کوم بچې دې دا به وژلې نه شی؟ حضرت عمر ﷛ هغه پريښودله نو دې نه پس چې د هغې خونې اوشو او د هغه مشابهت هم ددې خاوند سره وو.او د هغه مخکښنی غاښونه هم راوتلې وو.او دې سړی خپله هم اونې چې دا خما خونې دې.په دې موقعه حضرت عمر ﷛ اوفرمائيل "عجزت النساء ان يلدن مثل معاذ،لولا معاذ لهلك عمر"يعنی ښځې د معاذ په شان شخصيت پيدا کولو نه عاجزې دی.که معاذ نه وو نو عمر به هلاک شوې وو."[2]
شهر بن حوشب ﷫ فرمائی چې کله به د حضورپاک ﷺ صحابه کرام خپل مينځ کښې خبرې کولې او په هغوی کښې به معاذ بن جبل هم وو نو نورو حضراتو به هغوی ته د ويرې نه ډک نظرونو سره کتل.[3]

حضرت ابن مسعود ﷛ فرمائی "ان معاذ كان امة قانتا لله حنيفا"[4]

چا اوئې چې دا صفت خو د ابراهيم ﷤ دې "ان ابراهيم كان امة قانتا لله حنيفا ولم يك من المشركين"[5]

حضرت عبدالله بن مسعود اوفرمائل "الامة:الذی يعلم الخير ويؤتم به .والقانت:المطيع لله عزوجل وكذلك كان معاذ معلما للخير، مطيعا لله عزوجل ولرسوله ﷺ"[6]
د حضورپاک ﷺ هغوی باندې دومره اعتماد وو.چې ددې اندازه دې خبرې نه اولګوه چې کله هغوی ﷺ د مکه مکرمه نه حنين طرف روان شول نو په دې موقع ئې حضرت معاذ ﷛ ددې وجه په مکه کښې پريښودلو چې هغوی به خلقو ته دين او قرآن ښائی.[7]
دغه شان حضورپاک ﷺ هغوی لره په آخری عمر کښې د يمن قاضی او د دين رهنما جوړکړو او وې ليږلو.[8]

---

[1] المستدرک للحاکم(۲۷۱،۲۷۲/۳)- وصححه ووافقه الذهبی)-
[2] سيراعلام النبلاء(۴۵۲/۱)-
[3] سيراعلام النبلاء(۴۵۲،۴۵۳/۱)-
[4] تهذيب الاسماء واللغات(۹۹/۲)-
[5] النحل/۱۲۰)-
[6] تهذيب الاسماء واللغات(۹۹/۲)-
[7] سيراعلام النبلاء(۴۵۹/۱)-
[8] تهذيب الاسماء واللغات(۱۰۰/۲)-

د يمن نه د واپس كيدو نه پس د ابوبكر ﷺ په اجازت سره د جهاد په نيت سره شام ته لاړلو، هلته طاعون عمواس د وجه وفات شو.[1]

د وفات په وخت كښې د هغوى عمر ۳۳ يا ۳۴ كال وو.[2]

حضرت معاذ ﷺ باندې د طاعون اثر اوشو نو بار بار به بيهوشى راتله، ګوزاره كيدلو سره ئې اوفرمائيل: رب خنقى خنقك، فوعزتك، انك لتعلم انى احبك.[3] يعنى اې خما رب: خما صرف ستا د جدائى غم دې. ستا د عزت دې قسم وى، تاته پته ده چې څه تاسره محبت كوم.

دغه شان په دې موقع ئې اوفرمائيل: اللهم انك تعلم انى كنت اخافك، وانا اليوم ارجوك، انى لم اكن احب الدنيا وطول البقاء فيها لكرى الانهار، ولا لغرس الاشجار، لكن لظما الهواجر ومكابدة الساعات ومزاحمة العلماء بالركب عند حلق الذكر.[4]

يعنى: اې الله! تاته پته ده چې څه به ستانه ويريدم او نن څه ستانه د بخښنې او كرم اميد كوم، څه ستانه د ډير عمر خواهش دې د پاره نه كوم چې نهرونه اوكنوم، اونې اولګوم، بلكه دا محبت د غرمې په ګرمئ كښې د تندې د پاره، د ژوند وختونه په ښه طريقه او پوړا كوشش كولو د پاره او د ذكر وتعليم په دائره كښې د عالمانو ګونډو سره ګونډئى ميلاوول او كيناستلو د پاره دې.

حضرت معاذ ﷺ نه تقريبا يو سل او اوؤه اويا احاديث نقل دى، چې په هغې كښې متفق عليه دوه حديثونه دى، او بخارى په دريو حديثو كښې او امام مسلم يو حديث نه متفرد دى.[5]

۱۸ هجرئي په طاعون عمواس كښې ددوى وفات اوشو.[6] رضى الله تعالى عنه وارضاه

**قوله: قال: لبيك يا رسول الله وسعديك، قال: يا معاذ، قال: لبيك يا رسول الله وسعديك ثلاثا:** حضرت معاذ ﷺ عرض اوكړو: لبيك يا رسول الله وسعديك: زيا رسول الله څه حاضر يم او ستا د حكم پوره كولو د پاره تيار يم، بيا هغوى ﷺ آواز اوفرمائيلو اې معاذ! هغوى عرض اوكړو: لبيك يا رسول الله وسعديك: دغه شان درې پيرې اوشول.

لبيك: عربى كښې وئيلې شى: الب بالمكان يلب الباباً: يو ځائې مقيم كيدل او هغه بيا لازم ګنړل، دغه شان د: الب: په ځائې: لب: هم وئيلې شى.[7]

امام فراء ﷺ فرمائى هم ددې نه د: لبيك: لفظ جوړ شوې دې چې د هغې معنى: څه ستا

---

[1] حواله بالا

[2] حواله بالا

[3] حواله بالا)-

[4] تهذيب الاسماء واللغات (۲/۱۰۰)-

[5] تهذيب الاسماء اللغات (۹۸/۲) وخلاصة الخزرجى (ص ۳۷۹)-

[6] سير اعلام النبلاء (۴۶۱/۱)-

[7] مختار الصحاح (ص ۵۸۹)-

تابعدار او حکم منلو باندې مقیم او او کلک یم.([1])
دا مفعول مطلق کیدو د وجه منصوب دې ځنګه چې "حمدا لله" او "شکرا لله" کښې "حمدا" او "شکرا" منصوب دې([2])
"لبیك" د تثنیې صیغه ده، د تاکید د وجه دا تثنیه راوړلې شوه، نو ګویا د "لبیک" معنی "الب لك الباباً بعد الباب واقامة بعد اقامة"([3])
امام خلیل نحوی رحمه الله فرمائی چې د "لب یلب" نه جوړ دې. وئیلې شی "دار فلان تلب داری" یعنی د فلانکی کور ځما کور ته مخامخ دې، لهذا د لبیک معنی شوه "انا مواجهك بما تحب اجابة لك"([4]) یعنی ته چې د کوم څیز ځما نه غوښتنه کوې څه د هغې بالکل ستا د خوښې مطابق مخکښې راتلو والا یم.
ښکاره دې وی چې دا تثنیه په مثنی باندې دلالت کونکې نه ده بلکه په تکثیر باندې دلالت د پاره ده([5])
دا هم یاد ساتئ چې دا لفظ همیشه د پاره ضمیر مخاطب په طرف مضاف کیږی نه چې غائب طرف ته، مګر شاذ طریقې سره([6])
"سعدیك": "سعد اسعا" یعنی د مساعده او اعانت په معنی باندې دې ګویا د "اسعدك اسعادا بعد اسعاد" معنی کښې دې، او مفعول مطلق بنیاد باندې منصوب دې([7])
حضور پاک ﷺ دومره اهتمام سره دوه درې پیرې چې معاذ رضی الله عنه ته آواز ورکړو نو په اصل کښې هغوی دا غوښتل چې هغه د دوی د خبرې د آوریدو او د پوهیدلو د پاره پوره د زړه او روح سره متوجه شی، چې کله معاذ رضی الله عنه پوره طور سره متوجه شو نو هغه وخت هغوی مخکښې اوفرمائیل.

**قوله: قال: ما من احد یشهد ان لا اله الا الله وان محمدا رسول الله صدقا من قلبه الا حرمه الله علی النار:** حضور پاک ﷺ اوفرمائیل چې کوم سړې په رشتونی زړه سره ددې خبرې ګواهی ورکړی چې د الله نه سوا بل څوک معبود نشته او دا چې محمد ﷺ د الله تعالی رسول دې، په هغه باندې به الله تعالی د جهنم اور حرام کړی.
"صدقا" "صادقا" په معنی سره دې. د "من قلبه" تعلق "صدقا" سره هم کیږی او مطلب به وی چې هغه سړې به په ژبه سره د شهادت تلفظ کوی او په زړه سره ددې تصدیق کوی، او دا هم

---

[1]) حواله بالا
[2]) حواله بالا
[3]) حواله بالا
[4]) حواله بالا
[5]) المعجم المفصل فی الاعراب للاستاذ طاهر یوسف الخطیب(۳۸۲/۳)-
[6]) حواله بالا
[7]) مختار الصحاح(ص۲۹۹۰) والمعجم المفصل فی الاعراب(۳۳۸/۳)-

ممکن ده چې ددې تعلق "يشهد" سره وی، يعنې په زړه سره رشتونې ګواهی ورکوی.په دې کښې اولنې احتمال بهتر دې[1]
دلته دا خبره زده کړه چې د"صدق" اطلاق په افعالو او اقوالو دواړو باندې کيږی، اقوال صادقه هغه اقوال دی چې د واقع مطابق وی او افعال صادقه هغه افعال دی چې خوښکړې شوې وی، دلته دواړه معنی يعنې استقامت قولی او فعلی مراد دې[2]
**د حديث باب نه مرجئو استدلال او دهغې رد:** ددې حديث نه مرجئه دليل نيولې دې چې د ايمان نه پس د بل څيز ضرورت نشته.
خوارجو دا قسم احاديث رد کړل، او اهل سنة والجماعة ټول احاديث په خپل ځائې باندې ايږدی او ټول منی او دهغې مناسبه معنی وائی، ددې حديث هم ډيرې معنې بيان کړې شوې دی.
① يو معنی دا بيان کړې شوې ده چې دا اګرچې مطلق دې چې کوم سړې د توحيد او رسالت ګواهی ورکوی هغه به جهنم ته نه ځی.خو بيا هم دا حکم په حقيقت کښې مقيد دې "مامن احد يشهد..تائباً" سره، يعنې چې کوم سړې توحيد او رسالت ګواهئی سره توبه اوباسی او دې دنيا نه رخصت شی نو هغه باندې به اور حرام وی.
② يو معنی دا هم بيان کړې شوې ده چې دا او دا قسم چې څومره احاديث راغلې دی هغه ټول د فرائضو او احکامو د نازليدو نه مخکښې راغلې دی، لهذا د فرائضو نازليدو نه پس صرف شهادتين بس نه دی، په فرائضو او احکامو باندې به هم عمل کول وی.
دې جواب باندې اعتراض دې څکه چې دا روايات خو د ابوهريره او حضرت ابو موسی اشعری رضي الله عنهما نه هم مروی دی[3]
دحضرت ابوهريره رضي الله عنه په اسلام کښې روستوالې او د ابوموسی اشعری رضي الله عنه مخکښې والې د ابوهريره رضي الله عنه د اسلام راوړلو په کال باندې معروفه ده، دغه وخت د ډيرو فرائضو نازليدنه شوې وه.
③ يو معنی دا هم ونيلې شوې ده چې دا حکم د غالب احوالو په اعتبار سره دې څکه چې موحد عام طور تابعداری کوی او د ګناه نه ځان بچ کوی.
④ يو مطلب دا بيان کړې شوې دې چې "حرمه الله على النار" نه مراد د هميشه د پاره حراموالې دې، نه چې صرف داخيليدنه.
⑤ يو مطلب دا بيان کړې شوې دې چې "تحريم على النار" نه مراد فی الجملة حرام والې دې څکه چې حديث د شفاعت نه معلوميږی چې د مومن د سجدې ځايونه به اور نه خوری، او دغه شان ژبه هم چې په څه سره هغه د توحيد ګواهی ورکړې ده.

[1] فتح الباری(۱/۲۲۶) وعمدة القاری(۲/۲۰۷)-
[2] فتح الباری(۱/۲۲۶)-
[3] صحيح المسلم كتاب الايمان باب الدليل على ان من مات على التوحيد دخل الجنة قطعارقم(۱٤۷) ولابوموسی اشعری مسند احمد(٤/٤۱۱،٤۰۲) رقم(۱۹۸۲۶)و(۱۹۹۲۵)-

⑥ يو مطلب دا بيان كړې شوې دې چې دلته د "النار" نه مراد د جهنم هغه طبقه ده چې كومه د كافرانو د پاره تياره شوې ده، نه چې هغه طبقه چې كومه د ګناهګار اهل توحيد د پاره تياره شوې ده.

⑦ حضرت حسن بصرى رحمه الله "ان ذلك لمن قال الكلمة وادى حقها وفريضتها" يعنى دا حكم د هغه كس د پاره دې چې دې كلمې وئيلو نه پس ددې حقوق او فرائض هم په ځاني راوړى.(١)

⑧ يو مطلب دا هم كيدې شى چې ددې كلمې تاثير په حقيقت كښې هم دغه دې چې اور به حرام كړې شى په دې شرط چې څه مانع موجود نه وى، كه څه مانع وى نو ددې كلمې به بيا دا اثر نه وى، اوګوره د نهر اوبه بهيږى، چې كوم طرف ته د نهر رخ وى هغه طرف ته رواني وى ليكن كه څوک بند اولګوى نو اودريږى. او چې هغه بند لرې كړېشى نو بيا په خپل رخ باندې رواني شى، دغه شان ددې كلمې خاصيت دې چې په هغه به جهنم حرام كړى او جنت ته به ئې بوځى، په دې شرط چې دې خاصيت لره بندولو والا څه څيز يا عمل ظاهر نه شى، كه يو عمل داسې ښكاره شى اوهغه طاقتور وى نو ددې خاصيت به منع كړى او چې كله ددې عمل اثر ختم شى نو ددې كلمې اثر خاصيت به ښكاره شى.

او د اثر د ختميدو دوه صورتونه دى. يو صورت دادې چې الله تعالى ئې په خپل كرم سره لرې كړى او دويم صورت دادې چې سړې به عذاب اوڅكى او د سزا څكلو نه پس به هغه روكاوټ ختم شى. بهرحال ددې كلمې اثر به خامخا ښكاره كيږى. والله سبحانه وتعالى اعلم

**قوله: قال: يا رسول الله افلا اخبر به الناس فيستبشروا؟:** حضرت معاذ رضي الله عنه عرض اوكړو چې يا رسول الله! څه خلقو ته ددې خبرې زيرې ورنكړم چې هغوى خوشحاله شى؟

**قوله: قال: اذًا يتكلوا:** هغوى ارشاد اوفرمائيل چې بيا به خلق په اعتماد كولوسره په اعمالو كښې كمې كول شروع كړى.

په عامو نسخو كښې "فيستبشروا" د نون حذف سره دې. او د ابوذر په نسخه كښې "فيستبشرون" په اثبات دنون دې.

په اولنى صورت كښې "فيستبشروا" د "ان" ناصبه مقدره د وجه منصوب دې. او په دويم صورت كښې به تقديرى عبارت داسې وى "فهم يستبشرون".(٢)

"اذا يتكلوا" "ان اخبرتهم يتكلوا" په معنى باندې ده.(٣)

د اصيلى او كشمهينى نسخو مطابق دا لفظ "يتكلوا" نون سره دې چې د هغې معنى انكار ده، مطلب دادې چې بيا به خو خلق د عمل نه انكار اوكړى.(٤)

---

(١) عمدة القارى (٢/٢٠٨،٢٠٧) رفتح البارى (١/٢٢٧،٢٢٦)-
(٢) فتح البارى (١/٢٢٧٩ وتحفة البارى لشيخ الاسلام زكريا الانصارى (١/١٤٣)-
(٣) حواله بالا
(٤) حواله بالا

په مسند بزار كښې د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه دا حديث مروى دې چې حضورپاک ﷺ يو ورځ اوفرمائيل "من قال: لا اله الا الله دخل الجنة" په دې باندې حضرت معاذ رضي الله عنه د حضورپاک ﷺ نه د خلقو د خوشحالولو په غرض اجازت اوغوښتلو.نو هغوى اجازت ورکړو.هغه په خوشحالئ زر اوتلو.په لار كښې حضرت عمر رضي الله عنه سره ميلاؤ شولو.هغوى تپوس اوکړو څه خبره ده؟ حضرت معاذ رضي الله عنه ورته هغه خبره اوكړه.حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل چې تندى مه كوه.لږ هسار شه. بيا هغه د حضورپاک ﷺ په خدمت كښې حاضر شو او تپوس ئې اوكړو چې اې د الله نبى ﷺ! هم ستاسو رائې افضله ده.خو بيا هم خما رائې داده چې خلق دا خوشخبرى واورى نو په اعتماد سره به كينى او عمل به نه كوى.هغوى ﷺ اوفرمائيل چې هغه واپس راوغواړه، نو بيا هغه واپس راوغوښتې شو.[1]

**قوله: واخبربها معاذ عند موته تأثما:** حضرت معاذ رضي الله عنه د وفات په وخت كښې خان د ګناه نه بچ كولو په غرض خلقو ته ددې خبر وركړو.

"موته" كښې ضمير حضرت معاذ رضي الله عنه ته راجع دې،علامه كرماني رحمه الله فرمائي چې دا احتمال هم دې چې ضمير حضورپاک ﷺ طرف ته راجع وى[2]په اول صورت كښې به "عند موته" مطلب دا وى "قبل موت معاذ" او بل صورت كښې به مطلب وى "بعد موت النبى ﷺ".

دا خبره خو د احتمال د حده پورې رشتيا ده خو بيا هم صحيح دلته اولنې صورت دې[3]،ځكه چې په مسند احمد كښې د جابر رضي الله عنه دا صحيح روايت دې هغوى فرمائي "اخبرنا من شهد معاذا حين حضرته الوفاة يقول: اكشفوا عنى سجف القبة احدثكم حديثا سمعته من رسول الله لم يمنعنى ان احدثكم الا ان تتكلوا."[4]

"تاثم"د باب تفعيل مصدر دې په دې كښې د سلب عن ماخذ يا خروج عن الشيء خاصيت ښكاريږى.ګويا "تاثما" معنى "خروجا عن الاثم" دى[5]او مطلب به دا وى چې حضرت معاذ رضي الله عنه د وفات په وخت كښې د كتمان علم د ګناه نه وتلو د پاره دا بيان كړو.

په باب تفعل كښې د "دخول فى الشيء" خاصيت معلوميږى،په دغه اعتبار سره تقديرى عبارت به دا وى "اخبربها معاذ عند موته مخافة الدخول فى الاثم" يعنى په ګناه كښې د داخليدلو د ويره نه ئې

---

[1]) كشف الاستار عن زوائد البزار(۱۲/۱) رقم(۸)كتاب الايمان باب توحيد الله وسبحانه)-

[2]) شرح الكرمانى(۱۵۵/۱)-

[3]) فتح البارى(۲۲۷/۱)-

[4]) مسند احمد(۳۳۷/۵) رقم(۲۲۴۱۰)-

[5]) قال الزبيدى فى تاج العروس (۱۷۹/۸) مادة "اثم":تاثم الرجل:تاب منه،اى:من الاثم،واستغفر منه،وهو على السلب كانه سلب ذات الاثم بالتوبة والاستغفار او رام ذلك بهما وايضا:فعل فعلا خرج به من الاثم كما يقال:تحرج اذا فعل فعلا خرج به من الحرج،وفى حديث معاذ:فاخبربها عند موته تاثما")-

دا روايت نقل كړو.

**د منع كولو باوجود حضرت معاذ رضي الله عنه دا حديث د خلقو مخكښې ولې بيان كړو؟** دلته سوال پيدا كيږي چې كله حضورپاك ﷺ حضرت معاذ رضي الله عنه ته دا فرمائيلي وو چې خلقو ته مه وايه. كه دې اووئيلو نو خلق به په دې باندې بهروسه اوكړي نو حضرت معاذ رضي الله عنه ته كتمان علم وېره ولې راغله؟

ددې ډېر جوابونه وركړې شوې دي:

① قاضي عياض فرمائي چې حضرت معاذ رضي الله عنه د حضورپاك ﷺ منع كول په حرام والى باندې اونه ګنړله، بلكه هغوى دا اوګنړله چې په ما كښې د زيرى كومه اراده پيدا شوې ده د هغې ختيمېدل ئې مقصود دى.[1]

②كيدې شي چې د ابوهريره رضي الله عنه هغه قصې[2] (چې په هغې كښې حضورپاك ﷺ هغوى ته د زيرى وركولو اجازت وركړې وو) د حضرت معاذ رضي الله عنه ددې واقعې نه پس وى. لهذا هغوى دغه واقعې لره ناسخه او خپله منسوخه اوګنړله، او دغه شان ئې په آخرى وخت كښې ئې دا حديث د خلقو په مخكښې نقل كړو.

③كيدېشي چې د منع تعلق على وجه العموم وى د مخصوص خلقو په مخكښې د بيانيدلو نه منع نه وى.[3]

خو په دې ټولو جوابونو باندې اعتراض دى

چنانچه په اولنى جواب اشكال دا دې چې كله په روايت كښې ښكاره منع موجود ده[4] نو دا د عظيمت ماتولو باندې ولې واخستلې شو؟

دغه شان په دويم جواب اشكال دادې چې راروان روايت نه دا په ذهن كښې راځى، چې د ابوهريره رضي الله عنه واقعه د معاذ رضي الله عنه د واقعې نه مخكښې وه، ځكه چې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه په حديث كښې دى چې حضورپاك ﷺ هغوى ته ارشاد اوفرمائيلو چې لاړ شه! چې كوم خلق دې باغ نه بهر دى ټولو ته اطلاع وركړه چې څوك "لا اله الا الله" يقين سره اووائى الله تعالى به هغه جنت ته داخله وى، هغوى د باغ نه وتلو كښې وو چې حضرت عمر رضي الله عنه ورته لاړ كښې ميلاؤ شو، هغوى ته چې كله معلومه شوه نو ابوهريره رضي الله عنه ئې په زوره منع كړلو او د حضورپاك ﷺ په خدمت كښې حاضر شو او وجه ئې ورته اوښودله چې يا رسول الله! مكوه چې خلق عمل كوى، هسې نه خلق په دې باندې بهروسه شروع كړى، نو هغوى ﷺ اجازت وركولو سره اوفرمائيل "فخلهم"[5]

---

[1] فتح البارى (۱/۲۲۸)-
[2] صحيح مسلم كتاب الايمان باب الدليل على ان من مات على التوحيد دخل الجنة قطعا رقم(۱٤۷)-
[3] فتح البارى (۱/۲۲۸)-
[4] كما فى روايت سابق "لا انى اخاف ان يتكلوا")-
[5] صحيح المسلم كتاب الايمان باب الدليل على ان من مات على التوحيد دخل الجنة قطعا رقم(۱٤۷)-

چنانچه روستو بیا هغوی هم دغه مفهوم او مضمون حضرت انس رضی الله عنه ته په خطابُ کښې اوفرمائیلو. په هغې کښې هغوی خلقو ته د اورولو حکم صرف دا چې ور نې نه کړو بلکه د معاذ رضی الله عنه د تبشیر جذبه نې هم یخه کړه،
ددې نه علاوه صرف د احتمال د وجه نسخ ثابتیږی نا[1]
او په دریم جواب اشکال دادې چې په مسند احمد کښې راغلې دی چې حضرت معاذ رضی الله عنه د خپل وفات په وخت کښې ارشاد اوفرمائیلو چې خلق ماته راوغواړئی هر کله چې ټول راغلل نو هغوی دا حدیث واورولو[2]
لهذا دا به اوونیلې شی چې حضرت معاذ رضی الله عنه دا اوګنړله چې دا نهی تحریمی نه ده بلکه تنزیهی ده، او د منع کیدو وجه د سستوالی ویره ده، او سستوالې په شروع کښې وی، هرکله چې سړې د اعمالو شوقی او عادتی نه وی، او چې کله دا اعمالو عادی شی نو بیا سستوالې نه وی په خپله په هغه کښې د تابعدارئی شوق پیدا شی بیا یې په خپله کوی.
ګویا په شروع کښې د سستوالی ویره وه، په اعمالو کښې د کموالی اندیښنه وه، دې نه پس دا خطره ختمه شوه او معاذ رضی الله عنه اوګنړله چې د کوم علت په وجه منع کړې شوې وه هغه علت باقی پاتې نه شو، لهذا که چرې دا حدیث بیان نه کړې شو نو د کتمان علم د ګناه خطره ده. والله اعلم
**یو اعتراض او د هغې جواب:** دلته د یو اعتراض جواب په خیال کښې راغلو، اعتراض دادې چې هر کله حضرت معاذ رضی الله عنه کتمان علم د ګناه نه د وتلو اراده اوکړه او د هغې د وجې نې حدیث بیان کړو نو هغه ته دا خیال ولې رانغلو چې د حدیث بیان کیدو په صورت کښې د حضورپاک صلی الله علیه وسلم د صفا منع کولو مخالفت ګناه لازمیږی؟
نو ددې جواب دادې چې هغوی ته دا علم وو چې د حضورپاک صلی الله علیه وسلم دا منع کول د "اتکال" په قید سره وو. هرکله چې د قید یعنی سستوالې ختم شو، نو مقید هم ختم شو[3] والله اعلم.

[۱۲۹] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ سَمِعْتُ أَبِي قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا قَالَ ذُكِرَ لِي أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ لِمُعَاذٍ «مَنْ لَقِيَ اللَّهَ لاَ يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا دَخَلَ الْجَنَّةَ». قَالَ أَلاَ أُبَشِّرُ النَّاسَ قَالَ «لاَ، إِنِّي أَخَافُ أَنْ يَتَّكِلُوا»

---

[1]) قال السخاوی فی فتح المغیث(٥٢/٤ بحث الناسخ والمنسوخ) فقال الشافعی فیما رواه البیهقی فی المدخل من طریقه ولا یستدل علی الناسخ والمنسوخ الا بخبر عن رسول الله صلی الله علیه وسلم او بوقت یدل علی ان احدهما بعد الآخر اویقول من سمع الحدیث یعنی من الصحابة او العامة الاجماع هو. کما قال المصنف اوضح اوشهر اذا النسخ لا یصار الیه باالاجتهاد والرای وانما یصار الیه عند معرفة التاریخ")-
[2]) عن معاذبن جبل انه اذ حضر قال:ادخلو علی الناس فادخلو علیه فقال:انی سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول:من مات لا یشرک بالله شیئا جعله الله فی الجنة وما کنت احدثکموه الا عند الموت،الشهید علی ذلک عویم وابوالدرداء فاتو اباالدرداء. فقال:صدق اخی،وما کان یحدثکم به الا عند موته مسنداحمد(٤٥٠/٦) رقم(٢٨٠٩٨) احادیث ابی الدرداء)-
[3]) شرح الکرمانی(١٥٦/٢)-

## رجال الحديث

①**مسدد**: دا مسدد بن مسرهد بن مسربل بن مرعبل الاسدی البصری رحمه الله دی، ابوالحسن ددوی کنیت دی [1]
منصور بن عبدالله خالدی ددوی نسب نامه داسی ذکر کړی ده "مسدد بن مسرهد بن مسربل بن مغربل بن مرعبل بن ارندل بن سرندل، بن غرندل بن ماسک بن مستورد الاسدی [2]
خو حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی چې د نسب دا چلیدل منکر او عجیبه ده او ښکاری چې دا د خانته جوړه شوې ده، او منصور د اعتماد قابل نه دې [3]
بعضې خلقو ونیلې دی چې د هغوی نوم عبدالملک بن عبدالعزیز وو [4] گویا "مسدد" لقب دې.
دوی د مهدی بن میمون، حمادبن زید، عبدالله بن یحیی بن ابی کثیر، هشیم، عبدالوارث، ابوعوانه، ابوالاحوص، معتمر، سفیان بن عیینه، فضیل بن عیاض، یحیی القطان، عیسی بن یونس، وکیع او د هغوی والد الجراح بن ملیح رحمهم الله وغیره نه روایت کوی.
دده نه روایت کوونکو کښې امام بخاری، امام ابوداود، ابوذرعه، ابوحاتم، یعقوب بن سفیان الفسوی، یعقوب بن شیبه السدوسی، ابواسحاق، جوزجانی، محمدبن یحیی ذهلی او احمد بن عبدالله عجمی رحمهم الله وغیره حضرات دی [5]
یحیی بن القطان فرمائی چې خه دده کور ته لاړ شم او ده ته حدیثونه اوروم نو دې د هغې اهل دې [7]
امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی "مسدد صدوق، فما کنت عنه فلا تعد" [6] یعنی مسدد رشتونې دې دده نه چې څوک حدیثونه لیکی نو بل چاته د تلو ضرورت نشته.
امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی (صدوق) [8] دغه شان هغوی فرمائی (انه ثقة ثقة) [9]
امام نسائی رحمه الله فرمائی "ثقة" [10] امام عجلی رحمه الله فرمائی "مسدد.. بصری ثقة" [11]
امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی "کان ثقة" [12]

---

[1]) التاریخ الکبیر للبخاری(۷۲/۸) رقم(۲۲۰۹)-
[2]) سیراعلام النبلاء(۵۹٤/۱۰) تهذیب التهذیب(۱۰۹/۱۰)-
[3]) سیراعلام النبلاء(۵۹٤/۱۰)-
[4]) تهذیب التهذیب(۱۰۹/۱۰)-
[5]) تهذیب الکمال(٤٤٥/۲۷، ٤٤٤)وسیراعلام النبلاء(۵۹۲/۱۰، ۵۹۱)-
[6]) تهذیب الکمال(٤٤٦/۲۸)-
[7]) حواله بالا)-
[8]) حواله بالا)-
[9]) حواله بالا)-
[10]) حواله بالا)-
[11]) تهذیب الکمال(٤٤۷/۲۸)-
[12]) کتاب الجرح والتعدیل لابن ابی حاتم(۵۰۰/۸)رقم(۱۵۳۰۵)-

ابن قانع رحمه الله فرمائی "کان ثقة"[1]
امام ابن حبان رحمه الله دوی په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې[2]
حافظ ذهبی فرمائی "الامام الحافظ الحجة..احد اعلام الحدیث وکان من الائمة الاثبات"[3]
حافظ ابن حجر فرمائی "ثقة حافظ"[4]
په بصره کښې د ټولو نه مخکښې "مسند" لیکونکې هم دې وو[5]
۲۲۸ هجرئی کښې ددوی انتقال اوشو[6] رحمة الله تعالی رحمة واسعة
② **معتمر**: دا ابو معتمر بن سلیمان بن طرخان تیمی بصری رحمه الله دې ددوی لقب "طفیل" وو. د بنومره مولی وو، بنوتمیم کښې د اوسیدو د وجه "تیمی" رابللې شو، ګنی په حقیقت کښې د بنوتمیم نه وو[7]
دوی د خپل پلار سلیمان بن طرخان، منصور بن المعتمر، ایوب سختیانی، حمید الطویل، عمروبن دیناربصری، لیث بن ابی سلیم، خالد الحذاء، اشعث بن عبدالملک، عاصم الاحول، یونس بن عبید او اسحاق بن سوید رحمهم الله وغیره نه روایت کوی.
ددوی نه امام عبدالله بن مبارک، عبدالرزاق بن همام صنعانی، عبدالله بن مسلمه القعنبی، امام اصمعی، یحیی بن یحیی نیسابوری، مسدد بن مسرهد، محمدبن السلام البیکندی، ابوکریب محمدبن العلاء ابوسلمه بن اسماعیل اوامام احمدبن حنبل رحمهم الله وغیره روایت کوی[8]
امام یحیی بن معین فرمائی "ثقة"[9] ابوحاتم رحمه الله فرمائی ,,ثقة صدوق،،_[10]
قرة بن خالد رحمه الله فرمائی ,, ما معتمرعندنا دون سلیمان التیمی،،_[11] یعنی ,,معتمر،، زمونږ په نیز د سلیمان التیمی نه کم نه دې،،_
ابن سعد رحمه الله فرمائی ,, کان ثقة،،_[12]

---

[1] تهذیب التهذیب(۱۰/۱۰۹)-
[2] الثقات لابن حبان(۹/۲۰۰)-
[3] سیراعلام النبلاء(۱۰/۵۹۱)-
[4] تقریب التهذیب(ص۵۲۸) رقم(۶۵۹۸)-
[5] تهذیب التهذیب(۱۰/۱۰۹)-
[6] التاریخ الکبیر للبخاری(۷۲،۷۳/۸)رقم(۲۲۰۹)-
[7] تهذیب الکمال(۲۸/۲۵۰)-
[8] تهذیب الکمال(۲۸/۲۵۳،۲۵۰)-
[9] تهذیب الکمال(۲۸/۲۵٤)-
[10] الجرح والتعدیل (ج۸ص٤٦۱)، رقم (۱۵۱۵۲)_
[11] حواله بالا _
[12] الطبقات (ج۷ص۲۹۰)_

امام عجلی رحمه الله فرمائی ,, بصری ثقة،، ـ (۱)

امام احمد رحمه الله فرمائی ,, ماکان احفظ معتمر بن سلیمان، قلما کنا نسأله عن شئ الاعنده فیه شئ،، ـ (۲)

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی ,, احد الثقات الاعلام،، ـ (۳)

دغه شان هغوی فرمائی ,, کان راسا فی العلم والعبادة کأبیه،، ـ (۴) یعنی ,, دخپل والدپشان دی هم په علم اوعبادت کښې فائق وو،، ـ حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی ,, ثقة،، ـ (۵)

البته امام یحیی القطان رحمه الله فرمائی ,, اذاحدثکم المعتمر بشيئ فاعرضوه، فانه سيئ الحفظ،، ـ (۶) یعنی ,, معتمرچې کله تاسوته حدیث بیانوی نودې لره هغې نورو احادیثوسره موازنه کوئ، ځکه چې دې دحافظه په اعتبار سره کمزورې دې،، ـ

دغه شان ابن دحیه هم دامام ابن معین رحمه الله نه نقل کړی دی ,, لیس بحجة،، ـ (۷)

دغه شان ابن خراش وائی ,, صدوق یخطئ من حفظه، واذاحدث من کتابه فهوثقة،، ـ (۸) لیکن حافظ ذهبی رحمه الله دهغه په باره کښې ددې قسمه اقوال نقل کولوسره فرمائی ,, هوثقة مطلقا،، (۹)

داعین ممکنه ده چې امام یحیی القطان رحمه الله دهغه صرف دحافظه په بنیاد باندې دروایت شده احادیثوپه باره کښې فرمائیلې وی، دامام یحیی بن معین رحمه الله تبصره هم په دې باندې محمول کولوشی ځکه چې په خپله هم دهغه نه ددهٔ توثیق منقول دې، کوم چې مونږ ذکرکړې دې ـ

بیا حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی ,, اکثرما اخرجه له البخاری مماتوبع علیه، واحتج به الجماعة،، (۱۰) یعنی ,, امام بخاری رحمه الله چې دهغه نه کوم احادیث روایت کړی دی داکثرو متابعت موجود دې او دهغې سره ټولواصحاب اصول سته احتجاج کړې دې،، ـ

ابن حبان رحمه الله هم دې په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې ـ (۱۱)

ددهٔ انتقال کال ۱۸۷ هجرې کښې شوې دې ـ (۱۲) رحمه الله تعالی رحمة واسعة

---

(۱) تهذیب التهذیب (ج۱۰ص۲۸)ـ
(۲) حواله بالا ـ
(۳) میزان الاعتدال (ج٤ص۱٤۲)، رقم (۸٦٤۸)ـ
(٤) الکاشف (ج۲۲۷۹)، رقم (٥٥٤٦)ـ
(٥) تقریب التهذیب (ص٥۳۹)، رقم (٦۷۸٥)ـ
(٦) تهذیب التهذیب (ج۱۰ص۲۲۸)ـ
(۷) میزان الاعتدال (ج٤ص۱٤۲)، رقم (۸٦٤۸)ـ
(۸) حواله بالا ـ
(۹) حواله بالا ـ
(۱۰) هدی الساری (ص٤٤٤)ـ
(۱۱) الثقات لابن حبان (ج۷ص٥۲۱، ٥۲۲)ـ
(۱۲) تهذیب الکمال (ج۲۸ص۲٥٥)

③ ابی: دا دمعتمربن سلیمان والد سلیمان بن طرخان[1] تیمی بصری رحمه الله دې، اصلا قبیله تیم سره ددۀ سره تعلق نشته،چونکه په دې کښې پاتې شوی وو ذدې وجې نه د..تیمی،، نسبت سره معروف شو۔[2]

دې دحضرت انس رضی الله عنه نه علاوه ابوعثمان نهدی،یزید بن عبدالله بن الشخیر،امام طاؤس، ابومجلز، یحیی بن یعمر،بکربن عبدالله المزنی،حسن بصری،ثابت بنانی قتاده،رقبه بن مصقله رحمه الله وغیره نه روایت کوی۔

او د دوی نه روایت کونکوکښې ابواسحاق سبیعی،معتمربن سلیمان،شعبه بن الحجاج، سفیان ثوری،حمادبن سلمه،یزیدبن زریع، عبدالله بن المبارک،هشیم بن بشیر، سفیان بن عیینه،اسماعیل بن علیه،یحیی القطان،محمد بن فضیل اویزیدبن هارون رحمهم الله وغیره ډیر حضرات دی۔[3]

امام شعبه رحمه الله فرمائی ,,مارایت احدا اصدق من سلیمان التیمی،،۔[4] یعنی ,, ما دسلیمان تیمی نه لوئ څوک صادق نه دې موندلې،،۔

امام احمدبن حنبل،امام یحیی بن معین او امام نسائی رحمهم الله فرمائی ,,ثقة،،۔[5]

امام عجلی رحمه الله فرمائی ,,تابعی ثقة وکان من خیار اهل البصرة۔[6] یعنی ,,دا تابعی اوثقه دې اود دوی شمیرداهل بصره په صالح ترین خلقوکښې کیږی،،۔

امام ابن سعد رحمه الله فرمائی ,,وکان ثقة کثیرالحدیث،،۔[7]

سفیان ثوری رحمه الله فرمائی ,, حفاظ البصریین ثلاثة : سلیمان التیمی، وعاصم الاحول، وداود بن ابی هند، وکان عاصم احفظهم،،۔[8] یعنی ,, دبصرې اعلی ترین حافظ حدیث درې دی یوسلیمان تیمی، دویم عاصم الاحول، دریم داود بن ابی هند، بیا په دې ټولوکښې عاصم دټولونه زیات احفظ دې،،۔

---

[1] د ,,طرخان،، د تلفظ په سلسله کښې علامه مجدالدین فیروز آبادی اوعلامه زبیدی رحمه الله فرمائی ,,(طرخان بالفتح ولاتضم) انت (ولاتکسر،وان فعله المحدثون) والصواب : الاقتصار علی الفتح،،۔ تاج العروس (ج۲ص۲۶۹)۔ حافظ ابن حجر رحمه الله په هدی الساری کښې ,,طاء،، باندې صرف کسره ضبط کړې ده ۔ اوګورئ (۲۲۲۰) اوحافظ مغلطائی رحمه الله د ابوعلی جیانی رحمه الله کتاب ,,تقلید المهمل،، نه نقل کړی دی ,, طرخان بکسر الطاء المهمله،ویقال : بضمها،،۔ اوګورئ اکمال تهذیب الکمال (ج۶ص۷۰)

[2] اوګورئ تهذیب الکمال (ج۱۲ص۵)۔

[3] دشیوخو اوتلامذه دپاره اوګورئ تهذیب الکمال (ج۱۲ص۸)۔

[4] تهذیب الکمال (ج۱۲ص۸)۔

[5] تهذیب الکمال (ج۱۲ص۸)۔

[6] تهذیب الکمال (ج۱۲ص۸)۔

[7] الطبقات الکبری (ج۷ص۲۵۲)۔

[8] تهذیب الکمال (ج۱۲ص۹)، والجرح والتعدیل (ج٤ص۱۲۱)۔رقم (۵۶۵۸)۔

ابن حبان رحمه الله په كتاب الثقات كښې فرمائي ,, كان من عباد اهل البصرة وصالحيهم ثقة، واتقانا، وحفظا، وسنة،، ـ [1]
امام دارقطني رحمه الله دوی لره ثقه ، او رجل حافظ ګرزولې دې ،، ـ [2]
حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي ,, الامام احد الاثبات،، ـ [3]
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي ,, ثقة عابد،، ـ [4]
البته امام يحيى بن معين رحمه الله نه منقول دی چې دوی به تدليس كولو ـ [5]
غالبا هم دا وجه ده چې امام بخاري رحمه الله فرمائي ,, وما روی عن الحسن وابن سيرين فهو صالح اذا قال : سمعت اوقلت،، ـ [6]
سليمان تيمي رحمه الله د ډيرو تابعينو نه روايت كوی، ليكن علماؤ ددې تصريح كړې ده چې دۀ ته ددوی نه سماع حاصله نه ده، دغه شان سليمان تيمي د نافع، عطاء عكرمه، اوسعيد بن المسيب نه چې كوم رواياتونه نقل كوی هغه مراسيل دی ـ [7]
اودوی دحضرت انس رضي الله عنه نه روايت كوی، نوحافظ ابن حجر رحمه الله ,, سليمان عن ابي مجلزعن انس،، په طريق سره مروی ډيرو روايت لاندې فرمائي :
,, وقد تقدم في ,, باب الحمد للعاطس ,, لسليمان التيمي حديث عن انس بلا واسطة، وقد سمع من انس عدة احاديث،، وروی عن اصحابه عنه عدة احاديث وفيه دلالة على انه لم يدلس،، ـ [8]
يعني ,, د سليمان تيمي يو حديث كوم چې هغه دحضرت انس رضي الله عنه نه بلاواسطه نقل فرمائي ,, باب الحمد للعاطس،، كښې تير شوې دې، دې دحضرت انس رضي الله عنه نه بلا واسطه څو احاديث روايت كوی. او ډير رواياتونه هم دحضرت انس رضي الله عنه نه بالواسطه روايت كوی ـ اودا ددې خبرې دليل دې چې دې تدليس نه كوی ،، ـ
ددوی تدليس ـ على سبيل التسليم ـ داسې ووچې علماؤ ددې تحمل كړې دې، دغه شان حافظ مزي رحمه الله ددوی دتدليس هرو څه ذكر نه دې كړې ـ

[1] اكمال تهذيب الكمال لمغلطای (ج٦ص ٧٠) وتهذيب التهذيب (ج ٤ص٢٠٢)ـ
[2] تعليقات تهذيب الكمال (ج١٢ص١٣)ـ
[3] ميزان الاعتدال (ج٢ص٢١٢) رقم (٣٤٨١)ـ
[4] تقريب التهذيب (ص٢٢٥)، رقم (٢٥٧٥)ـ
[5] كما في رواية الدوری عن ابن معين ـ انظر تعليقات الكاشف (ج ١ص ٤٦١)، رقم (٢١٠٢) ـ
[6] التاريخ الكبير(ج ٤ص ٢١)، رقم (١٨٢٨)، وفي تهذيب التهذيب (ج٤ص٢٠٢) : ..اذا قال :سمعت اوحدثنا ـ
[7] اوګورئ تهذيب التهذيب ـج ٤ص٢٠٣، ٢٠٢)ـ
[8] فتح الباري (ج ١١ص٢٣)، كتاب الاستئذان، باب آية الحجاب ـ

دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله هم په ,,هدی الساری،، کښې چې په کوم فصل کښې متکلم فیه رواة د بخاری ذکر کړی دی هغې کښې ئې ددوی تذکره نه ده کړې ـ

حافظ ابن حجر رحمه الله دې لره په خپله رساله ,,تعریف اهل التقدیس بمراتب الموصوفین بالتدلیس،، کښې ,,په مرتبه ثانیه،، کښې ذکر کړې دی،او دا مرتبه دهغې حضراتو دپاره مخصوص ده کومو چې به ډیر کم تدلیس کولو، او ائمه ددوی دتدلیس تحمل کولوسره ددوی داحادیثو په خپلو کتابونو کښې تخریج کړې دې ـ [1]

ددوی مناقب بې شمیره دی، دتفصیلی حالاتو او واقعاتو دپاره کتب سیر اوخاص طور باندې ,,حلیة الاولیاء،، [2] ته مراجعت اوکړئ ـ

۱۴۳هجرې کښې هغوی وفات شوې دې ـ [3] رحمه الله تعالی رحمة واسعة

④ **حضرت انس** رضی الله عنه: د حضرت انس رضی الله عنه حالات د کتاب الایمان،، باب من الایمان ان یحب لاخیه ما یحب لنفسه،، لاندې تیرشوی دی ـ [4]

**قوله: قَالَ ذُكِرَ لِي أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ لِمُعَاذٍ:** حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چې ماته بیان شو چې حضور صلی الله علیه وسلم حضرت معاذ رضی الله عنه ته اوفرمائیل ـ

دلته ,, ذُکِرلی،، دمجهول صیغه ده، حافظ رحمه الله فرمائی چې دحضرت انس رضی الله عنه ته چا بیان کړو ؟ په یو طریق کښې هم ماته ددې صراحت ملاؤ نشو[5] دغه شان شاته دحضرت جابر رضی الله عنه روایت تیرشوې دې،چې په هغې کښې هغه فرمائی ,, اخبرنا من شهد معاذا حین حضرته الوفاة......،، [6] په دې کښې هم د ,, من شهد،، مصداق څوک دې ؟ یقینی طور باندې معلوم نه دی، بخپله براه راست دې دواړو حضراتو دحضرت معاذ رضی الله عنه نه ددې حدیث سماع معلومه نه ده،ځکه چې دحضرت معاذ رضی الله عنه انتقال په وخت شام کښې کیدوبه دغه وخت کښې حضرت انس رضی الله عنه اوحضرت جابر رضی الله عنه په مدینه منوره کښې وو ـ [7]

البته دصحیح بخاری په کتاب الجهاد کښې هم داسې یوروایت دحضرت معاذ رضی الله عنه نه مروی دې کوم چې دهغوی نه عمروبن میمون اودی رحمه الله نقل کوی،[8] دې دمشهور مخضرمینونه

---

[1] اوګورئ: تعریف اهل التقدیس بمراتب الموصوفین بالتدلیس (ص۱۳و۳۳) وتعلیقات الکاشف (ج ۱ص۴۶۱)، رقم (۲۱۰۲)ـ

[2] اوګورئ: حلیة الاولیاء (ج۳ص۲۷_۳۷)ـ

[3] الکاشف (ج۱ص۴۶۱)،رقم (۲۱۰۲)ـ

[4] کشف الباری (ج۲ص۶)ـ

[5] فتح الباری (ج۱ص۲۲۷)ـ

[6] مسند احمد (ج۵ص۲۳۷)، رقم (۲۲۴۱۰)ـ

[7] فتح الباری (ج۱ص۲۲۷)ـ

[8] صحیح البخاری (ج۱ص۴۰۰)، کتاب الجهاد،باب اسم الفرس والحمار، رقم (۲۸۵۶)ـ

دي، دغه شان امام نسائي په سنن کبری کښې هم داسې قسمه روايت دحضرت معاذ ﷺ نه حضرت عبدالرحمن بن سمره ﷺ نقل کوی [1] ددې دواړو روايتونو نه استيناس کيديشی چې دلته حضرت انس اودغه شان دحضرت جابرورانديې نقل کولووالا عمروبن ميمون يا عبدالرحمن بن سمره کښې به يووی ـ [2]

**قوله: مَنْ لَقِيَ اللَّهَ لَا يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا دَخَلَ الْجَنَّةَ:** کوم سړې چې الله تعالی سره په دې حال کښې ملاؤ شی چې الله تعالی سره ئې هيڅ څيزهم شريک نه ئی جوړ کړې نوهغه به جنت کښې داخليږی

بعضې حضرات وائي چې ,, من لقي الله،، نه مراد دې ,, من لقي الاجل الذی قدره الله، يعنى الموت،، ګويا دلقاء الله نه ,,مرګ،، مراد دې، داهم امکان دې چې ,,لقاء الله،، نه بعث،،يا،، رؤيت باری،، مراد وی [3] يعنې په کومه ورځ چې به دوباره ژوندی راپاسی،يا په کومه ورځ باندې چې به دالله تعالی رؤيت حاصليږی اوهغه کله شرک نه وی کړې نوهغه به جنت کښې داخليږی.

بيا دلته ,, لايشرك به شيئا،، کښې صرف په نفی اشتراک باندې اکتفاکړې شوې ده. داثبات توحيد ذکرنه دې کړې،ليکن اقتضاء دلته ,,توحيد،، ملحوظ دې، دغه شان,,توحيد،،سره سره اثبات رسالت او نورضروريات هم لزوما ملحوظ دی ـ

او دا داسې دی څنګه چې وئيلې کيږی ,,من توضا صحت صلاته،،ـ
اوددې مطلب دا وی چې چا اودس اوکړو اودنوروشرائطولحاظ ئې هم اوساتی نودده مونځ به درست وی ـ
اوس به دمذکوره عبارت مطلب داوی چې دکوم سړی مرګ په داسې حال کښې راغلې وی چې هغه په هغې تولواموروباندې ايمان لری په کوموچې ايمان لرل ضروری وی نوهغه به جنت ته داخليږی ـ [4]

دلته د ,, دخل الجنة،، الفاظ دی، چې په کوم کښې دجنت د دخول عمومی خبر دې،که قبل التعذيب داخل وی اوکه بعد التعذيب، اوددې نه وړمبی حديث کښې ,,حرمه الله على النار،، الفاظ وونو هلته هغه مشهور اشکال راپيښ شوې وو دکوم تقريرچې مونږ کړې دې او وئيلې مو دی چې دې حديث نه مرجئو استدلال کړې دې او ددې ترديدهم په تفصيل سره راغلې دې، ليکن دا اشکال به په دې حديث باندې نه کيږی ـ [5] والله اعلم

---

[1] اوګورئ سنن النسائی الکبری (ج۶ص۲۷۹)، کتاب عمل اليوم والليلة،باب ثواب من کان يشهد ان لا اله الا الله،رقم (۱۰۹۷۵ـ۱۰۹۷۸)ـ
[2] فتح الباری (ج۱ص۲۲۷و۲۲۲۸)ـ
[3] فتح الباری (ج۱ص۲۲۷و۲۲۸)ـ
[4] فتح الباری (ج۱ص۲۲۸)ـ
[5] فتح الباری (ج۱ص۲۲۸)ـ

**قوله**: . قَالَ أَلاَ أُبَشِّرُ النَّاسَ: حضرت معاذ ﷺ عرض اوكړوچې زۀ هغې خلقوته خوشخبري نه اوروم ؟

**قوله** قَالَ «لاَ»: نو هغوى اوفرمائيل نه، يعنى خلقوته داخوشخبرى مه اوروه.

**قوله**: إِنِّي أَخَافُ أَنْ يَتَّكِلُوا»: ماته ويره ده چې هغوى به په دې باندې تكيه اولګوى اوكينى به.

په بعضونسخوكښې د ,,انى،، لفظ موجود نه دې اوعبارت داسې دې ,,لا اخاف ان يتكلوا،، په دې صورت كښې ياد ساتل پكار دى چې مطلب هم هغه دې كوم چې مونږ شاته بيان كړې دې ,,يعنى، ,لا،، مستقل جمله ده او ,,اخاف ان يتكلوا،، جمله استينافيه ده _او مطلب دې ,, لاتبشرهم، فانى اخاف ان يتكلوا ،،_( [1] )

دا خبره دحسن بن سفيان په مسندكښې په وضاحت سره راغلې ده، چې دهغې الفاظ دى ,,قال :لا دعهم فليتنا فسوانى الاعمال، فانى اخاف ان يتكلوا،،( [2] ) يعنى ,,هغوى ته خوشخبرى مه اوروه بلكه هغوى لره په اعمالوكښې ديوبل نه مخكښې كيدو ته پريګده،خكه چې ماته ويره ده،چې هغوى به خوشخبرى اوريدو سره په دې باندې تكيه اولګوى اوكينى به،،._

**دحديث باب دترجمة الباب سره مناسبت** : دمذكوره باب لاندې د دواړو حديثونو دترجمة الباب سره مطابقت بلكل واضح دې چې په هغې كښې دحضور اكرم ﷺ حضرت معاذ بن جبل ﷺ لره دعلم خبره ښودل اوبيا دعاموخلقو دښودنې نه منع كول مذكور دى _ والله سبحانه وتعالى اعلم

## ۵۰ - باب: الْحَيَاءِ فِي الْعِلْمِ.

,,حيا،، سره متعلق جمله امور مونږ په تفصيل سره شاته ذكر كړى دى _ ( [3] )

**باب سابق سره مناسبت** : ددې باب دسابق باب سره مناسبت دا دې چې سابقه باب كښې ذكردى چې په مخصوص حالت كښې ديوعلم خاص خاص خلقوسره تخصيص كيدشى _ اوس په دې باب كښې امام بخارى رحمه الله تنبيه كول غواړى چې كوم يو كس دا اوګنړى چې دا علم دچاسره خاص دې، نودتپوس كولو نه دې حيا نه كوى چې دحيا دوجې نه كينى، بلكه دۀ لره پكار دى چې په هرصورت كښې دامور دينيه او امور دنياويه متعلق سوال كوى اوپه دې سلسله كښې دې دحيا نه كار نه اخلى _ ( [4] ) والله اعلم_

**مقصد دترجمة الباب** :امام بخارى ددې ترجمه نه څه بيانول غوښتل غواړى ؟

---

[1]) فتح البارى (ج۱ص۲۲۸)_

[2]) فتح البارى (ج۱ص۲۲۸)_

[3]) اوګورئ كشف البارى (ج۱ص ۶۷۱-۶۷۶) كتاب الايمان،باب امورالايمان _

[4]) اوګورئ عمدة القارى (ج۲ص۲۱۰)_

عام شارحين حافظ ابن حجر[1]، علامه سندهي[2]، شاه ولي الله رحمه الله[3] وغيره رائي دا ده چې امام بخاري رحمه الله دحياء في العلم مذمت بيانول غواړي او دا ښودل غواړي چې علم کښې حيا نه ده کول پکار، ځکه څوک چې په علم کښې حيا کوي هغه دعلم نه محرومېږي، د امام مجاهد اثر او بيا دحضرت ام سلمه رضي الله عنها روايت او دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما واقعه ددې حيا دمذموم کيدو باندې دال دي۔

خود ابن بطال، کرماني، شيخ الاسلام زکريا انصاري، علامه عيني اوحضرت کشميري رحمه الله[4] رائې دا ده چې دلته د امام بخاري رحمه الله غرض تفصيل دې چې بعضومواقعوکښې حيا کول مذموم ده اوترک حيا محمود دی او په بعضې مقاماتوکښې ترک حيا مذموم ده اوحيا کول محمود ده۔

چرته چې استعمال حيا مطلوب وي اوممدوح وي دهغې داثبات دپاره دحضرت ام سلمه رضي الله عنها اودحضرت ابن عمر رضي الله عنهما رواياتونه راوړلي دي او چرته چې ترک حيا مطلوب اومحمود دی هلته دحضرت عائشه رضي الله عنها او دامام مجاهد رحمه الله اثر ئې ذکرکړې دې۔

حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائي : ,,مؤلف ,ترجمه مطلقه کيخوده، عدم استحباب اواستحباب څه ئې هم اونه وئيل، په ظاهره باندې معلومېږي چې عدم استحباب مقصود دې، کما صرح به الاعلام اوقول دمجاهد رحمه الله اوقول دصديقه رضي الله عنها نه هم دا ظاهره ده،خو دتامل نه پس دامعلومېږي چې د مؤلف په ذهن کښې ددې څه تفصيل شته،ددې اشاراتونه ښودل غواړي، ځکه ئې دترجمه سره دحکم تصريح نه ده فرمائيلې، ارشاد ،، ان الله لا يستحي من الحق ،، سراسر حق اومسلم دې، خودمؤلف مقصود دا دې چې ددې معنی دا ده چې په وجه دحيا دعلم او تفقه نه محرومه پاتې نشي، دا مطلب نه دې چې حيا دې نه کوي او دتعليم اوتعلم په وخت دې حيا خاتمه نه پرېږدي، چې څه وئيل غواړي بغير دسوچ اوفکر نه دې وائي،،۔

خلاصه دا چې په ترجمة الباب ,, الحياء في العلم،، کښې دوه خبرې قابل لحاظ دي،اصل دا چې دحيا دوجې نه دعلم اوتعلم نه محروم پاتې نشي اوبه دې کښې چاته تامل نشي کيدې، ددې دتائيد دپاره مؤلف ,,ترجمه،، لاندې دمجاهد رحمه الله اثر اودحضرت صديقه رضي الله عنها اثربيان کړه اوبه دې باندې ئې قناعت اوکړو۔

دوئم دا چې په تعليم اوتعلم کښې حتی الوسع حيا کول مستحسن دی، يعنی مواقع حيا کښې خوهرګز دې داسې نه کوي چې دعلم نه محروم پاتې شي خودمحرومې نه دبچکيدوسره ځومره چې حيا کولوشي نودامستحسن دی ,, الحياء من الايمان،، او ،، الحياء خير کله،، په دې

---

[1] فتح الباري (ج۱ص۲۲۹)_
[2] حاشية السندي على صحيح البخاري (ج۱ص۷۱)_
[3] شرح تراجم ابواب صحيح البخای (ص۱۶)_
[4] اوګورئ شرح صحيح البخاري لابن بطال (ج۱ص۲۱۰)_ وشرح الکرماني (ج۲ص۱۶۰)_ وتحفة الباري (ج۱ص۱۴۵)_ وعمدة القاري (ج۲ص۲۱۰) وفيض الباري (ج۱ص۲۲۷)_

جزء كښې قدرې خفاء ده او دمؤلف دطرز نه معلوميږي چې مقصود اصلي ددې جزء بيان كول دي ـ
اوپه دې باب كښې ئې دوه حديثونه بيان كړي دي. هغه دواړه ددې جزء دليلونه دي ـ په اول حديث كښې چې كوم دحضرت ام سليم رضي الله عنها قصه مذكور ده دهغې نه خوبالبداهت دحيا ثبوت دوباره اوذريم باره كيږي. اوګورئ ام سليم چې حاضره شوه اوقبل السوال ئې چې كوم عرض اوكړو ,,يا رسول الله، ان الله لا يستحيي من الحق،، داحيا نه ده نوڅه دي ؟ حضرت ام سلمه رضي الله عنها ته نسبت دې ,, فغطت ام سلمة وجهها،، نوهغوي اوفرمائيل ,, تربت يمينك فبم يشبهها ولدها،، ارشاد ,,تربت يمينك،، نه دحيا نبوي ډيره لطيفه خوشبو راوزي. خوپه دې حالت حيا كښې هم دتعليم اوتعلم فرض چې څنګه كيدې شواداء ئې كړو اومقصود لره ئې فوت كيدو ته پرې نه خو۔
زمونږ د معروضاتو دتائيد دپاره يوه قوي قرينه دا هم ده چې ددې باب نه پس دويم باب ,, من استحيا فامر غيره بالسؤال،، منعقد كولوسره ئې دحضرت علي رضي الله عنه روايت ,, كنت رجلا مذاء ....،، بيان كړي دي ـ چې دهغې نه معلوميږي چې په وجه دحيا نه دسؤال ترک كولو كښې څه حرج نشته، البته پكاردي چې دبل چا په وسطه سره دحكم شرعي نه خان خبركړې شي، دعلم نه محرومه پاتې نشي ـ
اوس پاتې شودويم روايت، يعني دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما روايت كوم چې په ابواب العلم كښې مكرر تير شوې دې :,, ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال : ان من الشجر شجرة لا يسقط ورقها ..... ددې په مطابقت كيدشي چاته تردد وي، خومعروضاتو سابقه مطابق هم دا ذهن ته رازي چې دمؤلف رحمه الله غرض هم دا دې چې ابن عمر په وجه دحيا كوم سكوت اختيار كړو اوجواب ئې ور نه كړو دا حيا هم مستحسن ده، داحيا هغه نه ده كومه ,, ان الله لا يستحيي من الحق،، يا ,, لايتعلم العلم مستحي ولا مستكبر،، مخالف ده ـ ددې مخالف صرف هغه ده كوم چې دحيا دوجې نه علم ترک كړي ـ دچا نه تپوس نه كوي او دعلم نه محروم پاتې شي ـ دحضرت ابن عمر په سكوت كښې هم ددې احتمال نشته، اول خود اسكوت عن الجواب دې، عن السؤال نه دې، دويم ابن عمر رضي الله عنهما ته پته وه چې كوم جواب واقعي جواب دې هغه به نبي كريم صلى الله عليه وسلم ارشاد فرمائي چې ټولوته به معلومه شي، باقي دحضرت عمر رضي الله عنه ارشاد هغه صرف دمسرت قلبي اظهار دپاره وو، دې نه دابن عمر رضي الله عنهما دسكوت كراهيت اوهغه هم شرعي، دپوهې نه ډيره لرې ده، كما قال بعض الاعلام ـ والله تعالى اعلم،، ـ (۱)

**قوله: وَقَالَ مُجَاهِدٌ لاَ يَتَعَلَّمُ الْعِلْمَ مُسْتَحْيٍ وَلاَ مُسْتَكْبِرٌ:** امام مجاهد رحمه الله فرمائي حيا كولو والا علم نشي حاصلولې او دتكبر كولو والا ـ
امام مجاهد بن جبر مكي رحمه الله حالات هم په كتاب العلم كښې ,, باب الفهم في العلم،، لاندې

(۱) الابواب والتراجم (ص۵۹ او ۶۰)ـ

تيرشوى دى ـ [۱]

**دامام مجاهد رحمة الله ددې اثر تخريج** دامام مجاهد رحمه الله مذكوره اثر لره ابو نعيم رحمه الله په ,, حلية الاولياء،، امام دارمى رحمه الله په خپل ,, سنن،، كښې عبدالغنى بن سعيد رحمه الله په ,, ادب المحدث،، كښې او امام بيهقى رحمه الله په ,, المدخل،، كښې موصولا تخريج كړې دې ـ [۲]

**د مذكوره اثر مطلب** دامام مجاهد رحمه الله مذكوره اثرمطلب واضحه دې چې كوم سړى كښې حيا وى يا تكبر وى هغه علم نشى حاصلولې ـ

د ,,حيا،، مطلب دا دې چې طالب علم په خپل زړه كښې دا اوګنړى چې كه ما دسوال اوكړو نو خلق به څه وانى چې دۀ ته خوځه هم نه دى معلوم. دۀ ته خو دا وړه شان خبره هم نه ده معلومه ـ اومتكبره سړې دا فكر كوى اوهو: كه زۀ سوال كوم نودخلقوپه وړاندې به زما سپكاوې وى اوزۀ به سپک اوګنړلې شم. حالانكه زما په وړاندې دنور خلقو څه حيثيت دې.

علامه عينى رحمه الله فرمائى ,, وللعلم آفات، فاعظمها : الاستنكاف، وثمرته : الجهل والذلة فى الدنيا والآخرة،، ـ [۳] يعنى ,,علم سره ډير آفتونه لګيدلى دى. په دې كښې دټولونه لوئ آفت تكبر دې او ددې نتيجه جهالت سره سره په دنيا او آخرت كښې ذلت ظاهريږى،، ـ

امام ابوحنيفه رحمه الله نه چا تپوس اوكړو چې دا عظيم علم تاسو څنګه حاصل كړو؟ نو وئى فرمائيل ,, ما بخلت بالإفادة ولا استنكفت عن الاستفادة،، ـ [۴] يعنى ,,ما نورو ته علمى فائده رسولو كښې بخل نه دې كړې او نه ما دبل چانه په استفاده كولو كښې عار نه دې اوګنړلو،، ـ

**قوله: وَقَالَتْ عَائِشَةُ نِعْمَ النِّسَاءُ نِسَاءُ الْأَنْصَارِ لَمْ يَمْنَعْهُنَّ الْحَيَاءُ أَنْ يَتَفَقَّهْنَ فِي الدِّينِ :** حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چې دانصارو زنانه څه ډيرې ښې دى ددين دپوهې په سلسله كښې هغوى لره حيا نه مانع كيږى ـ

دحضرت عائشه رضي الله عنها مختصر حالات د ,,بدء الوحى،، په دويم حديث سره تيرشوى دى ـ [۵]

**د حضرت عائشه رضي الله عنها دمذ كوره اثر تخريج :** دې اثر لره امام مسلم رحمه الله په خپل ,,صحيح،، كښې [۶]، امام ابوداود رحمه الله په خپل سنن كښې [۷]

---

[۱] اوګورئ: كشف البارى (ج۳ص ۳۰۷)ـ

[۲] اوګورئ: حلية الاولياء لابى نعيم (ج۳ص۲۸۷)ـ وسنن الدارمى (ج۱ص۱۴۷) المقدمة، باب البلاغ عن رسول الله صلى الله عليه وسلم وتعليم السنن، رقم (۵۵۱) ـ وتغليق التعليق (ج۲ص۹۳)ـ

[۳] عمدة القارى ج۲ص ۲۱۰)ـ

[۴] عمدة القارى ج۲ص ۲۱۰)ـ

[۵] كشف البارى (ج ۱ص۲۹۱)ـ

[۶] صحيح مسلم، كتاب الحيض، باب استحباب استعمال المغتسلة من الحيض فرصة من مسك فى موضع الدم، رقم (۷۵۰)ـ

[۷] سنن ابى داود، كتاب الطهارة، باب الاغتسال من المحيض، رقم (۳۱۶)ـ

امام ابن ماجه رحمه الله په خپل سنن كښې (۱)، امام احمد رحمه الله په خپل "مسند" كښې (۲) او امام عبدالرزاق صنعانى رحمه الله په "مصنف" كښې (۳) موصلا تخريج كړې دې - (۴)

**دمذكوره اثارو دترجمة الباب سره مطابقت** ددې دواړو آثارو مطابقت دترجمة الباب سره واضحه دې چې دعلم په سلسله كښې حيا لره مانع نه دى جوړول پكار، نودغه شان دامام مجاهد رحمه الله اثرپه دې خبره باندې دليل دې چې كوم سړې حيا لره مانع جوړه وى نوهغه به علم حاصل نه كړى، لهذا د طلب علم په سلسله كښې ترک حيا مطلوب او محمود ده -

دغه شان دحضرت عائشه رضي الله عنها اثر په ښكاره طور باندې دلالت كوى چې دعلم اوفقه حاصلولو په سلسله كښې حيا مانع ګرزول صحيح نه دى، ځكه چې دانصارو زنانو تعريف اومدحه په دې سلسله كښې كړې شوې ده چې هغوى په طلب علم كښې دترک حيا نه كار اخستې دې، كوم چې په دې ځې كښې محمود اومطلوب دې - (۵)

"نعم" فعل مدح دې، او دې سره كله تاء د تانيث لګوى كوم چې ددې فعل دكيدو دليل اوعلامت دې اوكله ددې دغير منصرف كيدو دوجې نه تاء دتانيث نه بغير استعماليږى، ګويا چې په دې كښې دحرف مشابهت پيدا كيږى، دلته دحضرت عائشه رضي الله عنها په كلام كښې په دې دويمې طريقې سره "نعم النساء..." استعمال شوې دې - (۶) والله علم -

[۱۳۰] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ قَالَ أَخْبَرَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ أَبِيهِ عَنْ زَيْنَبَ ابْنَةِ أُمِّ سَلَمَةَ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ (۷) قَالَتْ جَاءَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -

---

(۱) سنن ابن ماجه، كتاب الطهارة،باب فى الحائض كيف تغتسل ؟ رقم (۶۴۲)_

(۲) مسند احمد (ج۶ص۱۴۸)، رقم (۲۵۱۶۰)_

(۳) مصنف عبدالرزاق (ج۱ص۳۱۴)، كتاب الحيض، رقم (۱۲۰۸)_

(۴) مزيد تفصيل دپاره اوګورئ تغليق التعليق (ج۲ص۹۵و۹۴)_

(۵) عمدة القارى ج۲ص ۲۱۰)_

(۶) عمدة القارى ج۲ص ۲۱۰)_

(۷) قوله : ام سلمه رضى الله عنها : احديث اخرجه البخارى ايضا فى صحيحه (ج ۱ص۴۲) كتاب الغسل (الوضوء)،باب اذا احتلمت المراة رقم (۲۸۲)، و(ج ۱ص۴۶۸و ۴۶۹) كتاب احاديث الانبياء باب : ۰ واذ قال ربک للملا ئكة انى جاعل فى الارض خليفة) رقم (۳۳۲۸) و(ج۲ص۹۰۰) _كتاب الادب،باب التبسم والضحک، رقم (۶۰۹۱) و(ج۲ص۹۰۴)_ كتاب الادب،باب مالايستحيامن الحق للتفقه فى الدين، رقم (۶۱۲۱) _ ومسلم فى صحيحه، فى كتاب الحيض،باب وجوب الغسل على المراة بخروج المنى منها، رقم (۸۱۲)_ والترمذى فى جامعه فى كتاب الطهارة، باب غسل المراة ترى فى منامها مايرى الرجل،رقم (۱۲۲)_ والنسائى فى سننه الصغرى،فى كتاب الطهارة، باب غسل المراة ترى فى منامها ما يرى الرجل، رقم (۱۹۷)، وفى سننه الكبرى، فى كتاب الطهارة، باب ايجاب الغسل على المراة اذا احتلمت ورات الماء، رقم (۲۰۱)_ وابن ماجه فى سننه،فى كتاب الطهارة باب فى المراة ترى فى منامها مايرى الرجل،رقم (۶۰۰)_ واحمد فى مسنده (ج۶ص۳۰۶) مسند ام سلمة،رقم (۲۷۱۴۸)___

فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ اللهَ لَا يَسْتَحْيِي مِنَ الْحَقِّ، فَهَلْ عَلَى الْمَرْأَةِ مِنْ غُسْلٍ إِذَا احْتَلَمَتْ قَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- «إِذَا رَأَتِ الْمَاءَ». فَغَطَّتْ أُمُّ سَلَمَةَ -تَعْنِي وَجْهَهَا- وَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللهِ وَتَحْتَلِمُ الْمَرْأَةُ قَالَ «نَعَمْ تَرِبَتْ يَمِينُكِ فَبِمَ يُشْبِهُهَا وَلَدُهَا».

## رجال الحديث

① **محمد بن سلام** : دا ابو عبدالله محمد بن سلام بن الفرج السلمي البيكندي رحمه الله دې، ددهٔ حالات په كتاب الايمان، باب قول النبي صلى الله عليه وسلم : انا اعلمكم بالله، وان المعرفة فعل القلب....، لاندې تيرشوي دي. (١)

② **ابو معاويه** : دا محمدبن خازم التميمي السعدي الكوفي رحمه الله دې، ابومعاويه ددهٔ كنيت دې، په بچپن كښې دڅلورو يا اتهوكالوپه عمر كښې نابينا شوې وو، دې وجې نه به ابومعاويه الضريرنومې دو. (٢)

دې دامام اعمش، شعبه بن الحجاج، هشام بن عروه، يحيى بن سعيدالانصاري، ابواسحاق شيباني اوابومالك اشجعي رحمهم الله وغيره حضراتونه روايت كوى.

اوددهٔ نه روايت كونكوكښې ددوى شيخ ابن جريج، اعمش، يحيى بن سعيد القطان، احمد بن حنبل، يحيى بن معين، ابوبكربن ابى شيبه، عثمان بن ابى شيبه، اوخيثمه، قتيبه بن سعيد، احمد بن منيع، صدقة بن الفضل او سعيد بن منصور رحمهم الله وغيره دي. (٣)

امام احمد او امام ابن معين نه تپوس اوكړې شوچې ابومعاويه اوپه جريركښې څوك زيات ستاسو په نزدډير قوى دې او خوښ دې؟ ونې فرمائيل داعمش داحاديثوپه سلسله كښې ابومعاويه زمونږ په نزد ډيرخوښ دې. (٤)

امام اعمش رحمه الله ابومعاويه ته خطاب كولوسره فرمائى ,, اما انت، فقد ربطت راس كيسك،،. (٥)

يعنى تا خودخپلې تيلۍ خله په مظبوطيا سره تړلې ده،، ګويا چې دقوت حفظ طرف ته اشاره ده.

امام شعبه رحمه الله فرمائى ,,هذا صاحب الاعمش فاعرفوه،،. (٦)

يعنى دا د اعمش خاص شاګرد دې، دهٔ لره ښه اوپيژنئ،،.

ابونعيم رحمه الله فرمائى چې ابومعاويه دې د اعمش سره شل كالوپورې وو. (٧)

په خپله ابومعاويه الضرير رحمه الله فرمائى ,, البصراء كانوا على عيالا عند الاعمش،،. (٨)

---

١) كشف البارى (ج٢ص٩٣).

٢) تعذيب الكمال (ج٢٥ص ١٢٣او ١٢٤).

٣) دشيوخاو تلامذه دتفصيل دپاره اوګورئ تعذيب الكمال (ج٢٥ص ١٢٤و١٢٨).

٤) تعذيب الكمال (ج٢٥ص ١٢٨).

٥) تعذيب الكمال (ج٢٥ص ١٣١).

٦) تعذيب الكمال (ج٢٥ص ١٣١).

٧) تعذيب الكمال (ج٢٥ص ١٣١).

٨) تعذيب الكمال (ج٢٥ص ١٣١).

يعنى .. د اعمش سره دحديثونو په سلسله كښې بيناګان حضرات هم زما محتاج وو..۔
ابومعاويه به فرمائيل:

,,كل حديث اقول فيه : ,, فهو ما حفظته من في المحدث، وما قلت : ,, وذكر فلان،، فهو مالم احفظه من فيه، وقرئ على من كتاب، فعرفته، فحفظته مما قرئ على،،۔ (١)

يعنى ,,كله چې د ,,حدثنا،، لفظ سره حديث بيان كومه نو ددې مطلب دادې چې ما دغه حديث براه راست دمحدث دژبې نه اوريدلې دې او چې كله زۀ د ,,ذكر فلان،، وئيلو سره روايت كوم نو ددې مطلب دا دې چې ما دغه حديث براه راست نه دې اوريدلې،زما دوړاندې ديو كتاب نه لوستې شوې دې، اوما هغې لره ياد كړې دې،،۔

احمد بن عمر الوكيعى رحمه الله فرمائى ,,ما ادركنا احدا كان اعلم باحاديث الاعمش من ابى معاوية،،۔ (٢)

امام عجلى رحمه الله فرمائى ,, كوفى ثقة، يرى الارجاء، وكان لين القول فيه،،۔ (٣)

امام نسائى رحمه الله فرمائى ,,ثقة،، (٤)

ابن خراش فرمائى ,,صدوق، وهو فى الاعمش ثقة، وفى غيره فيه اضطراب،، (٥) يعنى ,,دې صدوق دې، داعمش په احاديثو كښې ثقه دې، ددۀ نه علاوه د باقى حضراتو رواياتونو كښې څه اضطراب موندې شى۔،،

ابن حبان رحمه الله فرمائى ,,كان حافظا متقنا، ولكنه كان مرجئا،،۔ (٦)

يعقوب بن شيبه رحمه الله فرمائى ,, كان من الثقات، وربما دلس وكان يرى الارجاء،،۔ (٧) يعنى ,,هغه دثقاتونه دې، كله تدليس هم كوى، هغه د ارجاء قائل وو،،۔

امام ابوداود رحمه الله فرمائى ,,كان مرجئا،،۔ (٨) بلكه هغه فرمائى ,,ابومعاوية رئيس المرجئة بالكوفة،،۔ (٩)

---

(١) تعذيب الكمال (ج٢٥ص ١٣٢)۔
(٢) سير اعلام النبلاء (ج ٩ص٧٦)۔
(٣) سير اعلام النبلاء (ج ٩ص٧٦)۔
(٤) تعذيب الكمال (ج٢٥ص ١٣٢)۔
(٥) تعذيب الكمال (ج٢٥ص ١٣٢)۔
(٦) الثقات لابن حبان (ج٧ص٤٤٢)،ونقل كل من المزى والذهبى بعد قوله :,,كان مرجئا،، خبيثا،۔ انظر تهذيب الكمال (ج٢٥ص١٣٣) وسير اعلام النبلاء) (ج٩ص٧٧) ولم احد هذه الزيادة فى المطبوعة ۔
(٧) تعذيب الكمال (ج٢٥ص ١٣٢)۔
(٨) تعذيب الكمال (ج٢٥ص ١٣٢)۔
(٩) تعذيب الكمال (ج٢٥ص ١٣٢)۔

حافظ ذهبی رحمه الله ددهٔ به تذکره کښې لیکي ,, الامام الحافظ الحجة ..... احد الاعلام،، _ (١)
دغه شان هغه فرمائی ,, محمد بن حازم الضرير ثقة ثبت،، _ (٢)
ابن مسعود رحمه الله فرمائی ,, وكان ثقة كثير الحديث، يدلس، وكان مرجئا،، _ (٣)
حاصل دټولو اقوالو دادې چې ابو معاويه محمد بن حازم الضرير ثقه او متقن راوی دې، دامام اعمش په احاديثوکښې دهغه درجه ډيره لويه ده، اوچې کله دنورو حضراتونه کوم رواياتونه نقل کوی نوپه کښې هم غلطی کوی ـ
په دهٔ باندې چې بعضې حضراتوکوم کلام کړې دې دهغې حاصل دا دې چې دې دمرجئة بلکه ,, راس المرجئة،، نه وو، کله تدليس هم کوی اوداعمش نه علاوه د باقی حضراتوپه رواياتو لګ کمزورې وو ـ
ليکن عام محدثينوددهٔ روايات قبول کړی دی ـ ددې وجه داده چې ,, راس المرجئة،، کيدو باوجود ددهٔ داسې يو روايات هم مروی نه دې کوم نه چې دهغه دارجاء دبدعت ترويج کيږی ـ
ترکومې پورې چې د تدليس تعلق دې، نو اول خو دې ډير تدليس نه کوی اوبيا ددهٔ شمير په لوئ ائمه حديث کښې دې دچاچه معمولی تدليس نه علماء صرف نظرکړې دې ـ (٤)
ترکوم خې پورې چې دنورو حضراتوپه رواياتوکښې اضطراب اودکمزورې تعلق دې.نو په دې سلسله کښې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې امام بخاری رحمه الله اول خو دهغوی په احاديثو باندې اعتماد کړې دې کوم چې داعمش نه مروی دی، البته داعمش نه علاوه هشام بن عروه نه يوڅواحاديث ئې اغستی دی، خودهغې متابعات موجود دې، اود بريد بن ابی برده نه ئې هم يوحديث اغستې دې، دهغې متابعت هم موجود دې ـ (٥)
هم دا وجه ده چې حافظ ذهبی رحمه الله دهغه په باره کښې په واضحه طورباندې ليکلی دی چې ,, ثقة ثبت ما علمت فيه مقالا يوجب وهنه مطلقا،، _ (٦)
يعنی ,,دې ثقه اوثبت دې،ماته ددهٔ په باره هيڅ داسې کلام معلوم نه دې کوم چې مطلق دهغه کمزورې لره مستوجب وی ـ
په ١٩٤ه يا ١٩٥ه ددهٔ انتقال شوې دې ـ (٧)رحمه الله تعالى رحمة واسعة _

---

(١) سير اعلام النبلاء (ج٩ص٧٣)_
(٢) ميزان الاعتدال (ج٣ص٥٣٣)، رقم (٧٤٦٦)_
(٣) طبقات ابن سعد (ج٦ص٣٩٢)_
(٤) اوګورئ: تعريف اهل التقديس بمراتب الموصوفين بالتدليس (ص٣٦)_
(٥) اوګورئ: هدي الساري (ص٤٣٨)_
(٦) ميزان الاعتدال (ج٣ص٥٣٣)، رقم (٧٤٦٦)_
(٧) سير اعلام النبلاء (ج٩ص٧٧)_

④ **هشام** : دا هشام بن عروه بن الزبير بن العوام قرشى مدنى رحمه الله دي. ددهٔ تفصيلى حالات په كتاب الايمان ,, باب حسن اسلام المرء،، لاندې تير شوى دى ـ [1]

⑤ ابيه ,**عروة بن الزبير**,: دا حضرت عروة بن الزبير بن العوام قرشى اسدى مدنى رحمه الله دي،ددهٔ تفصيلى حالات هم په كتاب الايمان، باب حسن اسلام المرء،، لاندې تيرشوى دى ـ[2]

⑤ **زينب بنت ام سلمة**: دا دحضور اكرم ﷺ ربيبه. حضرت ام سلمه رضي الله عنها لور. زينب، بنت ابى سلمه عبدالله بن عبدالاسد بن هلال مخزوميه قرشيه رضي الله عنها ده ـ [3]

په حبشه كښې ددې ولادت شوې وو اوددې نوم بره كيخودې شوې وو. حضوراكرم ﷺ په ,,زينب،،سره بدل كړو ـ [4]

دا دحضور اكرم ﷺ نه علاوه حضرت زينب بنت جحش، حضرت عائشه، حضرت ام سلمه، حضرت ام حبيبه او حضرت حبيبه بنت ام حبيبه رضى الله عنهن نه روايت كوى ـ

او دې نه روايت كونكو كښې امام شعبى،حميدبن نافع مدنى،عبيدالله بن عبد الله بن عتبه بن مسعود، عروه بن الزبير، على بن الحسين،قاسم بن محمد، ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف، دهغوى ځوي ابوعبيده بن عبدالله بن زمعه، ابوقلابه جرمى ، كليب بن وائل،عمروبن شعيب او عراك بن مالك رحمهم الله وغيره دى ـ [5]

ددې شميريه دمدينه منورې په فقيه ښځو كښې كيدولو.

ابورافع الصائغ فرمائى ,, كنت اذا ذكرت امراة فقيهة بالمدينة ذكرت زينب بنت ابى سلمة ......،، ـ

دغه شان هغه فرمائى ,,وهى يومئذ افقه امراة بالمدينة،،ـ [6]

يو عجيبه خصوصيت ئې دابيان شوې دې چې كله به حضوراكرم ﷺ غسل دپاره به تشريف يوړو نو حضرت ام سلمه رضي الله عنها به خپلې لور ته اوئيل چې حضور اكرم ﷺ له ورشه ، هلته به هغه داخله شوه نو نبى عليه السلام به ورته په مخ باندې داوبو څاسكى ور اوشيندل اوبيا به ئې واپس كړه ـ وئيلې كيږى چې هغه معمره اوضعيفه شوې وه ليكن دهغې دمخ په ځكله اوتازګئ كښې څه فرق راغلې نه وو ـ [7]

په صحيح بخارى كښې دهغې براه راست روايت صرف يودې، اوپه مسلم كښې يو حديث متفرددې،البته بالواسطه ډير روايات دي، په اصول سته كښې دهغې روايات موجود دى[8]

---

[1] كشف البارى (ج۲ص۴۳۲)ـ
[2] كشف البارى (ج۲ص۴۳۶)ـ
[3] تهذيب الكمال (ج۳۵ص۱۸۵)، ومعرفة الصحابة لابى نعيم (ج۵ص۲۳۹)، رقم (۳۸۸٤) ـ
[4] تهذيب الكمال (ج۳۵ص۱۸۵)، ومعرفة الصحابة لابى نعيم (ج۵ص۲۳۹)، رقم (۳۸۸٤) ـ
[5] د شيوخاو رواة دپاره اوګورئ تهذيب الكمال (ج۳۵ص۱۸۵)ـ
[6] الاصابة (ج ٤ص۳۱۷) ـ
[7] الاصابة (ج ٤ص۳۱۷) ـ
[8] اوګورئ عمدة القارى (ج ۲ص۲۱۱)ـ وقال الخزرجى فى ... [بقيه حاشيه په راروانه صفحه..

په ۷۳ھ کښې دهغې انتقال اوشو. حضرت ابن عمر رضی الله عنهما ددې په جنازه کښې حاضر شوې وو۔(۱) رضی الله عنها وارضاها

⑥ **ام سلمه** رضی الله عنها : دحضرت ام سلمه رضی الله عنها حالات هم په کتاب العلم کښې ,,باب العظة والعلم بالليل،، لاندې تیرشوی دی۔

**قوله: قَالَتْ جَاءَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم:** حضرت ام سلمه رضی الله عنها فرمائی چې ام سلیم حضوراکرم صلی الله علیه وسلم لره راغله۔

**حضرت ام سلیم رضی الله عنها** : دا ام سلیم بنت ملحان دحضرت انس رض، والده ده ددې دنامې باره کښې مختلف اقوال دی:

بعضو,, سهله،، وئیلې دې، بعضو,, رمیله،، بعضو ,,رمیثة،، بعضو ,, رمیصاء،، بعضو,, عمیصاء،، بعضو,,ملیکه،، بعضو رمیساء،، بعضو,, انیثة،، بعضو,, انیفة،، وئیلې دې (۲) بعضووئیلې دی چې ,,انیفه،، اوانیثه،، دواړه نومونه محرف دی، صحیح انیسه،، دې (۳)

بیاد بعضو حضراتومثلا ابن عبد البر، عبدالحق او قاضی عیاض حتمی راې دا ده چې دحضرت انس(رض) دمور نوم ,, ملیکه،، دې،امام نووی رحمه الله دې قول لره صحیح گرزولې دې، اوابن سعد، ابن منده او ابن الحصار رحمهم الله جزما وائیلې دی چې ,, دا,, ملیکه،، دحضرت انس رضی الله عنه د نیا نوم دې ۔ امام الحرمین اودعبدالغنی رحمهما الله دکلام نه هم دامستفاد کیږی۔(۴)

ددې دویم قول تائید دابوالشیخ ,, فوائد العراقیین،، دیوروایت نه هم کیږی، چې په هغې کښې حضرت انس رضی الله عنه فرمائی ,,ارسلتنی جدتی الی النبی صلی الله علیه وسلم، واسمها ملیکة......،،۔(۵)

او د ړومبنی قول تائید دصحیح بخاری وغیره ددې روایت نه کیږی کوم چې ,, مالك عن اسحاق بن عبدالله بن ابی طلحة عن انس بن مالك،، په طریق سره مروی دې په دې روایت کښې دی،، ان جدته ملیکة دعت رسول الله صلی الله علیه وسلم لطعام صنعته له، فاکل منه، ثم قال :قوموا فلاصل لك، قال

---

بقیه حاشیه د تیرمخ] الخلاصة (ص۴۹۱) : صحابية لهافي البخاری حدیثان ومسلم فرد حدیث ,,کذا قال. ولم احد فی صحیح البخاری من روایتها عن النبی صلی الله علیه وسلم مباشرة الا حدیثا واحدا.کما قال العینی رحمه الله. وهو حدیث : نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم عن الدباء والحنتم والمقبر والمزفت ..... صحیح البخاری (ج ۱ص۴۹۶) کتاب المناقب، باب قول الله تعالی : (یاایها الناس انا خلقناکم من ذکروانثی ......... رقم (۳۴۹۲)۔

۱) تهذیب الکمال (ج۳۵ص۱۸۶)۔

۲) اوگورئ تهذیب الکمال (ج۳۶۵)، والاصابة (ج۴ص۴۶۱)، وفتح الباری (ج۱ص۴۸۹) کتاب الصلاة.باب الصلاة علی الحصیر۔

۳) اوگورئ تعلیقات تقریب التهذیب (ص۷۵۷).رقم (۸۷۳۷)۔

۴) فتح الباری (ج۱ص۴۸۹) کتاب الصلاة باب الصلاة علی الحصیر۔

۵) فتح الباری (ج۱ص۴۸۹) کتاب الصلاة باب الصلاة علی الحصیر۔

انس : فقمت الی حصیر لنا قد اسود من طول مالبس، فنضحته بماء فقام رسول الله ﷺ وصففت، والیتیم وراءه والعجوز من ورائنا........،،[1]

ددې روایت په سند کښې اسحاق بن عبدالله بن ابی طلحه دحضرت انس ﷺ ورارہ دې، خکه چې عبدالله بن ابی طلحه دام سلیم خوي او دحضرت انس اخیافی رور دې[2] په روایت کښې ,,جدته،، ضمیر شارحینو د,,اسحاق،، طرفته راگرزلودې[3] لهذا ,,ملیکه،، داسحاق بن عبدالله بن ابی طلحه نیه شوه اوهم دا دحضرت انس ﷺ مورام سلیم ده خکه چې هم دا روایت ,,سفیان بن عینیه عن اسحاق بن عبدالله بن ابی طلحة عن انس،، په طریق نه مختصرا مروی دی،، په کوم کښې چې دی ,,صففت انا ویتیم فی بیتنا خلف النبی ﷺ، وامی ام سلیم خلفنا،،[4]

حافظ ابن حجر ﷺ فرمائی چې دواړو روایاتونو لره که یوه قصه اوګرزو نو بیا خو دامتعین ده چې ملیکه داسحاق نیا ده او دحضرت انس ﷺ مور ده،خو دلته د واقعې دتعدد امکان هم شته دې چې حضور اکرم ﷺ لره دعوت ورکول او دنبی ﷺ مونځ کول دحضرت ام سلیم د دعوت په بنا باندې مستقل واقعه شوه اوملیکه یعنی دام سلیم دمور ددعوت واقعه مستقله شوه او دحضرت انس د نیا نوم ملیکه کیدل د دې خبرې منافی نه دی چې داسحاق نیه یعنی دحضرت انس د والدې نوم ملیکه وی ـ [5] والله اعلم

حضرت ام سلیم ﷺ دحضور اکرم ﷺ نه روایت کوی ـ

اوددې نه په ورایت کونکو کښې حضرت انس، حضرت عبدالله عباس ﷺ نه علاوه عمرو بن عاصم انصاری اوابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف ﷺ دی ـ [6]

دحضرت ام سلیم نکاح په جاهلیت کښې دمالک بن النضر سره شوې وه،دحضرت انس ﷺ دولادت نه بعد .دا اوددې قوم مسلمان شو، دې خپل خاوندته هم داسلام دعوت ورکړو خو هغه خفا شواوشام ته لاړو او هلته مړشو ـ [7]

ددې نه پس ابوطلحه هغې ته دنکاح پیغام پیش کړو، حضرت ام سلیم ددې په جواب کښې اوئیل که چرې اسلام دې راؤړو نونکاح به اوشی هغې مزید تبلیغ هم کړې دې ـ ابوطلحه دخه فکر دپاره مهلت طلب کړو اوبیا په رضا اوپه رغبت سره مسلمان شو،دغه شان دام سلیم نکاح دحضرت ابوطلحه سره اوشوه ـ [8]

---

[1] صحیح بخاری (ج۱ص۵۵).کتاب الصلاة باب الصلاة علی الحصیر رقم (۳۸۰)ـ
[2] فتح الباری (ج۱ص۴۸۹)ـ
[3] فتح الباری (ج۱ص۴۸۹)ـ
[4] صحیح البخاری (ج۱ص۱۰۱)ـ کتاب الاذان. باب المراة وحدها تکون صفا.رقم (۷۶۷)ـ
[5] اوګورئ فتح الباری (ج۱ص۴۸۹)ـ
[6] تفصیل دپاره اوګورئ تهذیب الکمال (ج۳۵ص۳۶۶)، ومعرفة الصحابة لابی نعیم (ج۵ص۳۴۷)ـ
[7] تهذیب الکمال (ج۳۵ص۳۶۶)، والاصابة (ج۴ص۴۶۱)ـ
[8] حواله جات بالا ـ او دغه شان اوګورئ معرفة الصحابة لابی نعیم (ج۵ص۳۴۷)ـ

دهغوی سره ئې یوځوې پیداشوې وو.اوخه بیماري دوجې نه وفات شو.حضرت ام سلیم دکمال صبر. زبردست حکمت او مصلحت نه کار واغستلواوبیا زوستونې خپل خاوند خبر کړو. حضرت ابوطلحه چې کله حضور اکرم ﷺ ته دا واقعه بیان کړه نونبی کریم ﷺ دې دواړو دپاره دبرکت دعا اوکړه،چې دوی نه لس خامن پیداشو،کوم چې ټول په ټوله حاملین علم او قرآن وو۔ (۱)

حضور نبی اکرم ﷺ ددوی سره ډیر خصوصی تعلق وو. نبی کریم ﷺ وخت په وخت ددوی کور ته تللو۔ (۲)

دحضرت ام سلیم رضی الله عنها هم دحضور نبی اکرم سره خصوصی تعلق وو.کله به چې نبی کریم ﷺ هلته لاړو نو دې به خصوصي انتظام کولو(۳)حضورنبی اکرم ﷺ یوځل دوی کره اوده شو، اود نبی کریم ﷺ نه خوله روانه شوه،حضرت ام سلیم دغه خوله په یوشیشه کښې جمع کول شروع کړه،حضوراکرم ﷺ تپوس اوکړو چې څه کوې؟ نوجواب ئې ورکړوزهٔ ستاسوخوله جمع کومه، دابه دخوشبوپه طور باندې مونږ استعمالو.ځکه چې دینه لویه خوشبوبله نشته(۴)

حضرت ام سلیم رضی الله عنها ډیره باهمته اوبهادره ښځه وه.دغزوهٔ خیبرپه موقع باندې دخپل خاوند حضرت ابو طلحه رضی الله عنه سره شریکه شوې وه اودخپل ځان سره ئې یو خنجرایخودې وو. وئیل به ئې که چرته یو مشرک نزدې راغلونه نوپه دې دهغه خیټه څرې کړم۔(۵)

دحضرت ام سلیم رضی الله عنها په باره کښې حضور ﷺ ارشاد فرمائیلې دې .. دخلت الجنة فرایت امراة ابي طلحة،،_(۶) یعنی ,,زهٔ جنت ته داخل شوم نوهلته ما دابوطلحه ښځه ام سلیم اولیدله.._

دحضرت ام سلیم رضی الله عنها نه تقریبا څورلس احادیث مروی دی، په دې کښې دوه متفق علیه دی اوپه دې کښې یوحدیث کښې امام بخاری اوپه دوه حدیثونه کښې امام مسلم متفرد دې(۷)

دحضرت عثمان رضی الله عنه په دورخلافت کښې ددې انتقال اوشو۔ (۸)رضی الله عنها وارضاها

**قوله:** فَقَالَتْ یَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ اللّٰهَ لاَ یَسْتَحْیِی مِنَ الْحَقِّ : حضرت ام سلیم رضی الله عنها عرض اوکړو یا رسول الله ! یقینا الله تعالی دحق خبرې نه شرمیږی نه ۔

,,حیا،، یو نفسانی تغیراوعاجزی ده کوم چې یوسړی ته هغه وخت لاحق کیږی کله چې دهٔ ته

---

(۱) تهذیب الکمال (ج۳۵ص۳۶۶)، والاصابة (ج ٤ص ٤٦١)_

(۲) الاصابة (ج ٤ص ٤٦١)_

(۳) الاصابة (ج ٤ص ٤٦١)_

(۴) معرفة الصحابة لابی نعیم (ج۵ص۳٤۸)_.دغه شان اوګورئ صحیح مسلم،کتاب الفضائل،باب طیب عرقه صلی الله علیه وسلم والتبرک به،رقم (۶۰۵۵_۶۰۵۷)_

(۵) اوګورئ صحیح مسلم، کتاب جهاد،باب غزوة النساء مع الرجال،رقم (٤۶۸۰)_

(۶) معرفة الصحابة لابی نعیم (ج۵ص۳٤۸)_

(۷) خلاصة الخزرجی (ص٤۹۸)_

(۸) تقریب التهذیب (ص۷۵۷)، رقم (۸۷۳۷)_

دیوعیب یا قابل مذمت څیز دلاحق کیدوویره وی (۱)
اوظاهره ده چې الله تعالی دداسې قسمه تغیر اوانکسار نه منزه اوپاک دې، دې وجې علماء د داسې قسمه نصوصوتوجیهات اوتاویلات کړې دی
نوددې یو تاویل دا شوې دې.. ان الله لا یستحیی من الحق،،: ان الله لا یمنع من بیان الحق،، (۲) په معنی کښې دې. مطلب دا دې چې الله عزوجل حق ضرور بیانوی. ددې بیانول نه پریږدی ـ
یو مطلب دا بیان شوې دی .. ان الله لا یامر بالحیاء فی الحق ولا یبیحه،، ـ (۳) یعنی الله تعالی دحق په سلسله کښې نه دحیا حکم ورکوی اونه ددې اجازت ورکوی ـ
ونیلې کیدیشی چې په دې کښې خودالله تعالی نه دحیا نفی کړې شوې ده نو لهذا دتوجیه اودتاویل څه ضروت دې ؟
خو دا ونیل درست نه دی ځکه چې چرته مونږ .. ان الله لا یستحیی من الحق،، وانیلوسره دالله تعالی دحق نه دحیا نفی کړې ده هلته دې نه داهم لازم راځی .. ان الله یستحیی من الباطل،، یعنی الله تعالی دحق دحیا نه خونفی نه کوی البته دباطل نه حیا فرمانی. ګویا که دیوجهت نه نفی ده نو دویم جهت نه اثبات دې او داثبات په صورت کښې توجیه او دتاویل ضروری دې ـ (۴)
البته دا ونیلې کیدیشی چې الله تعالی لره دکومې حیا اثبات کیږی، ددې دتوجیه ضرورت نشته، ځکه دې لره او ددې پشان نورو نصوصولره په ظاهر باندې کیخودلې شی. په داسې موقعه باندې ټول اشکال دې وجې نه کیږی چې مونږ صفات حق لره په صفات خلق باندې قیاس کوو، داڅه ضروی دی چې په مخلوق کښې حیا دتغیر نفسانی نوم دې نودالله تعالی حیا دې هم دغه تغیر وی؟! لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ والله اعلم
حضرت ام سلیم رضی الله عنها دکلام دځپل مخکښې سوال دتمهید دپاره کړې وو، هغه چې دڅه متعلق سوال کول غوارړی دهغې متعلق تپوس کولونه شرمیږی، دې وجې نه هغې تمهیدا دا اونیل چې الله تعالی دحق خبرې نه حیا نه کوی، مونږ دالله تعالی مخلوق یو حق خبرې دپاره یو سوال کووچې دهغې تعلق دحیا سره دې ـ (۵)
**قوله:** فَهَلْ عَلَى الْمَرْأَةِ مِنْ غُسْلٍ إِذَا احْتَلَمَتْ؟: آیا په ښځوباندې غسل واجب دې که چرې هغې ته احتلام وی ؟
..احتلام،، دباب افتعال مصدر دې، کوم چې ,,دحلم،، (بضم الحاء المهملة وسکون اللام) نه ماخوذ

---

(۱) اوګوری: شرح النووی علی صحیح مسلم (ج۱ص۱۴۶)، کتاب الحیض، باب وجوب الغسل علی المراة بخروج المنی منها ـ وعمدة القاری (ج۲ص۲۱۲)ـ
(۲) اوګوری: شرح النووی علی صحیح مسلم (ج۱ص۱۴۶)، کتاب الحیض، باب وجوب الغسل علی المراة بخروج المنی منها ـ وعمدة القاری (ج۲ص۲۱۲)ـ
(۳) شرح النووی علی صحیح مسلم (ج۱ص۱۴۶) ـ
(۴) اوګوری: فتح الباری (ج۱ص۳۸۹) کتاب الغسل، باب اذا احتلمت المراة ـ
(۵) فتح الباری (ج۱ص۲۲۹)ـ

دي،،، حلم،، په اصل كښې خوب ته وائيلې كيږى [1] خودلته د،،خوب،، يا ،،حلم،، نه ،،جماع،، مراد ده [2]، دام سليم دا حديث امام احمد رحمه الله نقل كړې دې او الفاظ ئې دا دى ،،يا رسول الله، ارايت اذا رات المراة ان زوجها يجامعها فى المنام، اتغتسل؟،، [3]

**قوله: قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - « إِذَا رَأَتِ الْمَاءَ »:** حضور اكرم ﷺ اوفرمائيل او! كله چې اوبه يعنى منى اوګورى ـ

دلته د ،،ماء،، نه منى مراد ده ـ [4]

بيا دلته د ،، رؤيت ماء،، قيد ئې دې دپاره لګولې دې چې خوب ليدونكى كله په خوب كښې انزال اوګورى خو په حقيقت كښې انزال نه وى شوې،په داسې صورت كښې په اتفاق سره غسل واجب نه دې، دغسل دپاره دترې ليدلوشرط لګولې شوې دې، كوم چې دانزال ديقينى كيدلو دليل دې ـ [5]

**ايا په ښځو كښې منى نه وى؟:** دې حديث نه صفا معلومه شوه چې په ښځوكښې منى وى، دجمهورو فقهاء هم دا راې ده ـ

اودفلاسفه ديوجماعت په ښځوكښې دمنې دوجود منكر دى، دارسطو وينا ده چې په ښځوكښې منې نه وى البته دحيض په وينه كښې د توليد قوت وى ـ [6]

دغه شان ابن سينا وائى چې په ښځوكښې يو قسم رطوبت وى، په هغې باندې دمنې تعريف نه صادق كيږى ـ [7]

ليكن په اطباء او په فلاسفه كښې محققين ددې خبرې قائل دى چې په ښځوكښې منى وى [8]

**ايا ښځو ته احتلام كيديشى؟:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چې دابراهيم نخعى رحمه الله نه د احتلام نساء نه انكار منقول دې ـ [9]

حافظ فرمائى چې امام نووى اګرچه دامام نخعى دې انكارلره مستبعد ګرزلودې، بياهم ابن ابى شيبه په سند جيد سره دې لره روايت كړې دې ـ [10]

---

[1] اوګورئ شرح المهذب (ج٢ص١٣٩) باب ما يوجب الغسل ـ

[2] فتح البارى (ج١ص٣٨٩) كتاب الغسل،باب اذا احتلمت المراة ـ

[3] مسند احمد (ج٦ص٣٧٧)، رقم (٢٧٦٥٩)ـ

[4] فتح البارى (ج ١ص٣٨٩) كتاب الغسل،باب اذا احتلمت المراة ـ

[5] الاستذكار لابن عبدالبر (ج ١ص٣٣٦)، باب غسل المراة اذا رات فى المنام مثل مايرى الرجل ـ

[6] اوګورئ السعاية (ج١ص٣٠٦) بيان موجبات الغسل ـ

[7] حواله بالا ـ

[8] حواله سابقه ـ

[9] فتح البارى (جضص٣٨٨)ـ

[10] اخرج ابن ابى شيبه فى مصنفه (ج١ص٥٠٤، فى المراة ترى فى منامها مايرى الرجل، رقم ٨٨٥)، قال: حدثنا جرير عن مغيرة قال : كان ابراهيم ينكر احتلام النساء ـ

**قوله**: فَغَطَّتْ أُمُّ سَلَمَةَ - تَعْنِي وَجْهَهَا: بس حضرت ام سلمه پټ کړو. يعنى خپل مخ ئې.
مطلب دا دې چې دحضرت ام سليم سوال اودحضور اکرم ﷺ جواب اوريدو سره حضرت امه سلمه رضي الله عنها دحيا دوجې نه مخ پټ کړو.
په دې حديث کښې دحضرت ام سلمه رضي الله عنها ذکر دې. اومسلم شريف په روايت کښې دى چې دې په موقعه کښې حضرت عائشه رضي الله عنها موجوده وه. اوهغې ونيلي وو.. ياامسليم، فضحت النساء تربت يمينك،،_(١)
قاضى عياض رحمه الله فرمائي چې دصحيح بخارى روايت راجح دې او دا دحضرت ام سلمه رضي الله عنها واقعه ده _(٢)
ابن عبد البر رحمه الله د ذهلى رحمه الله نه نقل کړى دى چې دواړه رواياتونه صحيح دى، د دواړو حديثونوپه مينځ کښې دجمع او تطبيق دوجې ونيلي شوى دى.چې دا دواړه مستقل حديثونه دې، او داهم ممکنه ده چې په دې مجلس کښې دواړه ازواج مطهرات موجودې وې او دواړو نکير کړې وى _(٣)
بيا دې حديث لره امام مسلم رحمه الله دحضرت انس رضي الله عنه په مسانيد کښې هم ذکرکړې دې — (٤)
په دې بنياد باندې بعضې حضراتو دا ونيلى دى چې په دغه مجلس کښې حضرت انس هم موجود وو _(٥)
خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چې حضرت انس رضي الله عنه هلته موجود نه وو، البته هغوى دا حديث دخپلې مور ام سليم نه اوريدلې وو_(٦)
دغه شان په مسند احمد کښې هم دحضرت ابن عمر په مسانيد کښې هم دا حديث مذکور دې (٧)، حافظ رحمه الله دلته هم دا خبره کړې ده چې هغوى دا حديث يا خو دام سليم نه اوريدلې دې يا ئې دبل چانه _(٨)

**قوله**: وَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَتَحْتَلِمُ الْمَرْأَةُ قَالَ «نَعَمْ»: حضرت ام سليم رضي الله عنها عرض اوکړو يا رسول الله، ايا ښځوته هم احتلام کيږى ؟ نو نبى کريم ﷺ اوفرمائيل او!
دې نه معلومه شوه چې حضرت ام سلمه رضي الله عنها ته پته نه وه او ظاهره هم دا ده چې هغې ته

---

(١) صحيح مسلم،كتاب الحيض، باب وجوب الغسل على المراة بخروج المنى منها، رقم (٧٠٩)_
(٢) فتح البارى (ج١ص ٣٨٨)_، كتاب الغسل، باب اذا احتلمت المراة _
(٣) فتح البارى (ج١ص ٣٨٨)_، كتاب الغسل، باب اذا احتلمت المراة _ واو جزالمسالك (ج١ص٥٤٦)،كتاب الطهارة، باب غسل المراة اذا رات فى المنام مثل مايرى الرجل _
(٤) صحيح مسلم،كتاب الحيض، باب وجوب الغسل على المراة بخروج المنى منها، رقم (٧٠٩_ ٧١١)_
(٥) فتح البارى (ج١ص٣٨٨)، و او جز المسالك (ج١ص٥٤٦)_
(٦) فتح البارى (ج١ص٣٨٨)، و او جز المسالك (ج١ ص٥٤٦)_
(٧) مسند احمد (ج٢ص ٩٠) مسند عبدالله بن عمر رضي الله عنه رقم (٥٦٣٩)_
(٨) فتح البارى (ج١ص ٣٨٨)، و او جز المسالك (ج١ص٥٤٦)_

داصورت نه وو پیښن شوې ـ

**ایا ازواج مطهرات ته احتلام کیدلو که نه؟:** اوس دلته دا مسئله پیښه شوه چې آیا ازواج مطهراتو ته احتلام کیدیشی که نه ؟

علامه سیوطی رحمه الله دقرطبی رحمه الله نه نقل کړی دی چې دحضرت عائشه او دحضرت ام سلمه رضی الله عنهما انکار ددې خبرې ثبوت دې چې په ښځوکښې احتلام ډیر قلیل الوقوع دې ـ (١)

علامه سیوطی رحمه الله فرمائی چې زما په نیزظاهره دا ده چې دحضرات ازواج مطهرات ته د احتلام وقوع نه کیږی، ځکه چې احتلام د شیطانی اثر نتیجه ده،دحضور ﷺ دتکریم اودنبی کریم ﷺدبرکت دوجې نه دوی دشیطانی اثرات نه محفوظه کړې شوې وې، څنګه چې په خپله حضور ﷺ د هرقسمه شیطانی اثرات نه محفوظ کړې شوې دې ـ (٢)

علامه سیوطی فرمائی چې ما شیخ ولی الدین لره لیدلې وو چې فرمائیلې زمونږ په بعضې اصحاب درس کښې مذاکره کوله او وئیل ئې چې ازواج مطهرات ته داحتلام وقوع نه کیږی ځکه چې هغوی د بیداری او یا دخوب په حالت کښې دنبی کریم ﷺ نه علاوه د بل چا اطاعت نه کوی او شیطان د نبی کریم ﷺ شکل او صورت اختیارولې نشی ـ دې خبرې اوریدلو سره ماته ډیره خوشحالي اوشوه ـ (٣)

دغه شان علامه سیوطی رحمه الله په یو بل ځائې کښې فرمائیلې دی چې دې امر نه څه مانع دې چې دا دحضور نبی کریم ﷺ د ازواجومطهراتو خصوصیت وی ؟ (٤)

خو علامه زرقانی رحمه الله فرمائی چې دلته مانع دا دې چې خصوصیات د احتمال په بنا باندې نه ثابتیږی ـ (٥)

دغه شان حافظ ولی الدین عراقی رحمه الله چې کومه خبره کړې ده هغه هم قابل نظر ده ځکه چې داحتلام وجه صرف هغه نه ده کومه چې هغه بیان کړې ده بلکه کله منی د وعاء د ډکیدو دوجې نه هم کیږی. اوکله ددې وجه بله خبره هم کیدیشی، بعضې علماء چې دعدم احتلام کوم قول اختیار کړې دې هغه صرف د حضراتوانبیاء کرامو په باره کښې دې ـ (٦)

علامه عبدالحی لکهنوی رحمه الله فرمائی چې په دې سلسله کښې قول محقق دا دې چې په دې مقام کښې نه خو دا دعوی کیدیشی چې حضرات ازواج مطهرات نه مطلق احتلام نفی اوکړې شی او نه دا دعوی کیدیشی چې دهغوی نه وقوع احتلام ممنوع دې، بلکه داسې دې اوئیلې شی چې حضرات مطهرات چونکه امهات المؤمنین دی او دمسلمانانو دپاره حرام دی نو الله عزوجل خپل دښمن ابلیس لره دخلقوشکل شباهت اختیارلوسره په دوی باندې نه مسلط

---

(١) زهر الربی علی المجتبی (ج١ص٤٢). کتاب الطهارة. باب غسل المراة تری فی منامها مایری الرجل ـ

(٢) حواله بالا ـ

(٣) حواله بالا ـ

(٤) تنویر الحوالک (ص٧١) کتاب الطهارة. باب غسل المراة اذا رات فی المنام مثل مایری الرجل ـ

(٥) شرح الزرقانی علی المؤ طا (ج١ص١٠٣). غسل المراة اذا رات مثل مایری الرجل ـ

(٦) حواله بالا ـ

كوى او په دې مخصوص صورت كښې دوى ته داحتلام وقوع نه كيږى. بيا هم دوى نه دمطلق احتلام نفى كول دعدم وقوع نشته دى ـ[1] والله اعلم

**قوله: تَرِبَتْ يَمِينُكِ:** ستا ښى لاس دې په خاوره كړ شى ـ

داجمله بددعائيه ده. بيا هم دا صرف دزجر دپاره استعمال شوې ده. ددې حقيقى معنى مقصود نه وى ـ[2]

**قوله: فَبِمَ يُشْبِهُهَا وَلَدُهَا:** بيا اولاد ددې څنګه مشابه كيږى ؟!

يعنى كه دښځې منى نه وه نو بيا به بچې دښځې مشابه نه وو. دې نه معلوميږى چې د مشابهت سبب دا منى ده ـ

**د ولد د مشابهت سبب او دهٔ د تذ كير او تا نيث سبب :** په صحيح بخارى كښې دحضرت انس ﷺ روايت دې چې كله حضرت عبدالله بن سلام ﷺ ته دحضور ﷺ مدينه منوره ته دتشريف راوړلو علم اوشو نوهغه دنبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شواو عرض ئې اوكړو چې زه ستاسونه يو درې تپوسونه كول غواړم، او دهغې جواب هم نبى وركولې شى ـ په دغه درې سوالونو كښې يوسوال داوو،، ما بال الولد ينزع الى ابيه، او الى امه ؟،، يعنى ماشوم خپلې مور يا پلار ته مائل يعنى دهغوى سره مشابه ولې وى ؟..

په دې باندې حضوراكرم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو : ،،...... واما الولد فاذا سبق ماء الرجل ماء المراة نزع الولد، واذ سبق ماء المراة ماء الرجل نزعت الولد،،_[3]

يعنى ،، كله چې دسړى منى دښځې دمنې نه سابقه وى نو هغه ماشوم خپل طرف ته راكاږى او چې كله دښځې منى د سړى دمنې نه سبقت اوكړى نو هغه ماشوم خپل طرف ته راكاږى،،ـ

په صحيح مسلم كښې دحضرت عائشه ﷺ نه مرفوع روايت دې ،، اذاعلا ماؤها ماء الرجل اشبه الولد اخواله، واذا علا ماء الرجل ماءها اشبه اعمامه،،_[4]

يعنى ،،كله چې دښځې منى دسړى په منې باندې غالب راشى نو ماشوم د ميندو مشابه وى اوكله چې دسړى منى دښځې په منې باندې غالب راشى نو ماشوم دخپل ترونو مشابه وى،،ـ

بره دحضرت عبدالله بن سلام ﷺ دحديث نه معلومه شوه چې سبب دمشابهت ،،سبق،، او دحضرت عائشه ﷺ دحديث نه معلومه شوه چې سبب مشابهت ،، غلبه،، ده ـ

بيا امام مسلم ﷺ دحضرت ثوبان ﷺ نه مرفوعا نقل كړى دى:

،،ماء الرجل ابيض، وماء المراة اصفر، فاذا اجتمعا فعلا منى الرجل منى المراة اذكرا باذن الله، واذاعلا منى

---

[1] السعاية (ج١ص٣٠٩)_

[2] اوګورئ الاستذكار (ج١ص٣٣٩)، وعارضة الاحوذى (ج١ص١٨٨)، واوجزالمسالك (ج١ص٥٤٤)_

[3] اوګورئ صحيح البخارى (ج١ص٥٦١)، كتاب مناقب الانصار، باب (بلا ترجمة، بعد باب قول النبى صلى الله عليه وسلم : اللهم امض لا صحابى هجرتهم،، ومرثيته لمن مات بمكة)، رقم (٣٩٣٨)_

[4] صحيح مسلم، كتاب الحيض، باب وجوب الغسل على المراة بخروج المنى منها، رقم (٧١٥)_

المراة منى الرجل آنثا باذن الله ......،، _ (١)

يعني .. دسړي منى سپينه ده او دښځې منى زيړه ده، کله چې دواړه جمع شى او دسړي منى دښځې په منې باندې غالب راشى نو دالله په حکم سره ماشوم مذکرپيداشى او چې کله دښځې منى دسړي په منې باندې غالب راشى نو دالله په حکم سره ماشوم مؤنث پيداشى.،_

بعينه هم د داسې مضمون روايت په لفظ ..علو،، سره امام احمد رحمه الله دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه هم نقل کړى دى .. يلتقى الماء ان، فاذا علا ماء الرجل ماء المراة اذكرت، واذا علا ماء المراة ماء الرجل آنثت ........ (٢) يعنى ..دواړه اوبه يوځې کيږى، کله چې دسړي اوبه دښځې په اوبوباندې غالبه راشى نو ښځه مذکر اوځېګوى اوچې کله دښځې اوبه دسړي په اوبوباندې غالبه راشى نو ښځه مؤنثه اوځېګوى۔

دې دواړو حديثونو نه معلوميږى چې مذکراو دمؤنث کيدو سبب ..غلبه،، وى۔

دلته چې کوم اشکال کيږى دهغې حاصل دا دې چې دولد سبب مشابهت للاعمام اوالاخوال ,, سبق،، دې که ,,علو،،؟

بيا دا,, علو،، سبب ,, داذکار،، اود ,, ايناث،، دې که سبب دمشابهت ؟

ددې جواب دا دې چې دحضرت عبدالله بن سلام په روايت کښې ,,سبق،، په خپلې معنى باندې دې،په دې کښې دځه تاويل ضرورت نشته، دغه شان حضرت ثوبان اودحضرت ابن عباس رضي الله عنهما په روايتونو کښې هم ,,علو،،په خپل اصل معنى يعنى دغلبه په معنى کښې دې، په دې کښې هم دځه تاويل حاجت نشته دې ـ(

البته دحضرت عائشه رضي الله عنها په روايت کښې چې کوم ,, علو،، مذکوره ده هغه هم د,, سبق،،په معنى کښې دې، اوس به معنې دا شى چې کله دسړي منى په رحم کښې دښځى دمنې نه سبقت اوکړى نوماشوم به د خپلوترونو مشابه کيږى او که چرې دښځې منى دسړي دمنې نه سبقت اوکړى نو ماشوم دخپل ماماګانو مشابه وى۔

هم,, سبق،، سبب دمشابهت دې، ددې تائيد دشرح مشکل الآثار کښې دحضرت ام سلمه رضي الله عنها د روايت نه کيږى، چې په کښې دحضوراکرم صلى الله عليه وسلم ارشاد منقول دې ,, اى النطفتين سبقت الى الرحم غلبت على الشبه،، _(٣) يعنى ,, په دواړو نطفو کښې چې کوم يوهم رحم طرف ته سبقت اوکړى نوهغه دمشابهت په سلسله کښې غالب راځى،،۔

ترکوم ځې پورې چې دمذکراو مؤنث تعلق دې نو دهغې وجه په رحم کښې دننه ,, علو،، يعنى غلبه ده، نو په دې کښې دننه که چرې دسړي منى دښځې په منې باندې غالبه شى نوماشوم

---

(١) صحيح مسلم، كتاب الحيض، باب بيان صفة منى الرجل، وان الولد مخلوق من مائيهما، رقم (٧١٦)_

(٢) مسند احمد (ج١ص ٢٧٤)، مسند عبدالله بن عباس رضي الله عنهما، رقم (٢٤٨٣)_

(٣) شرح مشكل الاثار (ج٧ص٨٨)، باب بيان مشكل ما روى عن رسول الله صلى الله عليه وسلم فى ماء الرجل وماء المراة، رقم (٢٦٦٢)_

مذکر شي او که چرې دښځې منی دسړي په منې باندې غالبه راشي نو بچې مؤنث وي ـ
حاصل دا شوچې ,, سبق،، سبب دمشابهت دې او ,, علو،، سبب د تذکیر او تانیث دې ـ دغه شان د ټولو احادیثو په مینځ کښې تطبیق کیږي ـ (١)
ددواړه قسمه حدیثونو لره میلاوولونه دلته دېر صورتونه پیدا کیږي
① ,,سبق،، او ,, علو،، دواړه دسړي دپاره وي نو بچې به مذکر وي او دپلار مشابه به وي ـ
② ,,سبق،، او ,, علو،، دواړه دښځې دپاره وي نو بچې به مؤنث وي او دمور مشابه به وي ـ
③ سبق لماء الرجل او علو لماء المراة وي نو بچې به مؤنث وي او دپار مشابه به وي ـ
④ـ ددې برعکس سبق لماء المراة او علو لماء الرجل وي نو بچې به مذکر وي او دمور مشابه به وي ـ
⑤ ـ که چرې یوته هم سبقت حاصل نشي، بلکه ددواړو اوبو یوځې خارج شي. لیکن علو لماء الرجل وي نو بچې به مذکروي اود مور پلار دواړو پشان به وي ـ
⑥ ـ که چرې یوته هم سبقت حاصل نشي لیکن علو ماء المراة لره حاصل وي نو بچې به مؤنث وي او دمور پلا ر دواړو پشان به وي ـ (٢)
**د حافظ ابن حجر رحمه الله تسامح** : په دې مقام کښې حافظ ابن حجر رحمه الله چې کوم تقریر کړې دې هغه واضح دې اودهغې حاصل هم دا دې کوم چې مونږ ذکرکړې دې ـبیاهم هغه چې په خپل عبارت کښې کومه تفریع ذکرکړې ده نوهغه مختل محسوس کیږي، چنانچه دهغه مذکوره اشکال جواب دعلامه قرطبي رحمه الله نه نقل کوي اوفرمائي :

,, **قال القرطبي : یتعین تاویل حدیث ثوبان بان المراد بالعلو: السبق،،** ـ
یعني ,, دحضرت ثوبان رضي الله عنه په حدیث کښې داتاویل متعین دې چې په دې کښې د ,,علو،،نه مراد ,, سبق،، دې ـ
دې نه پس فرمائي :**والذي یظهر: ماقدمته ـ وهوتاویل العلوفي حدیث عائشه ـ واما حدیث ثوبان فیبقی العلوفیه علی ظاهره،،** ـ
یعني ,, ظاهره داده چې دحضرت عائشه رضي الله عنها په حدیث کښې د ,, علو،، تاویل په ,,سبق،، سره اوکړې شي، او دحضرت ثوبان رضي الله عنه په حدیث کښې ,, علو،، په خپل ظاهر باندې پریخودې شي،، ـ
په دې باندې تفریعا فرمائي : **فیکون السبق علامة التذکیروالتانیث، والعلوعلامة الشبه، فیرتفع**

---

١) اوګورئ فتح الباری (ج٧ص٢٧٢) کتاب مناقب الانصار،باب (بلا ترجمة) بعد باب قول النبي صلى الله عليه وسلم ,, اللهم امض لا صحابي هجرتهم،، ومرثیه لمن مات بمکة ـ او اوګورئ مشکل الاثار (ج٧ص٨٦-٩١)، باب بیان مشکل ما روی عن رسول الله صلى الله عليه وسلم في ماء الرجل وماء المراة. وفي عمل کل واحد منها في الولد الذي یخلق منها ـ
٢) اوګورئ فتح الباری (ج٧ص٢٧٢) کتاب مناقب الانصار،باب (بلا ترجمة) بعد باب قول النبي صلى الله عليه وسلم ,, اللهم امض لا صحابي هجرتهم،، ومرثیه لمن مات بمکة. تحت حدیث، رقم (٣٩٣٨)ـ

الاشكال، وكان المراد بالعلو الذى يكون سبب الشبه بحسب الكثرة، بحيث يصير الآخر مغمورا فيه، فلذلك يحصل الشبه،،_[1]

يعني بس ,, سبق،، به دتذكير اوتانيث علامت وي او ,,علو،، دمشابهت سبب، داسې به اشكال ختم شي، ګوياچې ,, علو،، دكوم نه چې به مشابهت حاصليږي دې هغه ,,علو،،مراد ده كومه چې كثرت يعني غلبه سره وي ـ په داشان چې دويمې، اوبه په دې كښې مغموره او ډوبې شي، دې نه به مشابهت حاصليږي،،ـ

خو په ادنى تامل سره به ظاهره شي چې دا تفريع صحيح نه ده او كه دا به څګند صحيح كيدې شي حالانكه حافظ رحمه الله دعلامه قرطبي برخلاف په حديث دعائشه كښې د ,, علو،، دتاويل قائل دې او دې لره دسبق په معنى باندې اخلي اوپه حديث دعائشه رضي الله عنها كښې دمشابهت ذكردې نه چې د تذكير اوتانيث ؟!

لهذا دا حافظ ابن حجر رحمه الله داشان پكار دې چې چرته چرته ,, سبق،، وي هلته دې ,, علو،، كړى شي او چرته چرته چې ,, علو،، وي هلته دې ,, سبق،،كړې شي او په آخره كښې دې ,,سبب الشبه،، لره دې ,, سبب تذكيروالتانيث ,, كړې شي، نو عبارت به دا شان وي ـ

,, فيكون العلو علامة التذكير والتانيث، والسبق علامة الشبه، فيرتفع الاشكال، وكان المراد بالسبق الذى يكون سبب التذكير والتانيث بحسب الكثرة ......،، ـ [2] والله سبحانه وتعالى اعلم.

**د علامه قرطبي رحمه الله د تاويل مرجو حيت** : اوس مخكښې تيرشو چې علامه قرطبي رحمه الله فرمائي چې په حديث دحضرت ثوبان كښې ,, علو،، لره د,,سبق،، په معنىٰ كښې اخستل متعين دي ـ[3]

ددې تاويل نتيجه به دا راوزي چې دهغوي په نيز دحضرت عائشه رضي الله عنها روايت اصل دې، ددې مطابق ,,علو،، دمشابهت سبب دې او ,,سبق،، دتذكير اوتانيث ـ

دې تاويل سره هم اګرچې اصل اشكال ختميږي، بياهم دامرجوح دې، ځكه چې دقرطبي رحمه الله قول لره اختيارولو سره به صرف دحضرت عائشه رضي الله عنها يو روايت په خپل اصل باندې پاتې كيږي، باقي دحضرت عبدالله بن سلام، دحضرت ثوبان او دحضرت ابن عباس رضى الله تعالى عنهم اجمعين په ټولو رواياتونوكښې به توجيه كول غواړي، دحضرت عبدالله بن سلام

[1]) فتح الباري (ج۷ص۲۷۳)_

[2]) قال العثماني رحمه الله تعالى : ,,وفى العبارة قلب واختلال مع وضوح المقصود. لان قوله : فيكون السبق علامة التذكير والتانيث،، الى آخره لايصح تفريعه على قوله السابق. والصحيح _ والله اعلم _ ان يكتب ,, العلو،، موضع ,, السبق،، و ,,السبق،، موضع ,, العلو،، فى التفريع، وكذافى قوله : وكان المراد بالعلو الذى يكون سبب الشبه بحسب الكثرة .... الخ. الظاهران يكتب ,,يكون سبب التذكير والتانيث،، فتامل وحقق _،، فتح الملهم (ج۳ص۱۰۲). كتاب الحيض، باب وجوب الغسل على المراة بخروج المنى منها _ مطبوعة دار احياء التراث العربى بيروت الطبع الاولى ۱۴۲۶هه _ ۲۰۰۶م _

[3]) اوګورئ فتح الباري (ج۷ص۲۷۳)_

رضی الله عنهما په روایت کښې ,, سبق ،، لره به د ,,علو ،، په معنی کښې اخستل پکاروی او حضرت ثوبان اوحضرت ابن عباس رضی الله عنهم روایاتو لره به ,,د علو ،، نه سبق مراد اخستل پکاروی ـ
لهذا په یو روایت کښې توجیه کول اودې لره مصروف عن الظاهر گرزول آسان دی، ددې په مقابله کښې چې یو لره اصل جوړکړې شی او ټولو لره دظاهر نه اخواکړې شی ـ والله اعلم ـ
**دترجمة الباب سره دحديث مطابقت** : دباب په شروع کښې کوم ځې کښې چې دترجمة الباب مقصد ذکرشوې دې هلته دحضرت ام سلمه رضی الله عنها دحدیث مناسبت هم ضمنا راغلې وو ـ
عام شارحینوچونکه ددې باب غرض دا بیان کړې دې چې امام بخاری رحمه الله دحیا فی العلم مذمت بیانول غواړی او دا ښودل غواړی چې په علم کښې حیا نه ده پکار، ځکه چې څوک په علم کښې حیا کوی نو هغه دعلم نه محرومه پاتې کیږی ـ
دحضرت ام سلمه رضی الله عنهادا حدیث اودحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما واقعه ددې حیا په مذموم کیدلو باندې دال دی ـ (١)
ابن بطال، کرمانی، شیخ الاسلام زکریا انصاری، علامه عینی اودحضرت کشمیری رحمهم الله په نیزد امام بخاری رحمه الله غرض بیان تفصیل دې چې په بعضې مواقعو کښې حیا کول مذموم دی او په بعضې کښې ترک حیا مذموم ده، دغه شان په بعضې مقامات کښې حیا کول محمود ده اوپه بعضې کښې ترک حیا محمود ده ـ
دحضرت ام سلمه او دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهم درروایتونو نه استعمال دحیا مطلوب اوممدوح کیدل ثابت کړې شوې دې ـ (٢)
حضرت شیخ الهند رحمه الله چې څه ارشاد فرمائیلې دې دهغې حاصل دا دې چې په ترجمة الباب ,, الحياء في العلم ،، کښې دوه خبرې قابل لحاظ دی، اول داچې په وجه دحیا دعلم اوتعلم نه محرومه نشی ....،دویم دا چې په تعلیم او تعلم کښې حتی الوسع حیا کول مستحسن دی، یعنی په مواقع د حیا کښې خو داهرگزنه دی کول پکارچې دعلم نه محرومه پاتې شی، مگردمحرومې نه دبچکیدو سره سره څومره حیاچې کیدیشی مستحسن ده ـ
په حدیث دام سلیم کښې قبل السوال ,,یا رسول الله، ان الله لایستحیی من الحق،، وئیل هم دحیا دلیل دې، دحضرت ام سلمه رضی الله عنها ته نسبت مذکور دې ,, فغطت ام سلمة تعنی وجهها ،،په دې کښې هم دحیا یومظهردې، دحضور اکرم صلی الله علیه وسلم ,, تربت يمينك ،، فرمائیل، په دې کښې دحیاې نبوی نهایت لطیفه خوشبوده مگر په دې حالت کښې دتعلیم اوتعلم فرض څنگه چې کیدې شوه اداء ئې اوفرمائیل اومقصود لره دفوت کیدوته پرې نه خودو ـ (٣) والله اعلم ـ

---

(١) اوګورئ فتح الباری (ج١ص٢٢٩)، وحاشية السندی على البخاری (ج١ص٧١)، وشرح تراجم ابواب البخاری (ص١٦)ـ
(٢) اوګورئ شرح ابن بطال (ج١ص ٢١٠)، وشرح الكرمانی (ج٢ص١٦٠) وغيره ـ
(٣) الابواب والتراجم (ص٥٩و ٦٠)ـ

[۳۳۱] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ عَبْدِاللَّهِ بْنِ دِينَارٍ عَنْ عَبْدِاللَّهِ بْنِ عُمَرَ [١] أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «إِنَّ مِنَ الشَّجَرِ شَجَرَةً لاَ يَسْقُطُ وَرَقُهَا، وَهِيَ مَثَلُ الْمُسْلِمِ، حَدِّثُونِي مَا هِيَ». فَوَقَعَ النَّاسُ فِي شَجَرِ الْبَادِيَةِ، وَوَقَعَ فِي نَفْسِي أَنَّهَا النَّخْلَةُ. قَالَ عَبْدُ اللَّهِ فَاسْتَحْيَيْتُ. فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَخْبِرْنَا بِهَا. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «هِيَ النَّخْلَةُ». قَالَ عَبْدُ اللَّهِ فَحَدَّثْتُ أَبِي بِمَا وَقَعَ فِي نَفْسِي فَقَالَ لأَنْ تَكُونَ قُلْتَهَا أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ يَكُونَ لِي كَذَا وَكَذَا. [ر: ٦١]

## رجال الحديث

① **اسماعيل** : دا ابوعبدالله اسماعيل بن ابی اویس عبدالله بن عبدالله بن اویس بن مالک بن ابی عامر اصبحی مدنی رحمه الله دي ـ ددوی حالات په کشف الباری کښې کتاب الایمان ,, باب تفاضل اهل الایمان فی الاعمال،، لاندې تیرشوی دی ـ [٢]

② **مالک** : دا امام دارالحجرة مالک بن انس بن مالک بن ابی عامربن عمرو الصبحی المدنی رحمه الله دي ـ

ددوی حالات هم په کتاب الایمان ,, باب من الدین الفرار من الفتن،، لاندې تیرشوې دی ـ [٣]

③ **عبدالله بن دینار** رحمه الله : دا بو عبدالرحمن عبدالله بن دینار قرشی عدوی مدنی رحمه الله دي.

ددوی حالات د کتاب الایمان : باب أمور الایمان، ، لاندې مختصر[٤] اود کتاب العلم، باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا و أنبأنا، ، لاندې په تفصیل سره تیرشوی دی.[٥]

④ **عبدالله بن عمر** رضي الله عنه : دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه مختصر حالات په کتاب الایمان،، باب الایمان وقول النبی صلى الله عليه وسلم بنی الاسلام علی خمس،، سره تیرشوی دی ـ [٦]

**قوله**: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم قَالَ : یعنی رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائیل بیشکه په ونوکښې یوه ونه داسې ده چې دهغې پانړې غورزیږی نه، هغه دمسلمان په شان ده، ماته اووایې چې کومه یوه اونه ده ؟ خلق دځنګل ونو طرف ته لاړل زما په زړهٔ کښې راغلل

---

[١] قوله ,, عبدالله بن عمر ,, وقد سبق تخريج هذا الحديث فى كتاب العلم. باب قول المحدث : حدثنا او اخبرنا وانبانا كشف البارى (ج٣ص ١٢٤و١٢٥)_

[٢] كشف البارى (ج٢ص١١٣_١١٥)_

[٣] كشف البارى (ج٢ص٨٠و٨١)_

[٤] كشف البارى (ج١ ص٦٨٥)_

[٥] كشف البارى (ج١ ص١٢٥)_

[٦] كشف البارى (ج١ص٦٣٧)_

چې هغه د کهجورې ونه ده ـ
عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمائي چې زهٔ شرميدم، نوخلقو عرض اوکړويا رسول الله ! تاسوددې په باره کښې موښرته اواني رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيل چې هغه د کهجورې ونه ده ـ
عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمائي چې ماخپل والدصاحب ته اووئيل چې زما په زړهٔ کښې داخبره راغلې وه، نوهغوى اوفرمائيل چې که تا دا وئيلى وو نوماته به په دې خبره ډيره خوشحالى شوې وه چې ماته دومره دومره ملاؤ شوې وه ـ
دا حديث مخکښې د کتاب العلم په شروع کښې تيرشوې دې او موښږ ډيرپه تفصيل سره ددې تشريح کړې ده ـ (١)

**د حديث باب دترجمة الباب سره مطابقت :** حضرت گنگوهى رحمه الله فرمائي چې دحضرت عمر رضي الله عنه ارشاد ,,لان تكون قلتها احب الى،، کښې ترجمة الباب طرف ته اشاره ده چې حضرت عمر رضي الله عنه دخپل خوې په استحياء باندې نکيراوکړو اودهغوى په سکوت باندې خوشحاله نه شو(٢) دا خبره نوروشراحو هم وئيلې ده ـ

علامه سندهى رحمه الله فرمائي ,, ويفهم ان الحياء فى العلم لاينبغى، من حديث ابن عمر رضي الله عنهما، بسبب قول عمر رضى الله عنه،،ـ (٣)
يعنى ,, د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دحديث نه معلوميږى چې په علم کښې حياکول مناسب نه دى، څنګه چې دحضرت عمر رضي الله عنه د قول نه معلوميږى،،ـ

دغه شان حافظ رحمه الله فرمائي : ,, وانما تاسف عمر رضي الله عنه على كون ابنه لم يقل ذلك لتظهر فضيلته، فاستلزم حياؤه تفويت ذلك، وقد كان يمكنه اذا استحيا اجلالا لمن هو اكبرمنه ان يذكر ذلك لغيره سرا ليخبر عنه، فيجمع بين الخصلتين، ولذا عقبه المصنف بباب من استحيا فامرغيره بالسؤال،،ـ (٤)
يعنى ,, حضرت عمر رضي الله عنه ته په دې خبره باندې افسوس اوشوچې دهغوى صاحبزاده جواب ور نه کړو، که چرې جواب ئې ورکړې وونو دهغه فضيلت به ظاهرشوې وو، دهغه دحيا دوجې نه دافضيلت پاتې شو، بياکه هغه ته په مجلس کښې دمشرانودوجې حيا لاحقه شوې وې بياهم ممکنه وه چې چاته ئې په پټه باندې وئيلې وې، دغه شان دحيا په تقاضې باندې به هم عمل شوې وو اودجواب ورکولو فضيلت به هم حاصل شوې وې ـ ددې نکته په پيش نظرمؤلف وړاندې باب قائم کړو،،ـ

حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائي چې : ,, دمؤلف غرض هم دا دې چې ابن عمر کوم دحيادوجې نه سکوت اوفرمائيلواوجواب ئې ورنه کړو دا حيا هم مستحسن ده، دا هغه حيا نه ده کومه چې د ,, ان الله لايستحيى من الحق،، يا ,, لايتعلم العلم مستحى ولا مستكبر،، مخالفه وى،ددې

(١) کشف البارى (ج٣ص ١٢٤ـ١٣٣)ـ
(٢) لامع الدرارى (مع الكنزالمتوارى فى معادن لامع الدرارى وصحيح البخارى) (ج٢ص ٣٩٠)ـ
(٣) حاشية السندى على صحيح البخارى (ج١ص٧١)ـ
(٤) فتح البارى (ج١ص ٢٣٠)ـ

مخالف صرف هغه ده کوم چې په وجه دحیاباندې علم ترک کړی شی، دچانه سوال نه کوی او دعلم نه محرومه پاتې شی . دحضرت ابن عمرپه سکوت کښې ددې احتمال نشته، اول خوداسکوت عن الجواب دې، عن السؤال نه دې، دویم ابن عمرته پته وه چې کوم واقعی جواب دې دا به په هرحال کښې نبی کریم ﷺ ارشاد فرمائی، کوم چې به ټولوته معلومه شی ـ باقی دحضرت عمر رضی الله عنه ارشاد ،نوهغه صرف خپل مسرت قلبی ظاهره وی. ددې نه دابن عمرد سکوت کراهیت اوهغه هم شرعی ګڼړل مستبعد ده. کماقال بعض الاعلام، والله علم،،ـ (1)

## ٥١ = باب مَن استَحيَا فَأمَرَ غَيرَهُ بِالسُّؤَالِ

**دباب سابق سره مناسبت** : ددې باب دسابق سره مناسبت واضحه دې چې سابق باب کښې دحیافی العلم کراهت مذکور وو۔اوپه دې باب کښې دامذکوردی چې که په ملازمت حیا سره مقصود حاصل شی نو په داسې حیا کښې څه کراهت نشته ځکه چې په حیا کښې ټول خیر خیر دې ـ (2)

**د ترجمة الباب مقصد** : حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی ،، ان الذی ذکر اولا من کراهة الحیاء فی المسالة حیث خاف الفوت فی الاستحیاء،، فاما اذا حصل المقصود مع ملازمة الحیاء فلا کراهة، فان الحیاء خیرکله،،ـ (3)

یعنی ,, ددینه ړومبی باب کښې ذکرشوچې چرته دحیا دوجې نه دعلم دمحرومئ اندیښنه وی هلته دحیا فی السؤال کراهت دې،البته که چرې دحیاالتزام کولوسره دمحرومې اندیښنه نه وی بلکه مقصود حاصلیږی نوبیا په داسې حیاکښې څه کراهت نشته،ځکه چې حیا خو سراسرخیردې،،ـ

حضرت شیخ الهند رحمه الله فرمائی چې ,,په وجه دحیاپه ترک سوال کښې هم څه حرج نشته دې، البته دا پکاردی چې په دویمې واسطې سره دحکم شرعی نه واقف شی، دعلم نه محرومه نشی،،ـ (4)

حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائی چې دمؤلف غرض ددې امرجوازښودل دی که چرې دسوال مقصود حاصلیږی نوپه داسې کولو کښې څه حرج نشته چې بل چا په ذریعه سوال کولوسره علم حاصل کړې شی ـ ،(5)

حاصل داچې امام بخاری په ماقبل کښې دحیافی العلم مسئله بیان کړې وه،اوس امام بخاری رحمه الله ښودل غواړی چې که څوک ډیرباحیا وی اوپخپله دتپوس کولو همت نه لری نودې

(1) الابواب والتراجم (٦٠)ـ
(2) اوګورئ لامع الدراری (ج٢ص٣٩١و٣٩٢)ـ
(3) لامع الدراری مع الکنزالمتواری (ج٢ص٣٩١و٣٩٢)ـ
(4) الابواب والتراجم (ص٦٠) تحت ,,باب الحیاء فی العلم،،ـ
(5) شرح تراجم ابواب البخاری (ص١٦)ـ

نه دي غافله او جاهل پاتې نشي بلكه دچا بې تلكفه په ذريعه باندې دې مسئله معلومه كړې شي. دې دپاره چې سړې دعلمي او عملي غلطې نه بچ پاتې شي ـ والله علم.

[۱۳۲] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ دَاوُدَ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ مُنْذِرٍ الثَّوْرِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ ابْنِ الْحَنَفِيَّةِ عَنْ عَلِيٍّ [۱]، قَالَ كُنْتُ رَجُلاً مَذَّاءً فَأَمَرْتُ الْمِقْدَادَ أَنْ يَسْأَلَ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فَسَأَلَهُ فَقَالَ «فِيهِ الْوُضُوءُ»

## رجال الحديث

① **مسدد**: دا مسدد بن مسرهد بن مسربل بن مرعبل الأسدى البصرى رحمه الله دې، ددۀ مختصر حالات په ,,كتاب الايمان،، ,,باب من الايمان ان يحب لاخيه مايحب لنفسه،، سره [۲]، او دغه شان تفصيلا په كتاب العلم كښې ,,باب من خص بالعلم قوما دون قوم كراهية ان لايفهموا،، سره تيرشوي دي ـ

② **عبدالله بن داود**: دا ابو عبدالرحمن عبدالله بن داود بن عامر بن الربيع الهمدانى ثم الشعبى المعروف بالخريبى دې ـ اصلا دكوفې دې، دبصره په محله ,, خريبه،، كښې ئې سكونت اختيار كړې وو، دې وجې نه د ,,خريبي،، په نسبت سره ډير معروف دې ـ [۳]

دې د اسرائيل بن يونس، اسماعيل بن ابى خالد، ثوربن يزيد، الحسن بن صالح، سفيان ثورى، امام اعمش، شريک بن عبدالله نخعى، قاضى عافيه، امام اوزاعى، عبدالملک بن جريج، فضيل بن غزوان، فطربن خليفه، مسعربن كدام او هشام بن عروه رحمهم الله ، وغيره حضراتو نه روايت حديث كوى ـ

د دوى نه روايت كونكو كښې بشربن الحارث الحافى، زيدبن اخزم الطائى، سفيان بن عيينه، الحسن بن صالح بن حى (وهو من شيوخه) ، عباس بن عبدالعظيم العنبرى، على بن المدينى، عمروبن على الصيرفى، عمروبن محمد الناقد، محمدبن بشار بندار، محمدبن الفضل عارم السدوسى، محمدبن يحيى الذهلى، مسدد بن مسرهد او نصربن على الجهضمى رحمهم الله وغيره

---

[۱] قوله : ,, عن على ،، الحديث، اخرجه البخارى فى صحيحه (ج۱ص۳۰) فى كتاب الوضوء، باب من لم يرالوضوء الامن المخرجين : من القبل والدبر، رقم:(۱۷۸)، و(ج۱ص۴۱) فى كتاب الغسل (الوضوء) باب غسل المذى والوضوء منه، رقم (۲۶۹)_ ومسلم فى صحيحه، فى كتاب الحيض، باب المذى، رقم (۶۹۵_۶۹۷)، والنسائى فى سننه، فى كتاب الطهارة، باب ماينقض الوضوء وما لاينقض الوضوء من المذى، رقم (۱۵۲_۱۵۴)، و(۱۵۷) وباب الغسل من المنى، رقم (۱۹۳،۱۹۴) وكتاب الغسل والتيمم، باب الوضوء من المذى، رقم (۴۳۶_۴۴۱)، وابوداود فى سننه، فى كتاب الطهارة، باب فى المذى، رقم (۲۰۶_۲۰۹)_ والترمذى فى جامعة فى كتاب الطهارة، باب ماجاء فى المنى والمذى، رقم (۱۱۴) _ وابن ماجه فى سننه، فى كتاب الطهارة باب الوضوء من المذى، رقم (۵۰۴) _ واحمد فى مسنده (ج۱ص۸۷) رقم (۶۶۲) و (۸۶۸_۸۷۰) و (۸۹۰و۸۹۱، ۸۹۳) و(۹۷۷) و(۱۰۲۸) و(۱۰۲۹) و(۱۲۳۸)_

[۲] كشف البارى (ج۲ص۲)_

[۳] اوګورئ تهذيب الكمال (ج۱۴ص۴۵۸و۴۵۹)_

لویٔ لویٔ محدثین دی۔ [۱]

امام یحیی بن معین رحمہ اللہ فرمائی ,,ثقة، صدوق، مامون،،_[۲]

امام سعد رحمہ اللہ فرمائی ,,کان ثقة ناسکا،،_[۳]

امام دارمی رحمہ اللہ فرمائی چې ماد یحیی بن معین رحمہ اللہ نه د عبدالله بن داود خریبی په باره کښې تپوس اوکړونو هغوی اوفرمائیل ,,ثقة مامون،، مابیا تپوس اوکړوچې ابو عاصم النبیل څنګه دې؟ نواوفرمائیل ثی ,,ثقة،، ما ترې نه دا دریافت کړل چې په دې دواړوکښې کوم یوستاسوپه نیز ډیر خوښ دې؟ نواوفرمائیل ئې ,,ثقتان،،_[۴]

لیکن امام دارمی رحمہ اللہ فرمائی ,,الخریبی اعلی،،_[۵]

امام ابوزرعه او امام نسائی رحمہ اللہ فرمائی ,,ثقة،،_[۶]

امام دارقطنی رحمہ اللہ فرمائی ,,ثقة زاهد،،_[۷]

ابن قانع رحمہ اللہ فرمائی ,,کان ثقة،،_[۸]

ابن حبان رحمہ اللہ دې په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې۔ [۹]

حافظ ابن حجر رحمہ اللہ فرمائی ,,ثقة عابد،،_[۱۰]

حافظ ذهبی رحمہ اللہ فرمائی ,,ثقة، حجة، صالح،،_[۱۱]

ابن عیینه رحمہ اللہ فرمائی ,,ذاك احد الاحدین،،_[۱۲] یعنی هغه په یواځوکښې یواځې دې۔ یوځل ئې اوفرمائیل ,,ذاك شیخنا القدیم،،_[۱۳]

---

[۱] دشیوخو اوتلامذه د تفصیل دپاره اوګورئ تهذیب الکمال (ج ۱٤ ص۴۵۹_۴۶۱)_

[۲] تهذیب الکمال (ج ۱٤ ص۴۶۱)_

[۳] طبقات ابن سعد (ج۷ص۲۹۵)_

[۴] تاریخ عثمان بن سعد الدارمی (ص۱۸۲)، رقم (۶۵۳_۶۵۵)_

[۵] حواله بالا_

[۶] تهذیب الکمال (ج ۱٤ص۴۶۲) والجرح والتعدیل (ج ۵ص۵۶)،رقم (۷۵۵۵)_

[۷] تهذیب الکمال (ج ۱٤ص۴۶۲) وقال ایضا: ,,من الرفعاء الثقات،، انظرسنن الدار قطنی (ج ۱ص۱۷۲)، کتاب الطهارة، باب احادیث القهقة فی الصلاة وعللها، رقم (٤۷)_

[۸] تهذیب التهذیب(ج۵ص۲۰۰)_

[۹] کتاب الثقات لابن حبان (ج۷ص۶۰)_

[۱۰] تقریب التهذیب (ص۳۰۱)،رقم (۳۲۹۸)_

[۱۱] الکاشف (ج ۱ص۵٤۹)،رقم (۲۷۰۶)_

[۱۲] تهذیب التهذیب(ج۵ص۲۰۰)_

[۱۳] حواله بالا_

ابوحاتم رحمه الله فرمائی ,, کان یمیل الی الرای، وکان صدوقا،،_ (۱)
امام وکیع رحمه الله فرمائی ,, النظرالی وجه عبدالله بن داود عبادة،،_ (۲)
عبدالله بن داود خریبی رحمه الله دامام ابوحنیفه رحمه الله په شاګردانوکښې دې. هغه دامام اعظم ډیرمداح وو، چنانچه دهغوی قول دې ,, مایقع فی ابی حنیفة الا حاسد او جاهل،،_ (۳)
یوځل دهغوی په وړاندې چا دامام ابوحنیفه ـ رح، تذکره کولو سره اووئیل چې امام ابوحنیفه دډیرو مسائلونه رجوع کړې ده، مقصد ئې دا وو چې رجوع کول دناپختګۍ علامه ده ـ لیکن خریبی رحمه الله فورا جواب ورکړو ,, انما یرجع الفقیه اذا تسع علمه،_ (۴)
یعني ,, فقیه هغه وخت رجوع کوی کله چې دهغه په علم کښې وسعت راځی،،ـ
عبدالله بن داود خریبی رحمه الله دامام ابوحنیفه رحمه الله په خدماتو، خصوصا د سنن وفقه دحفاظت خدمت په بنیاد باندې به ئې وائیل ,, یجب علی اهل الاسلام ان یدعوا الله لابی حنیفة فی صلاتهم،،_ (۵)
یعني,, په اهل اسلام باندې واجب دی چې په خپلومونځونوکښې دامام ابوحنیفه دپاره دالله تعالی نه دعا غواړی،،ـ
عبدالله بن داود خریبی رحمه الله ډیرپه مشکله حدیثونه اورول ـ (۶)
قاضی یحیی بن اکثم رحمه الله لره ئې یوځل په لیدلوسره اووئیل چې ته ما کله اولیدلې نوما عزم اوکړو چې تاته به حدیث نه اوروم ـ (۷)
یوځل ابوالعیناء هغوی لره دحدیث اوریدلودپاره راغللو. نوهغوی ترې نه تپوس اوکړو چې څنګه راغلې ئې ؟ نوهغه جواب ورکړوچې دحدیث اوریدولو دپاره راغلې یم، نووې فرمائیل چې لاړشه اورومبې قرآن زدهٔ کړهٔ بیا راشه. ابوالعیناء اوفرمائیل چې ما قرآن زده کړې دې فورا ئې ترې نه امتحان واخستلو، نوهغه فورا جواب ورکړو، نوبیا ئې اوفرمائیل چې لاړ شه اوفرائض زدهٔ کړه نوهغه اوئیل چې هغه مې زدهٔ کړی دی، دفرائض امتحان ئې هم واخستلو، دې نه پس ئې ورته اوئیل چې اوس ,,عربیت،، زدهٔ کړه جواب ئې ورکړو چې دقرآن کریم او د فرائض نه وړاندې مې د ,,عربیت،، علم حاصل کړې دې، فورا ئې سوال ور واچولو، ابوالعیناء ددې جواب هم ښه کافی شافی ورکړو. په آخرکښې اوفرمائیل ,, لوحدثت احدا لحدثتك،، که چرې ما چاته حدیث اورولونو تاته به مې ضرور اورولې وې ـ (۸)

---

۱) الجرح والتعدیل (ج۵ص۵۵)، رقم (۷۵۵۵)_
۲) تذکرة الحفاظ (ج۱ص۳۳۸)_
۳) سیر اعلام النبلاء (ج۶ص ۴۰۲)_
۴) تذکرة الحفاظ (ج۱ص۳۳۸)_
۵) الاکمال لابن ماکولا _(ج۳ص۲۸۵و۲۸۶)_
۶) تذکرة الحافظ (ج۱ص۳۳۸)،رقم (۳۲۰) _
۷) حواله بالا _
۸) حواله بالا_

عبدالله بن داود خریبی رحمه الله ۱۲۲ هجری کښې پیداشوې وواوپه ۲۱۳ هجری کښې وفات شوې دې ـ (۱)
دامام مسلم رحمه الله نه سواباقی اصحاب اصول خمسه هم دهغوی دحدیثوتخریج کړې دې ـ (۲)
رحمه الله تعالیٰ رحمة واسعة

③ **الاعمش** دا ابومحمدسلیمان بن مهران الاسدی الکوفی المعروف بالاعمش رحمه الله دې ـ ددوی حالات په کتاب الایمان، ،،باب ظلم دون ظلم،، لاندې تیرشوې دې ـ (۳)

④ **منذ ر الثوری** :دا ابویعلی منذربن یعلی الثوری الکوفی رحمه الله دې ـ (۴)
دې د محمدبن الحنفیة، الحسن بن محمدبن الحنفیة، الربیع بن خثیم، سعیدبن جبیر، عاصم بن ضمرة رحمهم الله نه روایت کوی ـ
اوددهٔ نه سفیان ثوری،امام اعمش،فطربن خلیفه، الحجاج بن ارطاة، جامع بن ابی راشد اومحمدبن سوقه رحمهم الله وغیره روایت کوی ـ (۵)
ابن سعد رحمه الله فرمائی چې ،،ثقة، قلیل الحدیث،،ـ (۶)
امام یحیی بن معین، عجلی او ابن خراش رحمهم الله فرمائی ،،ثقة،،ـ (۷)
حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی ،،وثقوه،، (۸) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی ،،ثقة،،ـ (۹)
ابن حبان رحمه الله دې په کتاب الثقات کښې ذکرکړې دې ـ (۱۰)
محمدبن الحنفیه رحمه الله سره دومره پاتې شوې ووچې دهغوی صاحبزاده وائی ،، لقد غلبنا هذا النبطی علی ابینا،، (۱۱) یعنی دا نبطی زمونږ په والد باندې زمونږ نه غالب راغللو ـ
اصحاب اصول سته ددهٔ روایت اخستې دی ـ (۱۲) رحمه الله تعالیٰ رحمة واسعة .

---

(۱) تهذیب الکمال (ج ۱٤ص٤٦٧)ـ
(۲) حواله بالا ـ
(۳) کشف الباری (ج۲ص۲۵۱)ـ
(۴) تهذیب الکمال (ج۲۸ص۵۱۵) ـ
(۵) دشیوخواوتلامذه تفصیل دپاره اوګورئ تهذیب الکمال (ج۲۸ص۵۱۶)ـ
(۶) الطبقات لابن سعد (ج۶ص ۳۱۰)ـ
(۷) الجرح والتعدیل (ج۸ص۲۷۶)، رقم (۱٤٤۰۰)ـ
(۸) الکاشف (ج۲ص۲۹۶)،رقم (۵۶۳۵)ـ
(۹) تقریب التهذیب (ص۵۳۶)، رقم (۶۸۹٤)ـ
(۱۰) الثقات لابن حبان (ج۷ص ٤۸۰)ـ
(۱۱) تهذیب الکمال (ج۲۸ص۵۱۶و۵۱۷)ـ
(۱۲) تهذیب الکمال (ج۲۸ص۵۱۷)ـ

⑤ **محمد بن الحنفيه** : دې د حضرت على بن ابى طالب كرم الله وجهه صاحبزاده محمدبن على بن ابى طالب رحمة الله دې، ابوالقاسم ددۀ كنيت دې، ابوعبدالله هم ورته ونيلې كيږى، ,, ابن الحنفية،، نوم سره معروف دې ـ [1]
حنفيه په اصل كې ددوى د مور نسبت دې. چه دهغې تعلق د بنو حنيفه سره وو. دهغې اصل نوم خوله بنت جعفر بن قيس دې، په جنګ يمامه كې قيد شوې راوستلې شوې وه [2]
دې دخپل والد حضرت على ؓ نه علاوه دحضرت عثمان ؓ، حضرت عبدالله بن عباس ؓ، حضرت عماربن ياسر ؓ، دحضرت معاويه ؓ اودحضرت ابوهريره ؓ نه روايت كوى.
او ددۀ نه روايت كونكو كښې ددۀ خوې ابراهيم بن محمد بن الحنفية اوحسن بن محمدبن الحنفيه، عبدالله بن محمد بن الحنفيه، عمربن محمدبن الحنفية، عون بن محمدبن الحنفية نه علاوه سالم بن ابى الجعد، عبدالله بن محمدبن عقيل، عبدالاعلى بن عامرثعلبى، عطاء بن ابى رباح، عمروبن دينار، ابوجعفرمحمدبن على بن الحسين بن على بن ابى طالب، اوددۀ وورارۀ محمدبن عمربن على بن ابى طالب، محمدبن قيس بن مخرمه، محمدبن نشر الهمدانى، منذربن يعلى الثورى اومنهال بن عمرو رحمهم الله وغيره حضرات دى ـ [3]
ددۀ نوم اوكنيت حضرت على ؓ دحضور نبى كريم ﷺ په اجازت اخستوسره محمد او ابوالقاسم ايخودې وو، چنانچه دحضرت على ؓ نه روايت دې ,, **قلت : يا رسول الله، ان ولد لى مولود بعدك اسميه باسمك واكنيه بكنيتك؟ قال : نعم،،** ـ [4]
يعنى ,, يارسول الله ! كه ستاسونه پس خما كوم نوې پيدا كيدونكې وى نوستاسوپه نوم ورته نوم كيګدم اوستاسو په كنيت ورته كنيت كيګدم ؟ نونبى عليه السلام ورته اوفرمائيل چې هاؤ! اجازت دې،، ـ
امام عجلى رحمه الله فرمائى، تابعى ثقة، كان رجلا صالحا،، ـ [5]
ابراهيم بن عبدالله بن الجنيد رحمه الله فرمائى :
**لانعلم احدا اسند عن على عن النبى صلى الله عليه وسلم اكثرولا اصح مما اسند محمد بن الحنفية،،** ـ [6]
يعنى ,, محمد بن الحنفية كوم چې دحضرت على ؓ په واسطه سره دحضوراكرم ﷺ روايات بيانوى مونږ ددۀ نه اوچت په كثرت اوصحت كښې څوک نه دې موندلې ـ
يوكس محمد بن الحنفية ته اووئيل ,, **ما بال ابيك كان يرمى بك فى مرام لا يرمى فيها الحسن**

---

[1] تهذيب الكمال (ج۲۶ص ۱۴۷و۱۴۸)ـ
[2] پورتنئ حواله ـ
[3] دشيوخواوتلامذه تفصيل دپاره اوګورئ تهذيب الكمال (ج۲۶ص۱۴۸و۱۴۹)ـ
[4] سنن ابى داود، كتاب الادب، باب فى الرخصة فى الجمع بينهما، رقم (۴۹۶۷)، وجامع الترمذى، ابواب الادب، باب ما جاء فى كراهية الجمع بين اسم النبى صلى الله عليه وسلم وكنيته، رقم (۲۸۴۳) ـ
[5] تهذيب الكمال (ج۲۶ص۱۴۹)ـ
[6] حواله بالا ـ

والحسین؟،، یعنی ,, څه خبره ده چې ستا والدتالره په داسې داسې مشکل مهماتو کښې لیږی چرته چې حسن اوحسین نه لیږی ؟،،
نوپه دې باندې هغه جواب ورکړو : ,, لانهما کانا خدیه وکنت یده، فکان یتوقی بیده من خدیه،،_ (١)
یعنی ,,خکه چې هغوی دواړه دهغه دپاره درخسار حیثیت لری اوخه دلاس حیثیت لرم او دا فطری خبره ده چې دخپل رخسارو بچکول په لاسونوسره کیږی،،۔
ابن سعد رحمه الله فرمائی ,,کان کثیر العلم،ورعا،،_ (٢)
ابن حبان دې په کتاب الثقات کښې ذکرکړې دې او لیکلی دی ,,کان من افاضل اهل بیته،، (٣)
دې د حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه په دورخلافت کښې پیداشوې دې، دیوبل قول مطابق دحضرت عمر رضی الله عنه په عهد خلافت کښې پیداشوې دې، په بچپن کښې ئې دحضرت عمر رضی الله عنه زیارت هم کړې دې۔
په تاریخ وفات کښې ئې ۷۳هجری ، ۸۱هجری ، ۸۲هجری، ۹۲هجری، او۹۳هجری، مختلف اقوال ملاویږی۔ (٤) رحمه الله تعالی رحمة واسعة۔
⑥ **حضرت علی رضی الله عنه** : دحضرت علی بن ابی طالب کرم الله تعالی وجهه حالات په کتاب العلم ,,باب اثم من کذب علی النبی صلی الله علیه وسلم،، سره تیرشوی دی ۔
**قوله:** قَالَ كُنْتُ رَجُلاً مَذَّاءً :حضرت علی رضی الله عنه فرمائی چې مانه به په کثرت سره مذی خارج کیدله ۔
,,مذی،،هغه اوبه دی کومې چې دخپلې ښځې سره دملاعبت اودمینې په وخت خارج کیږی (٥)
دثلاثی مجرد نه دا مذی یمذی مذیا اود ثلاثی مزید نه دباب افعال اودباب تفعیل نه استعمالیږی، په معنی د ,, خرج منه المذی_ مذاء : بروزن شداد ، کثیر المذی سړی ته وائیلې کیږی ۔ (٦)
بیا لفظ ,,مذی،، دمیم په فتحه، د ذال په سکون اودیاء مخففه سره لوستلې کیږی، بعضې حضراتو,,مذی،، په وزن د,,غنی،، یعنی دمیم په فتحه، او دذال په کسره او په یا ء مشدده سره ضبط شوې دې،ددې رومبې ضبط افصح او اعلی دې ۔ (٧)

---

(١) تهذیب الکمال (ج۲۶ص۱۵۲)_
(٢) الطبقات لابن سعد (ج۵ص۱۱۶)_
(٣) کتاب الثقات لابن حبان (ج۵ص۳٤۷)_
(٤) تهذیب التهذیب (ج۹ص ۳۵٤) _
(٥) النهایة لابن الاثیر(ج۹ص ۳۵٤_
(٦) تاج العروس (ج ۰,ص ۳۳۹) مادة ,,مذی،،_
(٧) تاج العروس (ج۱۰ص۳۳۹) مادة ,,مذی،،_

**قوله**: فَأَمَرْتُ الْمِقْدَادَ أَنْ يَسْأَلَ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم فَسَأَلَهُ: بس ما مقداد بن الاسود ته حکم ورکړو چې حضور اکرم ﷺ نه ددې حکم دریافت کړي، نوهغوی دریافت کړو۔

مخکښې په کتاب الغسل کښې روایت رروان دې، په هغې کښې دی .. **فامرت رجلا**،، [1]په هغې کښې درجل مبهم نه هم دا حضرت مقداد بن الاسود رضي الله عنه مراد دې ۔ [2]

**دحضور اکرم ﷺ نه دمذې په باره کښې سوال کو لو والا څوک وو؟** بیا دلته سائل حضرت مقداد رضي الله عنه دې ۔

دسنن نسائی په یو روایت کښې سائل ئې حضرت عمار رضي الله عنه گرزولې شوې دې ۔ [3]

او دابن حبان [4]طحاوی [5] اوداسماعیلی [6] په روایتونوکښې دی چې په خپله حضرت علی رضي الله عنه سوال کړې دې ۔

ابن حبان رحمه الله دا درې واړه روایاتونه داسې جمع کړی دی چې حضرت علی رضي الله عنه ړومبې په خپله سوال کړې دې بیائې حضرت عمار ته دتپوس کولو وینا کړې ده،اوبیا ئې حضرت مقداد ته حکم کړې دې اوبیا ئې په خپله تپوس کړې دې ۔ [7]

حافظ رحمه الله فرمائی چې دا دتطبیق مناسب دې،بیاهم چونکه په بعضې طرقوکښې دحضرت علی رضي الله عنه استحیاء مذکور ده، ددې وجې نه په خپله دحضرت علی رضي الله عنه تپوس کول به په مجاز باندې حمل کیږی او وئیلې کیږی به چې چونکه آمر حضرت علی رضي الله عنه وو، ددې وجې بعضې راویانو حضرت علی رضي الله عنه دسوال کولونسبت کړې دې ـ په دې جواب باندې نووی او اسماعیلی رحمهما الله جزم کړې دې ۔ [8]

حضرت علی رضي الله عنه حضرت مقداد اوحضرت عمار رضي الله عنهما کښې هریوته حکم ورکړې وو ددې تائید ددې روایت نه کیږی کوم چې امام عبدالرزاق صنعانی رحمه الله په خپل .. مصنف،، کښې نقل کړی دی:

.. عائش بن انس اخو سعد بن لیث قال : تذاکر علی بن ابی طالب وعمار بن یاسر والمقداد بن الاسود : المذی، فقال علی : انی رجل مذاء، فاسالوا رسول الله صلی الله علیه وسلم عن ذلك، فانی استحیی ان اساله

---

[1] صحیح البخاری (ج۱ص۴۱)، کتاب الغسل، باب غسل المذی والوضوء منه ـ

[2] فتح الباری (ج۱ص۳۷۹))، کتاب الغسل،باب غسل المذی والوضوء منه ـ

[3] سنن النسائی، کتاب الطهارة، باب ما ینقض الوضوء وما لاینقض الوضوء من المذی، رقم (۱۵۴و۱۵۵)ـ

[4] الاحسان بترتیب صحیح ابن حبان (ج۳ص۱۶۳)، ذکرایجاب الوضوء علی المذی والاغتسال علی المنی، رقم (۱۱۰۱)ـ

[5] شرح معانی الاثار،کتاب الطهارة،باب الرجل یخرج من ذکره المذی،کیف یفعل ؟ رقم (۱۰-۷) ـ

[6] فتح الباری (ج۱ص ۳۸۰)، کتاب الغسل،باب غسل المذی والوضوء منه ـ

[7] الاحسان بترتیب صحیح ابن حبان (ج۳ص۱۶۳و ۱۶۴)ـ

[8] فتح الباری (ج۱ص ۳۸۰))، کتاب الغسل،باب غسل المذی والوضوء منه ـ

عن ذلك لمكان ابنته منى، لولا مكان ابنته لسالته، فقال عائش : فسال احد الرجلين عمار او المقداد. [۱]
يعنى .. حضرت علي، حضرت عمار اوحضرت مقداد ﷺ د..مذي،. دحکم په باره کښې مذکراه کوله. حضرت علي اوفرمائيل چې زهٔ کثير المذی سړې يم. حضوراکرم ﷺ نه ددې په باره کښې تپوس اوکړئ چونکه دهغوی ﷺ لور ما سره ده. خکه زهٔ دنبی ﷺ نه په تپوس کولو کښې حيا محسوسه کومه که دنبی ﷺ لور ماسره نه وه نو ما به ضرور تپوس کړې وو.
عائش بن انس وائی چې بيا عمار يا مقداد کښې يو کس دحضرت نبی ﷺ نه دمسئلې په باره کښې تپوس اوکړو،.۔
ابن بشکوال رحمه الله دحضرت مقداد ﷺ سائل کيدلو له صحيح گرزولې دی ۔ [۲]
په دې صورت کښې به دحضرت عمار ﷺ طرف ته دسوال کولونسبت به هم مجازی وی اووئيلې به شی چې چونکه هغوی دسوال کولو قصد کړې ووخکه دهغوی طرف ته نسبت کړې شوې دې، البته سوال هم مقداد کړې وو۔ [۳] والله اعلم.
دا هم ممکن ده چې کله داسوال نبی کريم ﷺ نه حضرت مقداد اوکړونوحضرت علي هم همت اوکړو او دمسئلې دنزاکت په پيش نظرمزيد تسلی اواطمينان دپاره هغوی سوال اوکړو۔
**قوله: فَقَالَ «فِيهِ الْوُضُوءُ»:** نبی کريم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو. دمذې دوجې نه اودس دې يعنی په خروج دمذې باندې اودس واجب دې، ددې دوجې نه غسل نه دې واجب ۔
**په خروج دمذی صورت کښې به جميع ذکر وينځلې کيږی يا به موضع اصابت وينځل کافی وی؟** : دعلماء په دې خبره باندې اجماع ده چې په خروج دمذی فقط موجب داودس دی ۔ [۴]
البته اختلاف په دې خبره کښې دې چې په خروج دمذی دوجې نه صرف موضع اصابت وينځل پکاردی اوکه دذکر سرد انثيين هم وينځل پکار دی ؟
امام زهری رحمه الله فرمائی چې په خروج دمذی صورت کښې به جميع ذکر وينځل واجب دی، صرف موضع اصابت وينځل کافی نه دی ۔ [۵]
دامام مالک اود امام احمد رحمهما الله هم يويو روايت هم دادې ۔ [۶]
دامام مالک او دامام احمد رحمهما الله يوبل روايت دادې چې دذکرسره سره دانثيينو وينځل هم واجب دی، هم دا دامام اوزاعی رحمه الله راې هم ده ۔ [۷]
دامام ابوحنيفه. دامام شافعی او دجمهوروعلماؤ مذهب دادې چې په خروج دمذی صورت

---

[۱] المصنف لعبد الرزاق ـ ج۱ص۱۵۵)، رقم (۵۹۷) ـ نيزدې سراوګورئ سنن النسائی.کتاب الغسل والتيمم من المجتبی، الوضوء من المذی، رقم (۴۳۶)ـ
[۲] فتح الباری (ج۱ص۳۸۰))، کتاب الغسل،باب غسل المذی والوضوء منه ـ
[۳] حواله بالا ـ
[۴] اوجزالمسالک (ج۱ص۴۷۳)، کتاب الطهارة. باب الوضوء من المذی ـ
[۵] عمدة القاری (ج۳ص۲۱۹) کتاب الوضوء. باب غسل المذی والوضوء منه ـ
[۶] المغنی لابن قدامة(ج۱ص۱۱۲) باب ماينقض الطهارة ـ والاستذکار(ج۱ص۲۸۴) باب الوضوء من المذی
[۷] نيل الاوطار (ج۱ص۲۷) باب ماجاء فی المذی ـ

كښې به صرف هم موضع اصابت وينځلې كيږى. ذكراو انثيين هريولره به دعدم اصابت په صورت كښې به دوينځلوضرورت نه وى ـ [1]

ذكر اوانثيين دغسل دقائلينو استدلال دحضرت رافع بن خديج رضي الله عنه روايت نه دې

"ان عليا امرعمارا ان يسال رسول الله صلى الله عليه وسلم عن المذى، فقال: يغسل مذاكيره ويتوضا" [2]

"يعنى حضرت على رضي الله عنه حضرت عمار رضي الله عنه ته حكم وركړوچې درسول الله ﷺ نه دمذى په باره كښې تپوس اوكړه. نوهغوى اوفرمائيل چې ذكر اوددې ګيرچاپيره مقامات دې اوينځلې شى اواودس دې اوكړې شى"۔

دغه شان د ابوداودپه يو روايت كښې دى "ليغسل ذكره وانثييه"ـ [3]

دحضرت عبدالله بن سعد انصارى رضي الله عنه په روايت كښې دى "فتغسل من ذلك فرجك وانثييك ......" [4] يعنى ته به دمذى دوجې نه خپل شرمګاه او انثيين وينځې"۔

په شرح معانى الآثار كښې دحضرت عمر رضي الله عنه داثر نه هم دا حضرات استدلال كوى "اذا وجدت الماء فاغسل فرجك وانثييك ......" ـ [5] يعنى "كله چې مذى اوموموې نو ته خپل شرمګاه اوانثيين اوينځه"۔

**د جمهورو دلائل**: ① په سنن نسائى كښې دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه مروى دى:

"تذاكر على والمقداد وعمار ......فقال النبى صلى الله عليه وسلم : ذالك المذى، اذا وجده احدكم فليغسل ذلك منه، وليتوضا وضوءه للصلاة ........" [6]

يعنى "حضور اكرم ﷺ اوفرمائيل دا مذى ده. كله چې په تاسو كښې څوك مذى بيامومى نو دا دې اوينځى او دمانځه دپاره چې څنګه اودس كيږى دغه شان اودس دې اوكړى"۔

② په سنن نسائى كښې اوپه مصنف عبدالرزاق كښې دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما روايت دې، په كوم كښې چې حضوراكرم ﷺ فرمائيلى دى:

"ذاك المذى، اذا وجد احدكم فليغسل ذلك منه، وليتوضا وضوءه للصلاة، او كوضوئه للصلاة"ـ [7]

---

[1] عمدة القارى (ج٣ص٢١٩)، نيز د تفصيل دپاره اوګورئ احكام الاحكام شرح عمدة الاحكام (ج١ص٦٣) كتاب الطهارة باب فى المذى وغيره ـ وشرح النووى على صحيح مسلم (ج١ص١٤٣) كتاب الطهارة، باب المذى ـ

[2] سنن النسائى، كتاب الطهارة، باب ماينقض الوضوء ومالاينقض الوضوء من المذى، رقم (١٥٥) ـ وانظر السنن لابى داود، كتاب الطهارة، باب فى المذى، رقم (٢٠٧ ـ ٢٠)ـ

[3] السنن لابى داود، كتاب الطهارة، باب فى المذى،رقم (٢٠٨)ـ

[4] السنن لابى داود، كتاب الطهارة، باب فى المذى،رقم (٢١١)ـ

[5] شرح معانى الآثار، كتاب الطهارة، باب الرجل يخرج من ذكره المذى كيف يفعل، رقم (١٤) ـ

[6] سنن النسائى، كتاب الطهارة، باب الوضوء من المذى،رقم (٤٣٦)ـ

[7] سنن النسائى، كتاب الطهارة، باب الوضوء من المذى،رقم (٤٣٦)ـ والمصنف لعبدالرزاق الصنعانى (ج١ص١٥٥)، رقم (٥٩٧) ـ

،، يعني دامذي ده. په تاسو كښې چاته دې سره مخكښې والې اوشي نو،،دې لره دې، اوينځي اودمونځ دپاره چې څنګه اودس كوي دغه شان دې مكمل اودس اوكړي ۔،،

ددې حديث داوريدو نه پس ابن جرير دحضور ﷺ دارشاد ،، فيغسل ذلك منه،، په باره كښې دعطاء رحمه الله نه تپوس اوكړونو امام عطاء رحمه الله جواب اوكړو،،حيث المذي منه فقط،،۔(١) مطلب داچې په كوم ځائې كښې مذى لګيدلې وى صرف هم هغه ځائې وينځل پكاردى يا جميع ذكر لره؟ نوعطاء ورته جواب وركړوچې چرته مذى لګيدلې وى صرف هغه ځاې لره دې اوينځى ۔

③ ۔ په شرح معانى الآثار كښې د حضرت على رضي الله عنه نه مروى دى:

،،كنت رجلا مذاء، وكانت عندى بنت رسول الله صلى الله عليه وسلم، فارسلت الى رسول الله صلى الله عليه وسلم، فقال: توضاواغسله،،۔(٢)

يعني ،، زۀ په كثرت مذى په عارضه كښې مبتلا اووم، چونكه ماسره درسول الله ﷺ صاحبزادى وه دې وجې ما بل څوك دمسئلې دريافت كولودپاره حضورنبى اكرم ﷺ ته اوليږولو، نوهغوى اوفرمائيل چې بس! اودس اوكړۀ او ،،هغې لره،، اوينځه،،۔

④ په مصنف عبدالرزاق كښې دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما فتوى ده ،،......من المنى الغسل، ومن المذى والودى: الوضوء، يغسل حشفته ويتوضا،،(٣)

حافظ ابن عبدالبر رحمه الله فرمائي: ،،واما معنى غسل الذكر من المذى، فانه يريد غسل مخرجه وما مس الاذى منه، وهذا الاصح عندى فى النظر،،۔(٤)

يعني ،، غسل الذكر من المذى،، نه مرادمخرج دمذى لره اوكوم كوم ځې كښې چې مذى لګيدلى وى هغې لره وينځل دى، هم دا زمايه نيزعقلى اعتبار سره اصح دى ۔

**دجمهورو دطرف نه مخالفينوته جواب**: تركوم ځې پورې چې دهغې رواياتوتعلق دې په كوم كښې چې ،،ذكر،، سره د،،انثيين،، لره دوينځلو ذكردې نوجمهورپه نيزدا ياخوپه استحباب باندې محمول دى ۔(٥)

ياداحكم علاجا دې، څنګه چې امام طحاوى رحمه الله تصريح كړې ده چې داوبو دڅهركاؤ دې وجې نه تقلص كيږى اودخروج مذى انقطاع كيږى ۔(٦)

يوجواب دا هم وركړې شوې دې چې په عام طورباندې خلقودا ګڼړل چې دمذى معامله د ،،بول،، نه اخف ده، نودومره احتياط به ئې نه كولوځومره چې پكاردې، دې وجې نه

---

(١) اوګورئ: الاستذكار (ج١ص٢٨٢)، باب الوضوء من المذى، والتمهيد لابن عبدالبر(ج٢١ص٢٠٥)۔
(٢) شرح معانى الآثار، كتاب الطهارة، باب الرجل يخرج من ذكره المذى كيف يفعل؟ رقم (٥) ۔
(٣) مصنف عبدالرزاق (ج١ص١٥٩) كتاب الطهارة، باب المذى،رقم (٦١٠) ۔
(٤) التمهيد لابن عبد البر (ج٢١ص٢٩٨)۔
(٥) المغنى لابن قدامة (ج١ص١١٢) باب ماينقض الطهارة ۔
(٦) شرح معانى الآ ثار كتاب الطهارة،باب الرجل يخرج من ذكره المذى كيف يفعل؟

حضوراكرم ﷺ په دې كښې دشدت حكم وركړوچې ,ذكر، ,سره ,,انثيين،، لره هم اوينځئ[1]
ابن رسلان رحمه الله فرمائى چې جمهورو اصل موجب لره كتلى دى، ځكه چې اصل موجب خو,,خروج خارج،، دې نولهذاددې حكم به بل محل طرف ته متجاوز كيږى نه بلكه صرف مخرج سره به متعلق وى ـ[2]

ددې خبرې تائيد دجمهورو د وركړې شوى دلائلونه كيږى په كوم كښې چې د,, اغسله،،[3] الفاظ دى، دكوم ضميرچې د,,مذى،، طرف ته واپس ګرزى ـ

**دخروج مذى په صورت كښې داوبو استعمال ضرورى دې كه استجمار بالاحجار كافى دى؟:** په دې مسئله كښې اختلاف دې چې په خروج دمذى صورت كښې ددې دتطهيردپاره داوبواستعمال ضرورى دى كه يا داحجار استعمال كافى دې ـ

داحنافوپه نيزداحجار استعمالولوباندې اكتفاكول جائزدى ـ[4]

دشوافع په نيزدواړه اقوال دى ـامام نووى رحمه الله په شرح دصحيح مسلم كښې دا قول راجح ګرزولې دې چې داوبواستعمال ضرورى دى ـ[5]

اوپه,,المجموع،، كښې دويم قول يعنى اكتفابالاحجار لره قول اصح ګرزولې دې ـ[6]

دحنابله په نيز يو روايت د اكتفا بالاحجار دې[7] يوروايت په ,,نضح،، باندې داكتفادې[8]اويوروايت دادې چې غسل ضرورى دې ـ[9]

دمالكيه په نيزهم دواړه اقوال دى،البته ابن عبدالبر رحمه الله دا قول راجح ګرزولې دې چې ,,غسل،، ضرورى دې ـ[10] والله اعلم وعلمه اتم واحكم ـ

## ۵۲=باب ذِكْرِ الْعِلْمِ وَالْفُتْيَا فِي الْمَسْجِدِ

**دباب سابق سره مناسبت :** په دې باب كښې اوپه سابق باب كښې مناسبت داسې دې چې په باب سابق كښې دحضرت مقداد رضي الله عنه د,,مذى،،,د حكم په باره كښې سوال مذكوردې، اوپه

---

[1]) مرقاة المفاتيح (ج۱ص۳۳۵) باب مايوجب الوضوء ـ
[2]) اوجزالمسالک (ج۱ص۴۷۵)ـ
[3]) اوجزالمسالک (ج۱ص۴۷۵)ـ
[4]) اوجزالمسالک (ج۱ص۴۷۳ و ۴۷۴)ـ
[5]) شرح النووى على صحيح مسلم (ج۱ص۱۴۳) كتاب الحيض، باب المذى ـ
[6]) المجموع شرح المهذب (ج۲ص۱۴۴) باب الاستطابة ـ
[7]) اوجزالمسالک (ج۱ص۴۷۴)،وفتح البارى لابن رجب (ج۱ص۳۰۵)،كتابُ الغسل،باب غسل المذى والوضوء منه ـ
[8]) المجموع (ج۲ص۵۱۰)، باب ازالة النجاسة، وفتح البارى لابن رجب (ج۱ص۳۰۶)ـ
[9]) المجموع (ج۲ص۱۴۴) باب الاستطابة ـ
[10]) اوګورئ:الاستذكار(ج۱ص۲۸۴) كتاب الطهارة،باب الوضوء من المذى ـ

دې باب کښې د ,, اهلال للحج،، سوال مذکور دې، په دواړوکښې دامردینی متعلق استفسار دی ـ (۱)

**دترجمة الباب مقصد** : حافظ رحمه الله فرمائی چې امام بخاری رحمه الله دهغه خلقوتردید کول غواړی کوم چې وائی چې په جمات کښې مباحثه کولوپه صورت کښې به رفع صوت لازمیږی، په دې سلسله کښې داحضرت توقف کوی، امام بخاری رحمه الله په جواز باندې متنبه کولوسره دهغوی تردید کوی ـ (۲)

حضرت شیخ الهندرحمة الله فرمائی : ,, افتاء وتعلیم وقضاء فی المسجد کښې تنګی اودکراهت ګمان دې، دبعضې اکابرواقوال هم دتنګې طرف ته مشیردی (۳)، دمؤلف رحمه الله په نیزېه دې اموروکښې توسع مستحسن ده، ځکه ئې دلته هم او په ابوابو دقضاء کښې هم توسع کړې ده ـ والله اعلم،، ـ (۴)

حاصل داچې بعضې سلفوبه وئیل چې جماتونه دمونځونواودذکراذکار دپاره وضع کړې شوی دی تعلیم اوتبلیغ دجمات دوضع نه خلاف دی، نیزېه جمات کښې چې کله ماشومان سبق وائی نو شور اوشغرپ کیږی، مباحثه کیږی، آوازونه اوچت کیږی، نو جمات لره دداسې شورشغرپ نه پاکول پکاردی ـ

چنانچه اشهب رحمه الله نقل کوی : ,, سئل مالك عن رفع الصوت فی المسجد فی العلم وغیره، قال لاخیر فی ذلك فی العلم ولافی غیره، لقد ادرکت الناس قدیما یعیبون ذلك علی من یکون فی مجلسه، ومن کان یکون فی ذلك مسجده کان یعتذر منه، وانا اکره ذلك، ولا اری فیه خیرا،، ـ (۵)

یعنې ,, امام مالک رحمه الله نه کله چې تپوس اوکړې شوچې په جمات کښې دعلم وغیره مذاکره سره آواز اوچتول څنګه دی ؟ نووې فرمائیل چې که علم وی یا نورڅه په دې که هیڅ خیر نشته دې، ما په قدیمه زمانه کښې خلق لیدل چې په کوم مجلس کښې به داسې کیدل نوهغوی به نه خوښول اوکه چرته به داسې په جمات کښې به کیدل نوهغوی به اعتذار کولو، زۀ په خپله دانه خوښومه اوپه دې کښې څه خیرنه وینم،،ـ

امام بخاری رحمه الله ددغه حضراتو تردید کوی اوفرمائی چې علم خوپخپله یومخصوص ذکردې ـ

---

(۱) عمدة القاری (ج۲ص۲۱۷)ـ

(۲) فتح الباری (ج۱ص ۲۳۰) ـ

(۳) چنانچه په صحیح بخاری شریف کتاب الصلاة،باب رفع الصوت فی المساجد،رقم (۴۷۹) کښې دی ,, عن السائب بن یزید قال : کنت قائما فی المسجد، فحصبنی رجل،فنظرت،فاذا عمربن الخطاب،فقال :اذهب فاتنی بهذین،فجئته بهما، قال: من انتما، اومن این انتما؟ قالا: من اهل الطائف، قال: لوکنتمامن اهل البلد لاوجعتکما،ترفعان اصواتکما فی مسجدرسول الله صلی الله علیه وسلم،،ـ

(۴) الابواب والتراجم (ص۶۰)ـ

(۵) جامع بیان العلم وفضله (ج۱ص ۵۵۴)،باب جامع فی آداب العالم والمتعلم، فصل فی رفع الصوت فی المسجد وغیرذلک من آداب العلم، رقم (۹۲۴)ـ

امام ابوحنیفه یوځلې په جمات کښې خپل اصحابو سره په درس تدریس کښې مصروفه ووچې دسفیان بن عیینه رحمه الله تیریدل هلته اوشو. نووې ونیل ..یا ابا حنیفة، هذا فی المسجد ! والصوت لاینبغی ان یرفع فیه،، یعنی اې ابوحنیفه ! په جمات کښې دا څنګه آوازونه دی؟ ! دلته خو آواز اوچتول نه دی پکار!! امام ابوحنیفه رحمه الله اوفرمانیل .. دعهم، فانهم لایفقهون الا بهذا،، _[1]
یعنی دوی لره په خپل حال پریګده، داخلق هم داسې علم اوفقه حاصله وی. دوی لره هم داسې په علم کښې مناسبت پیداکیږی _ څکه چې کله دیوبل په مقابله کښې په جوش کښې وی نوهریوکس به خپل قوت فکریه پوره طریقې سره استعماله وی او قاعده دا ده کله چې داسې خبره شروع شی نوپه دې کښې جسمانی طاقت شامل شی اوبه مزه مزه خبره کولوپه خې آوازونه اوچت شی _

[۱۳۳] حَدَّثَنِی قُتَیْبَةُ بْنُ سَعِیدٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّیْثُ بْنُ سَعْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا نَافِعٌ مَوْلَی عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ[2]. أَنَّ رَجُلاً قَامَ فِی الْمَسْجِدِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، مِنْ أَيْنَ تَأْمُرُنَا أَنْ نُهِلَّ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلی الله علیه وسلم - « يُهِلُّ أَهْلُ الْمَدِينَةِ مِنْ ذِی الْحُلَيْفَةِ، وَيُهِلُّ أَهْلُ الشَّأْمِ مِنَ الْجُحْفَةِ، وَيُهِلُّ أَهْلُ نَجْدٍ مِنْ قَرْنٍ » . وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ وَيَزْعُمُونَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلی الله علیه وسلم - قَالَ « وَيُهِلُّ أَهْلُ الْيَمَنِ مِنْ يَلَمْلَمَ » . وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَقُولُ لَمْ أَفْقَهْ هَذِهِ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ - صلی الله علیه وسلم -.

---

[1]) جامع بیان العلم وفضله (ج۱ص۵۵۵).باب جامع فی آداب العالم والمتعلم. فصل فی رفع الصوت فی المسجد وغیرذلک من آداب العلم. رقم (۹۲۵)_

[2]) قوله ,,: عن عبدالله بن عمر،، : الحدیث. اخرجه البخاری ایضافی صحیحه (ج۱ص۲۰۶).،کتاب الحج.باب فرض مواقیت الحج والعمرة. رقم (۱۵۲۲). وباب میقات اهل المدینة. ولایهلوا قبل ذی الحلیفة. رقم (۱۵۲۵). و(ج۱صض۲۰۷). کتاب الحج. باب مهل اهل نجد.رقم (۱۵۲۷و۱۵۲۸).و(ج۲ص۱۰۹۱) کتاب الاعتصام بالکتاب والسنة.باب ماذکرالنبی صلی الله علیه وسلم وحض علی اتفاق اهل العلم .......، رقم (۷۳۴۴) _ ومسلم فی صحیحه. فی کتاب الحج.باب مواقیت الحج. رقم (۲۸۰۵_۲۸۰۷). و(۲۸۰۹) والنسائی فی سننه. فی کتاب مناسک الحج والمواقیت.باب میقات اهل المدینة. رقم (۲۶۵۲) _ وباب میقات اهل الشام. رقم (۲۶۵۳). وباب میقات اهل نجد. رقم (۲۶۵۶) _ وابوداود فی سننه. فی کتاب المناسک. باب فی المواقیت. رقم (۱۷۳۷)_ والترمذی فی جامعه. فی ابواب الحج. باب ماجاء فی مواقیت الاحرام لاهل الافاق. رقم (۸۳۱) _ وابن ماجه فی سننه. فی ابواب المناسک.باب مواقیت اهل الافاق. رقم (۲۹۱۴). والدارمی فی سننه.فی کتاب المناسک.باب المواقیت فی الحج. رقم (۱۷۹۰و۱۷۹۱)_ واحمد فی مسنده (ج۲ص۳). رقم (۴۴۵۵).و(ج۲ص۴۸). رقم (۵۰۷۰).و(ج۲ص۴۸).رقم (۵۰۸۷).و (ج۲ص۵۵). رقم (۵۱۷۲).و (ج۲ص۶۵). رقم (۵۳۲۳).و (ج۲ص۸۲). رقم (۵۵۴۲)_

# رجال الحديث

① **قتيبه بن سعيد** : دا ابورجاء قتيبه بن سعيد بن جميل بن طريف ثقفی رحمه الله دي ـ ددهٔ حالات په کتاب الایمان، باب افشاء السلام من الاسلام، سره تیرشوی دی ـ (١)

② **الليث بن سعد** : دا امام لیث بن سعد مصری رحمه الله دي ـ ددهٔ حالات په کتاب ,,بدء الوحی،، د دریم حدیث سره تیرشوی دی ـ (٢)

③ **نافع مولی عبدالله بن عمر** : دا دمدينې منورې مشهور عالم اومفتی نافع مولی عبدالله بن عمر القرشی العدوی العمری رحمه الله دي ـ (٣)

دیوقول مطابق ددهٔ اصل تعلق ,,المغرب،، سره، دویم قول دادې چې دې اصلا د نیشاپور وو، د دریم قول مطابق دې دکابل په قیدیانوکښې وو، څلورم قول دادې چې ددهٔ تعلق د طالقان سره وو(٤)

بهرحال په یو غزوه کښې دې قیدی راغللې وواوحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه دې واخستلو ـ(٥) ددهٔ دپلار دنوم په باره کښې هم ډیر اقوال دی، بعضو ,,هرمز،، اوبعضو ,,کاوس،، ښودلې دې ـ(٦)

دې دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما راوی دې، ددوی نه علاوه دحضرت عائشه، حضرت ابوهریره، دحضرت رافع بن خدیج، حضرت ابوسعید خدری، حضرت ام سلمه، حضرت ابولبابه رضی الله عنهم نه روایت حدیث کوی دغه شان دحضرت بن عمر زوجه صفیه بنت ابی عبید اوحضرت ابن عمر دصاحبزادگانو سالم، عبدالله اوعبیدالله نه هم روایت کوی ـ

اوددهٔ نه روایت کونکو کښې امام زهری، ایوب سختیانی، عبدالله بن عمر، عبیدالله بن عبدالله بن عمر، زیدبن واقد، حمیدالطویل، ابن جریج، امام مالک، صالح بن کیسان، ابن عون، یحیی بن سعید، موسی بن عقبه، اسماعیل بن امیه، ایوب بن موسی، یونس بن

---

(١) كشف البارى (ج٢ص١٨٩)ـ

(٢) كشف البارى (ج١ص ٣٢٤)ـ

(٣) اوګورئ تهذيب الكمال (ج٢٩ص٢٩٨)ـ

(٤) تهذيب الكمال (ج٢٩ص٢٩٨)ـ

(٥) قال النووى فى تهذيب الاسماء واللغات (ج٢ص١٢٣)،رقم (١٨٧) : ,, سبى وهو صغير،فاشتراه ابن عمر،،ـ وقال ابن ابى حاتم فى الجرح والتعديل (ج٨ص٥١٧)،رقم (١٥٧٧-٢٠٧٠): ,, اصابه ابن عمر فى بعض غزواته،،ـ والله اعلم

(٦) اوګورئ تهذيب الكمال (ج٢٩ص٢٩٨)، وتهذيب الاسماء واللغات (ج٢ص١٢٣) نقلا عن الحاكم فى تاريخ نيسابور ـ تنبيه : قال العينى فى عمدة القارى : ,,نافع بن سرجس،بفتح السين المهملة وسكون الراء وكسرالجيم وفى آخرسين اخرى ......... وهذا سبق قلم نشا عن سبق نظر، حيث اراد ترجمة نافع مولى عبدالله بن عمرعن كتاب الجرح والتعديل لابن ابى حاتم فوقع نظره الى ترجمة نافع بن سرجس، الذى ترجم له بعده مباشرة، فكتب الاسم وضبطه، ثم نقل بعد ترجمة نافع مولى عبدالله بن عمر ـ والله اعلم ـ

یزید .جویریه بن اسماء لیث بن سعد ، محمدبن عجلان، ابن ابی ذهب.ضحاک بن عثمان، سلیمان بن موسی، بردبن سنان.ابن ابی رواد ، عبدالرحمن بن السراج،عبیدالله بن الاخنس، محمدبن اسحاق،اسامه بن زید ،عمربن محمد ،صخربن جویریه.همام بن یحیی،هشام بن سعد،لیث بن ابی سلیم.حجاج بن ارطاة.اشعث بن سوار.اسحاق بن ابی فروة، ابومعشرنجیح،عبدالله بن نافع اوعثمان البری رحمهم الله وغیره بې شمیره حضرات دی ـ (١)

ابن سعد رحمه الله فرمائی ,,کان ثقة کثیرالحدیث،،ـ (٢)

امام بخاری رحمه الله فرمائی ,,اصح الاسانید : مالک عن نافع عن ابن عمر،،ـ (٣)
امام مالک رحمه الله فرمائی چې کله زۀ نافع لره دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روایت کول اورم نوبیا ماته په دې خبرې باندې هیڅ پرواه نه وی چې داما دبل چانه اوریدلې نه دې ـ (٤)

عجلی رحمه الله فرمائی ,, مدنی تابعی،ثقة،،ـ (٥)

ابن خراش وائی ,,ثقة نبیل،،ـ (٦)امام نسائی رحمه الله فرمائی ,,ثقة،،ـ (٧)

ابن عیینه رحمه الله فرمائی ,,ای حدیث اوثق من حدیث نافع؟،،(٨)

احمدبن صالح مصری رحمه الله فرمائی ,, کان نافع حافظا ثبتا، له شان، وهواکبر من عکرمة عند اهل المدینة،،ـ (٩)

خلیلی رحمه الله فرمائی :,,نافع من ائمة التابعین بالمدینة، امام فی العلم، متفق علیه، صحیح الروایة، منهم من یقدمه علی سالم، ومنهم من یقارنه به، ولایعرف له خطائی جمیع ما رواه،،ـ (١٠)
یعنی,, نافع دمدینې دائمه تابعینو کښې دې، په علم کښې متفق علیه امام دې،صحیح روایت کونکې دې بعضې حضرات دې دسالم نه هم وړاندې کوی اوبعضې ئې دهغه همسر ګرزوی، دده په ټولوروایاتونو کښې څه غلطی اونه موندلې شوه،،.

امام نووی فرمائی رحمه الله ,,اجمعواعلی توثیقه،،ـ (١١)

---

(١) شیوخواوتلامذه تفصیل دپاره اوګورئ تهذیب الکمال(ج٢٩٨ـ ٣٠٣)، وسیراعلام النبلاء (ج٥ص٩٥ـ٩٧)
(٢) تهذیب الکمال (ج٢٩ص٣٠٣)ـ
(٣) حواله بالا ـ
(٤) حواله بالاـ
(٥) تهذیب الکمال (ج٢٩ص٣٠٤)ـ
(٦) حواله بالاـ
(٧) حواله بالا ـ
(٨) کتاب الجرح والتعدیل لابن ابی حاتم (ج٨ص٥١٧).رقم (١٥٣٧٧-٢٠٧٠) ـ
(٩) تهذیب التهذیب (ج١٠ص ٤١٤)، وتعلیقات تهذیب الکمال (ج٢٩ص٣٠٦)ـ
(١٠) تهذیب التهذیب (ج١٠ص٤١٥.٤١٤) ـ
(١١) تهذیب الاسماء واللغات (ج٢ص ١٢٤(. رقم (١٨٧)ـ

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی "الامام، المفتی، الثبت، عالم المدینة"۔ [1]

دغه شان هغه فرمائی "وقول میمون بن مهران : کبر وذهب عقله، قول شاذ، بل اتفقت الامة علی انه حجة مطلقا"۔ [2]

یعنی میمون بن مهران رحمه الله چې کوم فرمائیلی دی چې نافع د بډهاتوب (کمزروتیه) نه پس دعقل اوپوهه نه بې خبره شوې وو، دابلکل شاذقول دې، ټول امت په دې خبره باندې متفق دې چې نافع مطلقا حجت دې۔

ابن حبان رحمه الله دې په کتاب الثقات کښې ذکرکړې دې۔ [3]

دنافع مولی عبدالله بن عمر رحمه الله وفات داصح قول مطابق ١١٧ هجری کښې شوې دې۔ [4]

رحمه الله تعالی رحمة واسعة

④ **حضرت عبد الله بن عمر** رضي الله عنهما :دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما حالات په کتاب الایمان، "باب الایمان وقول النبی صلی الله علیه وسلم : بنی الاسلام علی خمس"، لاندې تیرشوی دی۔ [5]

**قوله:** أَنَّ رَجُلًا قَامَ فِي الْمَسْجِدِ: حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمائی چې یوسړې په جمات کښې اودریدلو۔

هم دا مقصودبالترجمة دې چې یوسړې په جمات کښې اودریدلواوهغه دحضور صلی الله علیه وسلم نه سوال اوکړو۔ داسړې څوک ووچا هم ددهٔ نوم نه دې ذکرکړې۔ [6]

د "مسجد" نه مراد مسجدنبوی دې [7]، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې ددې نه معلومیږی چې دمواقیت حج په باره په حدیث کښې مذکورسوال دمدینې منورې نه دسفرکولونه مخکښې وو۔ [8]

**قوله:** فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، مِنْ أَيْنَ تَأْمُرُنَا أَنْ نُهِلَّ: عرض ئې اوکړو یارسول الله! تاسومونږ ته دکوم ځاې نه دتلبیه لوستلو اوداحرام تړلوحکم راکوئ؟

**قوله:** فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلی الله علیه وسلم - «يُهِلُّ أَهْلُ الْمَدِينَةِ مِنْ ذِي

---

[1] سیر اعلام النبلاء (ج٥ص٩٥)۔

[2] سیراعلام النبلاء (ج٥ص١٠١)۔

[3] کتاب الثقات لابن حبان (ج٥ص٤٦٧)۔

[4] سیراعلام (ج٥ص١٠١)۔

[5] کشف الباری (ج١ص٦٣٧)۔

[6] قال الحافظ: "لم اقف علی اسم هذا الرجل"۔ (فتح الباری ج١ص ٢٣٠). وقال ایضا: "لم یسم هذا الرجل"۔ (هدی الساری ص ٣٩٠)۔

[7] فتح الباری (ج١ص ٢٣٠)۔

[8] حواله بالا

الْحُلَيْفَةِ، وَيُهِلُّ أَهْلُ الشَّامِ مِنَ الْجُحْفَةِ، وَيُهِلُّ أَهْلُ نَجْدٍ مِنْ قَرْنٍ »: رسول الله ﷺ اوفرمانيل اهل مدينه به دذوالحليفه نه تلبيه لولى او احرام به تړى، او اهل شام به د جحفه نه احرام تړى او اهل نجدبه دقرن نه احرام تړى ـ

**ذوالحليفه** : دتصغير سره، يعنى دحاء په ضمه سره، او دلام په فتحه سره دي، دې نه پس ياء مثناة من تحت ساكنه دي، دې نه پس فاء مفتوح ده، اوپه آخره كښې تاء مدوره ده ـ [1]

ذوالحليفه دمدينې منورې په جنوب كښې شپږ يا اووه ميلا يعنى ۹ كلوميټرلرې ديوځې نوم دې، نن سبا ورته ,,بئر على،، يا ,, آبار على،، وائيلې كيږى ـ [2]

**الجحفه** : جحفه : بالضم، ثم السكون، والفاء ـ

اهل شام اواهل مصركه په مدينه منوره نه تيريږى نو دوى دپاره ميقات جحفه دې اوكه په مدينه منوره تيريږى نو داهل مدينه دپاره ميقات ذوالحليفه دې ـ [3]

دا جحفه دمدينه منورې نه د شپږ مراحلوپه فاصله باندې مقام ,, رابغ،، نه جنوب مشرق طرف ته تقريبا څليريش كلوميټرباندې واقع دې ـ [4] ـ

ددې اصل نوم ,, مهيعه،، (بفتح الميم وسكون الهاء وفتح الياء المثناة من تحت، بعدها عين مهملة مفتوحة، وبعدها تاء مدورة) وو، يوقوم دغلته راغللو اوآباد شو، سيلاب راغللوهغوى ئې ټول غرق كړل دې وجې نه دهغوى نوم ,,جحفه،، كيخودلې شو ـ [5]

**قرن** : قرن (بفتح القاف وسكون الراء المهملة، وبعدها نون) ـ

دا د اهل نجد ميقات دې، دې ته قرن المنازل هم وئيلې كيږى، دمكه مكرمه نه اتيه كلوميټره لرې دې ـ [6] په دې كښې ,,راء،، باندې فتحه لوستل غلط دى [7]، ,, قرن،، بفتح الراء،، ياخوديمن يوه قبيله ده، دحضرت اويس قرنى رحمه الله تعلق ددې قبيلې سره وو ـ [8]

**قوله** : وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ وَيَزْعُمُونَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ « وَيُهِلُّ أَهْلُ الْيَمَنِ مِنْ يَلَمْلَمَ » . وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَقُولُ لَمْ أَفْقَهْ هَذِهِ مِنْ

---

[1] انظر معجم البلدان (ج۲ص۲۹۵) ـ

[2] معجم البلدان (ج۲ص۲۹۵)، واطلس الحديث النبوى (ص۱۵۰) ـ

[3] معجم البلدان (ج۲ص۱۱۱) ـ

[4] معجم البلدان (ج۲ص۱۱۱) واطلس الحديث النبوى (ص۱۵۰) ـ

[5] معجم البلدان (ج۲ص۱۱۱)، وعمدة القارى (ج۲ص۲۱۸)، والفتح الربانى (ج۱۱ص۱۰۵)، كتاب الحج والعمرة، ابواب الاحرام ومواقيته، وصفته، واحكامه، باب مواقيت الاحرام المكانية ـ

[6] معجم البلدان (ج ٤ص۳۳۱) واطلس الحديث النبوى (ص۱۵۰) ـ

[7] فتح البارى (ج۱ص۲۳۰) ـ

[8] اوګورئ: المجموع شرح المهذب (ج۷ص۱۷۰)، كتاب الحج، باب المواقيت ـ

رَسُول اللّٰهِ - صلى الله عليه وسلم : حضرت ابن عمر ﷠ فرمائی چې خلق وائی چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې اهل یمن دې دیلملم نه احرام تړی ـ حضرت ابن عمر ﷠ فرمائیل به چې زهٔ دحضور اکرم ﷺ په دې خبره باندې نه اووم پوهه شوې ـ

**یلملم** : دې ته الملم هم ونیلې کیږی، دا دمکه مکرمه نه جنوب طرف ته په سل کلومیټر فاصله باندې واقع دې ـ [1]

**د مواقیت احرام تحدید** : حضرت ابن عمر ﷠ په دې حدیث کښې په جزم سره ددریو مواقیتوذکر کړې دې،د،، ذات عرق،، ذکرئې بلکل نه دې کړې، یلملم کوم چې داهل یمن میقات دې دهغې تذکره په لفظ ،، زعم،، سره ده، حضرت ابن عمر ﷠ په خپل دې روایت که خوفرمائی چې حضور ﷺ د،،یلملم،، کومه تذکره کړې ده په هغې زهٔ پوهه نه شومه، اوپه بل روایت کښې دی چې هغه دحضور ﷺ نه په دې باره کښې اوریدلی هم نه دی، البته دنورو نه ئې اوریدلی دی ـ

چنانچه دمؤطا په روایت کښې دی،، قال عبدالله : وبلغنی ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال : ویهل اهل الیمن من یلملم،، ـ [2]

صحیح مسلم اوپه سنن نسائی کښې یو روایت دې ،، وذکرلی ـ ولم اسمع ـ انه قال : ویهل اهل الیمن من یلملم،، ـ [3]

ددې ټولو روایاتونونه معلومیږی چې حضرت ابن عمر ﷠ دحضور ﷺ نه ددرې مواقیتوپه باره کښې براه راست محقق طورباندې اوریدلی وو، او دیلملم په باره کښې دهغوی ﷺ نه نه وواوریدلی یاخودیو بل صحابی نه ئې اوریدلی وو،چونکه مرسل صحابی عن الصحابی هم صحیح اوحجت دې، دې وجې نه وئیلی کیږی چې په دې حدیث کښې هغه دځلورو مواقیتو ذکر کوی ـ

دحضرت ابن عباس ﷠ روایت په صحیح بخاری کښې موجود دې :

،،ان النبی صلى الله عليه وسلم وقت لاهل المدینة ذالحلیفة، ولاهل الشام الجحفة، ولاهل نجد قرن المنازل، ولاهل الیمن یلملم، هم لهن ولمن اتی علیهن من غیرهن، ممن اراد الحج والعمرة،،......ـ [4]

یعنی ،، حضور ﷺ داهل مدینه دپاره ذوالحلیفه، داهل شام دپاره جحفه، داهل نجد دپاره قرن المنازل او داهل یمن دپاره یلملم میقات مقرر کړو،دادې دغه علاقودباشندګانو دپاره هم میقاتونه دی اودهغه خلقودپاره هم کوم چې دحج اوعمره دپاره په علاقوباندې راځی،

---

[1] معجم البلدان (ج٥ص٤٤١)،واطلس الحدیث النبوی (ص٣٧٩)ـ

[2] مؤطا امام مالک بشرح اوجز المسالک، کتاب الحج،باب مواقیت الاهلال،رقم (٧١٤ـ٢٢)ـ

[3] صحیح مسلم،کتاب الحج،باب مواقیت الحج، رقم (٢٨٠٩)ـ وسنن النسائی،کتاب المناسک،باب میقات اهل نجد،رقم (٢٦٥٦)ـ

[4] صحیح البخاری (ج١ص٢٠٦)،کتاب الحج، باب مهل اهل مکة للحج والعمرة. رقم (١٥٢٤)ـ

اګرچه ددغه علاقو اوسیدونکی نه وی،،۔
**داهل عراق میقات** :حافظ ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی چې دذوالحلیفه، جحفه، قرن المنازل او د یلملم په میقات کیدو باندې خو دټولواتفاق دې ـ
البته داهل عراق دمیقات په باره کښې داهل علمواختلاف دې چې ددوی میقات کوم دې ؟ او داچا مقرر کړې دې ؟آیا حضور اکرم ﷺ په خپله باندې مقرر کړې ووکه حضرت عمر رضي الله عنه مقرر کړې وو۔
امام ابوحنیفه، سفیان ثوری،امام مالک او ددوی ټول اصحاب وائی چې دعراق او دغه طرف ته دمشرق میقات ,, ذات عرق،،دې ـ
او امام شافعی او (دیو قول مطابق) سفیان ثوری رحمهماالله فرمائی چې که چرې اهل عراق به دمقام ,,عقیق،، نه احرام اوتړی نو دابه ډیره بهتره او اولی وی ـ (١)
په دې کښې بعضې حضرات وائی چې داهل عراق دمیقات ,, ذات عرق،، تعیین خوحضرت عمر رضي الله عنه کړې دې،ځکه چې عراق دهغوی په زمانه کښې فتح شوې وو،دحضور ﷺ په زمانه کښې دمسلمانانو په لاس کښې نه وو۔
چنانچه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه کله چې داهل عراق دمیقات په باره کښې تپوس اوکړې شونو وفرې مائیل ,,لاعراق یومئذ،،(٢) چې ,, په هغه زمانه کښې عراق دمسلمانانوسره نو وو۔،،
لیکن نور حضرات وائی چې ,, ذات عرق،، تعیین په خپله حضور ﷺ فرمائیلې دې، چنانچه دحضرت عائشه رضي الله عنها نه مروی دی :۔
,,ان رسول الله صلی الله علیه وسلم وقت لاهل العراق ذات عرق،،_(٣)
یعنی ,, حضور اکرم ﷺ داهل عراق دپاره ذات عرق میقات مقرر فرمائیلې دې،،۔
دغه شان حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه هم مروی دی :
وقت رسول الله صلی الله علیه وسلم لاهل المدینة ذا الحلیفة، ولاهل الطائف قرن، وهی نجد، ولاهل الشام الجحفة، ولاهل الیمن یلملم،ولاهل العراق ذات عرق،،_(٤)
یعنی ,,رسول الله ﷺ داهل مدینه دپاره ذوالحلیفه، داهل طائف دپاره قرن کوم چې دنجد علاقه ده، داهل شام دپاره جحفه او داهل یمن دپاره یلملم لره میقات مقرر فرمائیلې دې،،۔

---
(١) الاستذکار لابن عبدالبر(ج٣ص ٣٣٤)، کتاب الحج، باب مواقیت الاهلال، والمجموع (ج٧ص ١٧١و١٧٢)_
(٢) مسند احمد (ج٢ص ١٤٠)، رقم (٦٢٥٧)، ومصنف ابن ابی شیبة (ج٨ص ٣٦٤) کتاب المناسک وباب فی مواقیت الحج، رقم (١٤٢٦٣)_
(٣) سنن ابی داود، کتاب المناسک، باب فی المواقیت،رقم (١٧٣٩)_
(٤) اخرجه ابن عبدالبربسنده فی التمهید، انظرفتح المالک بتبویب التمهید لابن عبدالبر(ج٥ص ٣١١)، کتاب الحج،باب مواقیت الاهلال _

ترکوم خې پورې چې دحضرت ابن عمر ﷠ دروایت تعلق دې په کوم کښې چې ,, لا عراق یومئذ،، فرمائیلی وو، دکوم نه چې دا په پوهه کښې راتلل چې د ,, ذات عرق،، تحدید او توقیت دحضور نبي کریم ﷺ دطرف نه نه ووشوې،نو ددې په باره کښې ونیلې کیدشي چې حضرت ابن عمر ﷠ چونکه دحضور ﷺ نه نه دی اوریدلی، او دغه وخته پورې عراق هم نه ووفتح شوې ځکه هغوی قیاس اوکړو اووئې فرمائیل ,, لا عراق یو مئذ،، ګنی ونیلې کیدې شوچې په دغه زمانه کښې خو ,,دشام،، علاقه هم نه وه فتح شوې، ددې باوجود هغوی د,,شام،، اودمصر،، اوسیدونکو دپاره د ,,جحفه،، توقیت اوفرمائیلو۔
دغه شان په یوحدیث کښې ارشاد دې:

,, منعت العراق درهمها وقفیزها ومنعت الشام مدیها ودینارها، ومنعت مصر اردبها ودینارها،، ـ (۱)
یعنی ,, اهل عراق خپل درهم اوقفیز ایسار کړل او اهل شام خپل مدی اودینار ایسار کړل او مصرخپل اردب او دینار ایسار کړل،،(اردب، مدی اوقفیز دمختلف پیمانو نومونه دی)۔
ظاهره ده چې په هغه زمانه کښې شام اوعراق نه وو فتح شو،ابن عبدالبر ﷫ فرمائی چې دلته ,, منعت،، د ,, ستمنع،، په معنی کښې دې (۲) ګویاحضور اکرم ﷺ قبل از فتح دا پیشین ګویانې فرمائیلی دی چې آئنده به بیا روستو عراق اوشام داسلامی حکومت په نګرانې به کیږی۔
ددې وضاحت دا دې چې دحضوراکرم ﷺ په زمانه کښې عراق اوشام نه ووفتح شوی، خونبی کریم ﷺ په دې حدیث کښې اوفرمائیل چې عراق اوشام اومصر به جزیه ورکول ختم کړی، ددې مطلب شارحینو دا بیان کړې دې چې دا ممالک به مفتوح شی او دهغې ځاې خلق به اسلام راوړی، ځکه دهلته نه به دجزیه راتلل بندشی ـ دویم مطلب دابیان شوې دې چې دامممالک به داسلامی حکومت په نګرانې کښې راشی، البته په آخرزمانه کښې به دعجمو اودکفارو غلبه به شی،دعراق اوشام نه چې کومه جزیه راتلله هغه به نه راځی ـ (۳) بهرصورت په دې حدیث کښې حضور اکرم ﷺ دطرف نه دا پیشین ګوی اموندلې شوې چې عراق او مصراوشام به داسلامی حکومت په زیر نګرانې کښې راشی۔
دغه شان به نبی کریم ﷺ دعراق اوشام دپاره قبل از فتح مواقیت هم مقرر فرمائیلی، ځکه چې دغه علاقې داهل اسلام په لاس کښې عنقریب راتلونکې وې۔

---

(۱) صحیح مسلم، کتاب الفتن، باب الا تقوم الساعة حتی یحسرالفرات عن جبل من ذهب، رقم (۷۲۷۷)، وسنن ابی داود. کتاب الخراج والفی، والامارة، باب فی ایقاف ارض اسواد وارض العنوة، رقم (۳۰۳۵)، ومسند احمد (ج۲ص۲۶۲)، مسند ابی هریرة رضی الله عنه، رقم (۷۵۵۵) ـ
(۲) فتح المالک (ج۵ص۳۱۰و۳۱۱)، کتاب الحج،باب مواقیت الاهلال ـ
(۳) اوګورئ شرح النووی علی صحیح مسلم (ج۲ص۳۹۱) کتاب الفتن

د كوم ځاي پورې چې د امام شافعي رحمه الله د .. عقيق، ، نه احرام تړل افضل ګرزولو تعلق دې، نود دې وجې نه پوخوهغه حديث دې كوم چې دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه مروى دې .. وقت رسول الله صلى الله عليه وسلم لاهل المشرق العقيق، ، [1] يعنى .. حضور اكرم ﷺ داهل مشرق دپاره ـعقيق. . ميقات مقرر كړي دې. ـ

ليكن د دې مطلب دا نه دې چې .. ذات عرق، . ميقات نه دې. بلكه د امام شافعي سره سره دټولو اهل علمو په نيز .. ذات عرق، . ميقات دې. البته .. عقيق، ، چونكه دې نه لګ لرې دې لهذا احتياط هم په دې كښې دې چې .. دعقيق. . نه احرام اترلې شى ـ [2]

اوجمهور دا مذكوره حديث ضعيف ګرزوى [3] اودهغه احاديثونه استدلال كوى په كوم كښې چې د .. ذات عرق، ، تصريح راغلې ده ـ

د مواقيت په باره كښې به تفصيلات انشاء الله په كتاب الحج كښې راشى ـ

والله سبحانه وتعالى اعلم وعلمه اتم واحكم.

## ۵۳- باب: مَنْ أَجَابَ السَّائِلَ بِأَكْثَرَ مِمَّا سَأَلَهُ

**دباب سابق سره مناسبت**: په دواړو بابونو كښې مناسبت بالكل واضح دې چې په هرباب كښې سوال كول او جواب وركول مذكور دى ـ [4]

**دترجمة الباب مقصد**: ابن منير رحمه الله فرمائى چې دترجمة الباب مقصد په دې خبرد بآندې تنبيه كول چې جواب د سائل د سوال مطابق كيدل ضرورى نه دى ـ [5]

---

[1]) سنن ابى داود. كتاب المناسك. باب فى المواقيت. رقم (۱۷۴۰) ـ

[2]) المجموع (ج۷ص۱۷۲) كتاب الحج. باب المواقيت ـ وفتح المالك (ج۵ص۳۱۱) ـ

[3]) قال الزيلعى فى نصب الراية (ج۳ث۱۴). (۳۹۶۴و۳۹۶۵): ,, قال ابن القطان فى كتابه : هذا حديث اخاف ان يكون منقطعا. فان محمد بن على بن عبدالله بن عباس انما عهد يروى عن ابيه عن جده ابن عباس. كماجاء ذلك فى صحيح مسلم. فى صلاته عليه السلام من الليل ـ وقال مسلم فى كتاب التمييز: لاتعلم له سماعا من جده. ولا انه لقيه. ولم يذكر البخارى ولاابن ابى حاتم انه يروى عن جده. وذكرانه يروى عن ابيه.. ـ انتهى

وقال النووى فى المجموع (ج۷ص۱۶۹) :

,, رواه ابوداو والترمذى. وقال : حديث حسن. وليس كما قال. فانه من رواية يزيد بن ابى زياد. وهوضعيف باتفاق المحدثين.. ـ

وقال الحافظ فى التلخيص الحبير (ج۳ص۸۴۶). كتاب الحج. باب المواقيت. رقم (۹۷۱) : ,, قلت فى نقل الاتفاق نظر. ويعرف ذلك من ترجمة ـ وله علة اخرى وقال مسلم فى الكنى : لايعلم له سماع من جده يعنى محمد بن على.. ـ

[4]) عمدة القارى (ج۲ص۲۲۰) ـ

[5]) المتوارى (ص۶۵) ـ

دامام بخاري رحمه الله مقصد دا دې كه څوک سائل سوال اوكړي نو په جواب كښې مزيد اضافه اوكړې شي نو داجائز دي، بلكه په بعضې وختونو كښې انسب اوپه بعضې وختونو كښې ضروري وي - (١)

مثلاً په يوه مسئله كښې تفصيلات دي او ددتفصيلاتو دذكركولونه بغيردا ويره وي چې مستفتي به په غلطې كښې پريوځي نو دې لره بيانول مناسب دي -

اوكه چرې دا خطره وي چې مستفتي به غلط مطلب اخستو سره به خپل مقصد حل كوي نو دمسئلې شقونولره واضحه كول پكار دي، چې هغه دا اونه وائي چې ما ددې لفظ نه دا مطلب كنړلې وو-

**يو اشكال اودهغې جواب** : دلته يواشكال دا كيږي چې ډيرو اصوليينو دا قاعده بيان كړې ده چې جواب دسوال مطابق پكاردې -دلته په ظاهره دامام بخاري رحمه الله ترجمة ددې قاعدې معارضه ده -

ددې جواب دادې چې داصوليينو دكلام دا مطلب نه دې چې په دې باندې اضافه اونه كړې شي، بلكه مطلب دا دې چې په جواب كښې دسوال ټولې خبرې راشي. يوڅيزدې پاتې نشي (٢) امام بخاري رحمه الله دكتاب العلم په اخيره كښې دا ترجمه منعقد كولوسره دې خبرې طرف ته اشاره كړې ده چې ما دعلم دترغيب او تحريض اوددې مسائلوسره متعلق ضرورت اوحاجت نه زيات تراجم منعقد كړې دي . (٣)والله اعلم

[١٣٤] حَدَّثَنَا آدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ (٤) عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- . وَعَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم-

---

(١) الكنزالمتواري في معادن لامع الدراري (ج٢ص ٣٩٤)_
(٢) حواله بالا_
(٣) اوګورئ فتح الباري (ج١ص ٢٣١)، والكنزالمتواري (ج٢ص٣٩٥) _
(٤) قوله :,, عن ابن عمر رضي الله عنهما،: الحديث، اخرجه البخاري ايضافي كتاب الصلاة،باب الصلاة،باب الصلاة في القميص والسراويل والتبان والقباء، رقم (٣٦٦)، وفي كتاب الحج، باب مالايلبس المحرم من الثياب، رقم (١٥٤٢)، وجزاء الصيد، باب ماينهى من الطيب للمحرمة، رقم (١٨٣٨)، وباب لبس الخفين للمحرم اذالم يجد النعلين،رقم (١٨٤٢)، وفي كتاب اللباس، باب لبس القميص،رقم (٥٧٩٤)،وباب البرانس، رقم (٥٨٠٣)، وباب السراويل، رقم (٥٨٠٥)، وباب العمائم، رقم (٥٨٠٦)، وباب الثوب المزعفر، رقم (٥٨٤٧)، وباب النعال السبتية، رقم (٥٨٥٢)_ ومسلم في صحيحه، في كتاب الحج،باب مايباح للمحرم بحج اوعمرة لبسه ومالايباح .....رقم (٢٧٩١_٢٧٩٣)_ والنسائي في سننه،في كتاب المناسک، باب النهي عن الثياب المصبوغة بالورس والزعفران في الاحرام،رقم (٢٦٦٧و٢٦٦٨)،وباب النهي عن لبس القميص في الاحرام، رقم (٢٦٧٤)، وباب النهي عن لبس السراويل في الاحرام، رقم (٢٦٧١)،وباب النهي عن ان تنتقب المراة الحرام، رقم (٢٦٧٤)، وباب النهي عن لبس البرانس في الاحرام، رقم (٢٦٧٥و٢٦٧٦)،وباب النهي عن لبس العمامة في الاحرام، رقم (٢٦٧٧و٢٦٧٨)، وباب النهي عن لبس الخفين في الاحرام،رقم (٢٦٧٩)، وباب قطعهما اسفل من الكعبين، رقم (٢٦٨١)، وباب النهي عن ان ... [بقيه حاشيه په راروانه صفحه..

أَنَّ رَجُلاً سَأَلَهُ مَا يَلْبَسُ الْمُحْرِمُ فَقَالَ «لاَ يَلْبَسِ الْقَمِيصَ وَلاَ الْعِمَامَةَ وَلاَ السَّرَاوِيلَ وَلاَ الْبُرْنُسَ وَلاَ ثَوْبًا مَسَّهُ الْوَرْسُ أَوِ الزَّعْفَرَانُ، فَإِنْ لَمْ يَجِدِ النَّعْلَيْنِ فَلْيَلْبَسِ الْخُفَّيْنِ وَلْيَقْطَعْهُمَا حَتَّى يَكُونَا تَحْتَ الْكَعْبَيْنِ».

[٣٥٩، ١٤٦٨، ١٧٤١، ١٧٤٥، ٥٤٥٨، ٥٤٦٦، ٥٤٦٨، ٥٤٦٩، ٥٥٠٩، ٥٥١٤]

## رجال الحديث

① **ادم** : دا آدم بن ابى اياس خراسانى مروزى رحمه الله دې. ددوى حالات په كتاب الايمان، ,,باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده،، لاندې تير شوى دى ـ (۱)

② **ابن ابى ذئب** : دا محمدبن عبدالرحمن بن المغيره بن الحارث بن ابى ذئب القرشى العامرى المدنى رحمه الله دې، ددوى حالات په دې جلد كتاب العلم ,, باب حفظ العلم،، سره تيرشوى دى ـ

③ **نافع** : دانافع مولى عبدالله بن عمر (رض) دې، ددوى حالات تيرشوى حديث سره تيرشوى دى.

④ **الزهرى** : دا امام محمد بن مسلم بن عبيدالله المعروف بابن شهاب الزهرى رحمه الله ددهٔ حالات ,,بدء الوحى،، ددريم حديث په ضمن كښې تيرشوى دى ـ (۲)

⑤ **سالم** : دا سالم بن عبدالله بن عمربن الخطاب رضي الله عنهم دې، ددهٔ حالات په كتاب الايمان،، باب : الحياء من الايمان،، لاندې تير شوى دى ـ (۳)

⑥ **حضرت عبد الله بن عمر** رضي الله عنهما : دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما حالات په كتاب الايمان،، باب الايمان وقول النبى صلى الله عليه وسلم : بنى الاسلام على خمس،، د لاندې تيرشوى دى ـ (۴)

**د حديث دسند وضاحت** : دلته دصحيح بخارى دوه نسخې دى : په يو كښې دى ,,حدثنا آدم، قال حدثنا ابى ذئب، عن نافع عن عمر، عن النبى صلى الله عليه وسلم، وابن ابى ذئب،، عن الزهرى عن سالم عن ابن عمرعن النبى صلى الله عليه وسلم،،ـ

دلته ,, وابن ابى ذئب،، كوم چې دوباره راغلې دې ددې عطف په روستو ,, حدثنا ابن ابى ذئب،، باندې دې اومطلب دا دې چې آدم بن ابى اياس دا حديث هم د ابن ابى ذئب نه په دوو سندونو

---

بقيه حاشيه د تيرمخ] تلبس المحرمة القفازين، رقم (٢٦٨٢) ـ وابوداود فى سننه فى كتاب المناسك، باب مايلبس المحرم، رقم (١٨٢٣ ـ ١٨٢٨) والترمذى فى جامعه، فى كتاب الحج، باب ماجاء فيما لايجوز للمحرم لبسه، رقم (٨٣٣) ـ وابن ماجه فى سننه فى كتاب المناسك، باب مايلبس المحرم من الثياب، رقم (٢٩٢٩ و ٢٩٣٠)، وباب السراويل والخفين للمحرم ..... رقم (٢٩٣٢)

(۱) كشف البارى (ج۱ص۲۷۸)ـ

(۲) كشف البارى (ج۱ص۳۲۶)ـ

(۳) كشف البارى (ج۲ص ۱۲۸، ۱۲۹)ـ

(۴) كشف البارى (ج۱ص۲۳۷)ـ

سره اوریدلې دې ـ
دویمه نسخه هغه ده کومه چې په متن کښې مذکور ده، یعنی ,, حدثنا آدم، قال: حدثنا ابن ابی ذئب، عن نافع، عن ابن عمر، عن النبی صلی الله علیه وسلم، وعن الزهری، عن سالم، عن ابن عمر، عن النبی صلی الله علیه وسلم......،، ـ
په دې کښې ,, عن الزهری،، عطف په ,, عن نافع،، باندې دې، گویا دابن ابی ذئب د نوم ئې دوباره اعاده نه ده کړې ـ (۱)
حاصل داچې دا حدیث د ابن ابی ذئب شیخ شیخ البخاری په عن دوو سندونو سره روایت کوی، یو ,, عن نافع عن ابن عمر،، اودویم سند دې ,, عن الزهری عن سالم ابن عمر،، دویم سند د رومبی سند په مقابله کښې یو درجه نازل دې، اګرچه د دواړو سندونو په جلیل القدر کیدوکښې څه شک نشته ـ

**قوله: أَنَّ رَجُلاً سَأَلَهُ:** یو کس دهغوی نه تپوس اوکړو ـ
دا سړې څوک وو؟ حافظ رحمه الله فرمائی ,, لم اقف علی اسمه،، ـ (۲) زۀ ددۀ دنوم نه واقفه نه شومه ـ

**قوله: مَا يَلْبَسُ الْمُحْرِمُ فَقَالَ «لَا يَلْبَسِ الْقَمِيصَ وَلَا الْعِمَامَةَ وَلَا السَّرَاوِيلَ وَلَا الْبُرْنُسَ وَلَا ثَوْبًا مَسَّهُ الْوَرْسُ أَوِ الزَّعْفَرَانُ، فَإِنْ لَمْ يَجِدِ النَّعْلَيْنِ فَلْيَلْبَسِ الْخُفَّيْنِ وَلْيَقْطَعْهُمَا حَتَّى يَكُونَا تَحْتَ الْكَعْبَيْنِ»:** کوم سړې چې احرام اوتړی هغه به څه اغوندی؟ نبی کریم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو: محرم به نه قمیص اغوندی نه پټکې، نه پائجامه، نه هغه جامې کوم سره چې تویې ګنډلې شوی وی، نه هغه کپړه په کومه کښې چې ورس یا زعفران وی، بیا که چرې پنبپوکولوډپاره څپلۍ نه ملاویږی نو موزې دې د ګیټونه لاندې کټ کړئ او په پنبپودی کړی ـ

**دحضور اکرم ﷺ فصیح او بلیغ جواب:** سائل دلته دحضور اکرم ﷺ نه دملبوساتو په باره تپوس کړې ووچې هغه کوم لباس دې چې محرم ئې اچولې شی؟ لیکن رسول الله ﷺ غیر ملبوسات د دواړ وجونه ذکر کړو ـ
یو خو ددې وجې نه چې دکوم څیزداچولواجازت وی نو دهغې په اچولو کښې څه حرج نشته دې اودکوم داچولوچې اجازت نشته دې دهغې په اچولو کښې ضرروی، نونبی کریم ﷺ دا اوبنودل چې دجلب منفعت نه دفع ضرر مقدم دې، لهذا غیرملبوسات یعنی هغه لباس کوم چې نه دی اغوستل پکار. دهغې په باره سوال کول پکاردی ـ

---
(۱) اوګورئ فتح الباری (ج۱ص۲۳۱) ـ
(۲) فتح الباری (ج۱ص۲۳۱) ـ

دويمه وجه داده چې دملبوساتو خوهډوخه حدنشته دې،او غيرملبوسات محددو دی، يعنی دکوم څيز چې اجازت دې دهغې خوهړو څه حدنشته دې اودکوم څيزچې اجازت نشته دې هغه محدود دی، لهذا حضوراکرم ﷺ محدود بيان کړه ـ اوکله چې دا معلومه شوه چې فلانکې فلانکې څيز استعمالول ناجائزدی نو معلومه شوه چې باقی ټول څيزونه استعمالول جائزدی،يعنی مذکورات ناجائزاو غيرمذکورات جائز۔

**دروايت دترجمة الباب سرّه مطابقت** : دلته دروايت دترجمة الباب سره مطابقت هم را اوتلو،چې سائل خوصرف دجائزملبوساتومتعلق سوال کړې وواوحضوراکرم ﷺ ملبوسات اوغيرملبوسات دواړه ئې بيان کړل،غيرملبوسات يعنی دکوم دا اغستو(اچولو) اجازت نشته دی دمنطوق حديث نه بيان کړه اومبلوسات يعنی دکومواچولوچې اجازت دې دمفهوم حديث نه بيان اوفرمائيل ـ (١)

دترجمة الباب سره دمطابقت يوتقريربل هم شوې دې چې سائل خودحالت اختيار مسئله تپوس کړې وواو حضور اکرم ﷺ ورته دحالت اضطرارمسئله هم بيان کړه اودا ئې اونيل چې يوکس ته نعلين ملاؤ نشوې نوهغه دې موزې کټ کړی او وادې چوی ـ (٢)

**دحديث باب نه مستنبط قاعده** : په حديث باب کښې حضور اکرم ﷺ چې دکوموڅيزونونه منع کړې ده هغه درې څيزونه دی :

① يوهغه څيزونه کوم چې دسرپټولودپاره دی، لکه عمامه (پټکې)،اوددې په حکم کښې ټوپۍ هم ده، ددې استعمال جائز نه دې ـ

② دويمه هغه انواع دلباس کوم چې دبدن متعلق گنډلې شوی وی،لکه سراويل (پرتوگ) قميص، برنس وغيره اوددې په حکم کښې به هغه ټول لباس راشی کوم چې دبدن د وضع اوهيئت مطابق گنډلې شوې وی، که هغې ته دهرچاپه ژبه کښې هرڅه وانی ـ

③ دريمه نوعه داچې که محرم نعلين اغستې شی، دخفين اجازت نشته دې،ځکه چې خفين ساترکعب وی،دې نه معلومه شوه چې کوم يوڅيزهم ساترکعب وی دهغې داستعمال اجازت به نه وی، لهذاکه چرې بوټان څپلې ساترکعب وی نودهغې اجازت به هم نه وی ـ (٣)

**السراويل** : داعجمی لفظ دې، معرب کيدلوسره استعمال شوې دې،دا اگرچه دجمع په وزن باندې دې،خو دواحد دپاره استعماليږی ـ (٤)

**البرنس** : بضم الباء والنون واسكان الراء ـ

---

(١) اوگورئ عمدة القاری (ج٢ص٢٢٢)ـ

(٢) فتح الباری (ج١ص٢٣١)ـ

(٣) عمدة القاری (ج٢ص٢٢٢)ـ

(٤) اوگورئ تهذيب الاسماء واللغات (ج٣ص١٤٨)، وعمدة القاری (ج٢ص٢٢١)ـ

برنس داسې كپړې ته وائي دكومې سر چې دې سره يوځاې وى، كه هغه چغه وى، كه هغه برساتې وى يا زره وغيره ـ (١) دهغه شان يوخاص قسم ټوپې ته هم ,,برنس،، وائي، په صدر اسلام كښې به عبادو خلقو اچولې ـ (٢)

**الورس** : دزيړ رنګ يو ګيا ,,وابنه،، دى، په يمن كښې پيدا كيږى، دكپړو رنګ كولو كښې ترې كار اخستې شى ـ (٣) دحديث باب سره متعلقه نور فقهى احكام به په تفصيل سره انشاء الله په كتاب الحج كښې راشى ـ

**براعت اختتام** : حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائيلى دى چې امام بخارى رحمه الله د ,,كتاب العلم،، په آخيره كښې داحديث ذكر كړې دې چې په كښې ,, وليقطعهما حتى يكونا تحت الكعبين،، داقطع داختتام كتاب باندې اوپه نهايت باندې دال دې ـ (٤)

حضرت شيخ الحديث مولانا محمد زكريا صاحب رحمه الله فرمائى چې امام بخارى رحمه الله دهر ,,كتاب،، په آخيره كښې دانسان دزندګۍ په اختتام يعنى دمرګ طرف ته اشاره كوى. دلته هم دمحرم دلباس ذكر دې كوم چې دمړى دكفن مشابه دې ـ (٥) والله سبحانه وتعالى اعلم.

.............

هذا آخر ما اردنا ايراده فى شرح كتاب العلم من الجامع الصحيح لامام البخارى رحمه الله تعالى

وبه تم المجلد الرابع من كتاب ,, كشف البارى عما فى صحيح البخارى،،

ويليه ـ باذن الله تعالى ـ المجلد الخامس، واوله : كتاب الوضوء ..

والحمد لله الذى بنعمته تتم الصالحات، والصلاة والسلام الاتمان الاكملان على افضل الكائنات، وعلى آله واصحابه ومن تبعهم باحسان، ما دامت الارضون والسماوات ـ

---

(١) تهذيب الاسماء واللغات (ج٣ص٢٦) ـ
(٢) عمدة القارى (ج٢ص٢٢١) ـ
(٣) تهذيب الاسماء واللغات (ج٤ص١٤٨)، وعمدة القارى (ج٢ص٢٢٢) ـ
(٤) فتح البارى (ج١٣ص٥٤٣) آخر الكتاب ـ
(٥) الكنز المتوارى (ج٢ص٣٩٦) ـ

## «مصادر ومراجع»

۱۔ الابواب والتراجم لصحيح البخاری۔حضرت شیخ الهند مولانا محمود حسن صاحب دیوبندی، رحمة الله علیه، المتوفی ۱۳۳۹ھ ادارہ تالیفات اشرفیه ملتان۔
۲۔ الابواب والتراجم لصحيح البخاری ۔ حضرت شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا صاحب کاندھلوی،رحمه الله تعالیٰ، متوفی ۱۴۰۲ھ مطابق ۱۹۸۲ء ۔ ایچ ایم سعید کمپنی، کراچی۔
۳۔ الآثار (کتاب الآثار) ۔ امام ابو حنیفه نعمان بن ثابت، رحمة الله علیه، متوفی ۱۵۰ھ روایت : امام محمد بن الحسن الشیبانی، رحمة الله علیه، متوفی ۱۸۳ھ، مکتبه امدادیه ملتان ۔
۴۔ الآثار المرفوعة (سبع رسائل) امام ابو الحسنات عبد الحی بن عبد الحلیم اللکنوی، رحمة الله علیه، متوفی ۱۳۰۴ھ ایچ ایم سعید کمپنی کراچی۔
۵۔ الاجوبة المرضية فيما سئل (السخاوی) عنه من الاحاديث النبوية ۔ حافظ شمس الدين محمد بن عبدالرحمن السخاوی، رحمة الله علیه، المتوفی ۹۰۲ھ ۔ تحقیق : دکتور محمد اسحاق محمد ابراهیم ۔ دارالراية، الرياض وجدة طبع اول ۱۴۱۸ھ ۔
۶۔ الاحسان بترتيب صحيح ابن حبان ۔ امام ابو حاتم محمد بن حبان البستی،رحمه الله تعالیٰ،المتوفیٰ ۳۵۴۔ مؤسسة الرسالة،بیروت۔
۷۔ احكام الاحكام، شرح عمدة الاحكام امام تقی الدين ابو الفتح الشهير بابن دقيق العيد، رحمة الله علیه، متوفی ۷۰۲ھ، دار الکتب العلمیة بیروت، طبع ثانی ۱۴۲۶ھ / ۲۰۰۵ء ۔
۸۔ احكام القرآن،امام ابو بکر احمد بن علی الرازی الجصاص، رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۳۷۰، دار الکتاب العربی بیروت۔
۹۔ احکام القرآن ۔ حضرت مولانا ظفر احمد صاحب عثمانی، رحمه الله تعالیٰ، المتوفیٰ ۱۳۹۴ھ، ادارۃ القرآن کراچی
۱۰ ۔ اختصار علوم الحدیث ۔ ابو الفداء عماد الدین اسماعیل بن شهاب الدین عمر المعروف بابن کثیر، رحمه الله تعالیٰ، المتوفیٰ ۷۷۴ھ دار التراث القاهرة، ۱۳۹۹ھ / ۱۹۷۹ء۔
۱۱۔ الاذكار مع الفتوحات الربانية ۔ امام ابو زکریا محیی الدین یحیی بن شرف النووی، رحمه الله تعالیٰ، المتوفیٰ ۶۷۶ھ المکتبة الاسلامیة۔
۱۲۔ ارشاد الساری شرح صحیح البخاری، ابو العباس شهاب الدين احمد القسطلانی، رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۹۲۳ھ، المطبعة الكبرىٰ الاميرية،مصر، طبع سادس ۱۳۰۴ھ ۔
۱۳۔ ازالة الخفاء عن خلافة الخلفاء ۔ حضرت شاہ ولی الله محدث دهلوی، رحمه الله تعالیٰ، المتوفیٰ ۱۱۷۶ھ سهیل اکیڈمی لاهور۔
ازالة الخفاء عن خلافة الخلفاء مترجم ۔ حضرت شاہ ولی الله محدث دهلوی، رحمه الله تعالیٰ، المتوفیٰ ۱۱۷۶ھ قدیمی کتب خانه کراچی۔
۱۴۔ الاستيعاب فی اسماء الاصحاب (بهامش الاصابة)، ابو عمر یوسف بن عبدالله بن محمد بن عبد البر، رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۴۶۳ھ، دار الفکر بیروت۔

۱۵۔ اسد الغابة فی معرفة الصحابة، عز الدین ابو الحسین علی بن محمد الجزری المعروف بابن الاثیر، رحمه الله تعالیٰ، المتوفیٰ ۶۳۰ھ، دار الکتب العلمیة بیروت۔
۱۶۔ اشعة اللمعات۔ شیخ عبد الحق محدث دهلوی، رحمه الله تعالیٰ، المتوفیٰ ۱۰۵۲ھ۔ مکتبه نوریه رضویه سکھر پاکستان۔
۱۷۔ الاصابة فی تمییز الصحابة۔ شهاب الدین ابو الفضل احمد بن علی العسقلانی المعروف بابن حجر، رحمه الله تعالیٰ، المتوفیٰ ۸۵۲ھ۔ دار الفکر بیروت۔
۱۸۔ اصول کافی۔ محمد بن یعقوب الکلینی، متوفی ۳۲۹ھ۔ دار الکتب الاسلامیة، تهران، طبع ثالث ۱۳۸۸ھ۔
۱۹۔ اطلس الحدیث النبوی من الکتب الصحاح الستة، دکتور شوقی ابو خلیل، دار الفکر دمشق، طبع رابع ۱۴۲۶ھ، ۲۰۰۵م۔
۲۰۔ الاعتبار فی الناسخ والمنسوخ فی الحدیث، الحافظ ابو بکر محمد بن موسیٰ الحازمی الهمدانی، رحمه الله تعالیٰ، المتوفیٰ ۵۸۴ھ، تحقیق: احمد طنطاوی۔ دار ابن حزم۔ الطبعة الاولیٰ ۱۴۲۲ھ۔ ۲۰۰۱م۔
۲۱۔ الاعتصام، امام ابو اسحاق ابراهیم بن موسیٰ بن محمد اللخمی الشاطبی، رحمه الله تعالیٰ، المتوفیٰ ۷۹۰ھ، دار الفکر، بیروت۔
۲۲۔ اعلام الحدیث، امام ابو سلیمان حمد بن محمد الخطابی، رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۳۸۸ھ، مرکز احیاء التراث الاسلامی، جامعة ام القریٰ، مکة مکرمة۔
۲۳۔ اعلاء السنن، علامه ظفر احمد عثمانی، رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۱۳۹۴ھ، ادارة القرآن کراچی۔
۲۴۔ اکمال تهذیب الکمال، علامه علاء الدین مغلطای بن قلیج بن عبد الله البکجری الحنفی، رحمه الله، المتوفی ۷۶۲ھ، الفاروق الحدیثة للطباعة و النشر، طبع اول ۱۴۲۲ھ / ۲۰۰۱م۔
۲۵۔ الاکمال فی رفع الارتیاب عن المؤتلف و المختلف فی الاسماء والکنیٰ و الالقاب، الامیر الحافظ ابو نصر علی بن هبة الله المعروف بابن ماکولا، رحمه الله، المتوفی ۴۷۵ھ، محمد امین دمج، بیروت۔
۲۶۔ الفیة الحدیث۔ حافظ جلال الدین عبد الرحمن سیوطی رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۹۱۱ھ، تصحیح و تشریح: شیخ احمد محمد شاکر رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۱۳۷۷ھ المکتبة العلمیة۔
۲۷۔ الالماع۔ قاضی عیاض بن موسیٰ الیحصبی رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۵۴۴ھ تحقیق و تعلیق: احمد فرید المزیدی، دار الکتب العلمیة، بیروت، طبع اول ۱۴۲۵ھ۔ ۲۰۰۴م۔
۲۸۔ الاموال (کتاب الاموال) امام ابو عبید القاسم بن سلام رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۲۲۴ھ، دار الکتب العلمیة بیروت، طبع اول ۱۴۰۶ھ۔
۲۹۔ الام (کتاب الام) امام محمد بن ادریس الشافعی رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۲۰۴ھ، دار المعرفة، بیروت ۱۳۹۳ھ۔ ۱۹۷۳م۔
۳۰۔ الانساب، ابو سعد عبد الکریم بن محمد بن منصور السمعانی، رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۵۶۲ھ، دار الجنان، بیروت، طبع اول ۱۴۰۸ھ / ۱۹۸۸م۔
۳۱۔ اوجز المسالک الیٰ مؤطا مالک، شیخ الحدیث حضرت مولانا زکریا کاندهلوی رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۱۴۰۲ھ، مطابق ۱۹۸۲م، ادارہ تالیفات اشرفیه ملتان۔ و بتحقیق الدکتور تقی الدین الندوی حفظه الله تعالیٰ، دار القلم، دمشق، طبع اول ۱۴۲۴ھ، ۲۰۰۳م۔

۳۲۔ بدائع الصنائع فی ترتیب الشرائع، ملک العلماء علاء الدین ابو بکر بن مسعود الکاسانی، رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۵۸۷ ھ، ایچ ایم سعید کمپنی کراچی۔
۳۳۔ بدایة المجتهد و نهایة المقتصد ۔ علامه قاضی ابو الولید محمد بن احمد بن رشد قرطبی، متوفیٰ ۵۹۵ھ، شرکة و مطبعة مصطفی البابی الحلبی مصر طبع خامس ۱۴۰۱ ھ مطابق ۱۹۸۱ م ۔
۳۴۔ البدایة و النهایة ۔ حافظ عماد الدین ابو الفداء اسماعیل بن عمر المعروف بابن کثیر رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۷۷۴ ھ ۔ مکتبة المعارف بیروت، طبع ثانی ۱۹۷۷ م ۔
۳۵۔ البضاعة المزجاة لمن یطالع المشکاة (مطبوعه مع المرقاة) ۔ مولانا عبد الحلیم چشتی حفظه الله تعالیٰ ۔ مکتبه امدادیه ملتان۔
۳۶ ۔ بیان القرآن ۔ حکیم الامت حضرت مولانا اشرف علی صاحب تھانوی رحمه الله تعالیٰ ۔ متوفیٰ ۱۳۶۲ ھ ۔ شیخ غلام علی اینڈ سنز لاهور۔
۳۷۔ تاج العروس من جواهر القاموس، ابو الفیض سید محمد بن محمد المعروف بالمرتضیٰ الزبیدی، رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۱۲۰۵ ھ، دار مکتبة الحیاة، بیروت ۔
۳۸۔ تاریخ ابن الاثیر (الکامل فی التاریخ) ابو الحسن عز الدین علی بن محمد بن الاثیر الجزری رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۶۳۰ ھ، دار الکتاب العربی، بیروت۔
۳۹ ۔ تاریخ الامم و الملوک (تاریخ الطبری)، امام محمد بن جریر الطبری، رحمه الله ، المتوفی ۳۱۰ ھ، مؤسسة الاعلمی للمطبوعات، بیروت، طبع رابع ۱۴۰۳ ھ ۔ ۱۹۸۳ م ۔
۴۰۔ تاریخ ابن خلدون (کتاب العبر، ودیوان المبتدا و الخبر، فی ایام العرب والعجم و البربر، ومن عاصرهم من ذوی السلطان الاکبر) علامه عبد الرحمن بن محمد بن خلدون الحضرمی المغربی رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۸۰۸ ھ، مؤسسة الاعلمی للمطبوعات، بیروت ۔
۴۱۔ تاریخ الاسلام ۔ حافظ شمس الدین ابو عبد الله محمد بن احمد بن عثمان الذهبی رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۷۴۸ ھ، تحقیق : عمر عبد السلام تدمری، دار الکتاب العربی، بیروت، طبع اول ۱۴۱۰ ھ ۔ ۱۹۹۰ م ۔
۴۲ ۔ تاریخ بغداد او مدینة السلام ۔ حافظ احمد بن علی المعروف بالخطیب البغدادی، رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۴۶۳ھ ۔ دار الکتاب العربی بیروت۔
۴۳ ۔ تاریخ الخلفاء ۔ حافظ جلال الدین عبد الرحمن السیوطی رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۹۱۱ ھ، مؤسسة الکتب الثقافیة، بیروت، طبع ثالث ۱۴۱۹ ھ ۔ ۱۹۹۸ م ۔
۴۴۔ تاریخ عثمان بن سعید الدارمی رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۲۸۰ ھ، عن ابی زکریا یحیی بن معین، المتوفی ۲۳۳ ھ، دار المامون للتراث، ۱۴۰۰ ھ ۔
۴۵۔ التاریخ الکبیر ۔ امام محمد بن اسماعیل البخاری رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۲۵۶ ھ ۔ دار الکتب العلمیة بیروت
۴۶۔ تحریر تقریب التهذیب، دکتور بشار عواد معروف و الشیخ شعیب الارنؤوط، مؤسسة الرسالة، طبع اول ۱۴۱۷ ھ ۔ ۱۹۹۷ م ۔
۴۷۔ تحفة الاشراف بمعرفة الاطراف، ابو الحجاج جمال الدین یوسف بن عبد الرحمن المزی، رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۷۴۲ ھ، المکتب الاسلامی بیروت، طبع دوم ۱۴۰۳ ھ مطابق ۱۹۸۳ م ۔

۴۸ ـ تحفة البارى بشرح صحیح البخاری، شیخ الاسلام ابی یحیی زکریا بن محمد الانصاری، رحمه الله تعالیٰ، المتوفیٰ ۹۲۶ھ، دار الکتب العلمیة، دار ابن حزم بیروت، طبع اول ۱۴۲۵ھ ـ ۲۰۰۴م ـ
۴۹ـ تذکرة الحفاظ، حافظ ابو عبد الله شمس الدین محمد بن احمد بن عثمان الذهبی، رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۷۴۸ھ، دائرة المعارف العثمانیة، الهند ـ
۵۰ ـ التذییل علی کتاب تهذیب التهذیب ـ محمد بن طلعت، مکتبه اضواء السلف، الریاض، طبع اول ۱۴۲۵ھ ـ ۲۰۰۴م ـ
۵۱ـ ترجمان السنة ـ حضرت مولانا بدر عالم میرٹھی، رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۱۳۸۵ھ، دار الاشاعت، کراتشی ـ
۵۲ ـ تعریف اهل التقدیس بمراتب الموصوفین بالتدلیس ـ حافظ احمد بن علی المعروف بابن حجر العسقلانی رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۸۵۲ھ، تحقیق: عاصم عبد الله القریوتی الزرقاء، الاردن ـ
۵۳ـ تعلیقات تقریب التهذیب ـ شیخ محمد عوامة حفظه الله تعالیٰ، دار الرشد حلب ۱۴۰۶ھ ـ
۵۴ ـ تعلیقات جامع بیان العلم و فضله ـ ابو الاشبال الزهیری، دار ابن الجوزی، طبع رابع ۱۴۱۹ھ ـ
۵۵ ـ تعلیقات تهذیب الکمال ـ دکتور بشار عواد معروف حفظه الله تعالیٰ ـ مؤسسة الرسالة، طبع اول ۱۴۱۳ھ
۵۶ـ تعلیقات الرفع و التکمیل ـ شیخ عبد الفتاح ابو غدة رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۱۴۱۷ھ، مکتب المطبوعات الاسلامیة، حلب، طبع سوم ۱۴۰۷ھ ـ ۱۹۸۷م ـ
۵۷ـ تعلیقات علوم الحدیث ـ دکتور نور الدین عتر حفظه الله تعالیٰ، دار الفکر بیروت، ۱۴۰۶ھ ـ ۱۹۸۶م ـ
۵۸ـ تعلیقات الکاشف للذهبی، شیخ محمد عوامة / شیخ احمد محمد نمر الخطیب حفظهما الله، مؤسسة دار القبلة / مؤسسة علوم القرآن، طبع اول ۱۴۱۳ھ ـ ۱۹۹۲م ـ
۵۹ـ تعلیقات لامع الدراری، شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا الکاندهلوی، رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۱۴۰۲ھ / ۱۹۸۲م، کشمیر بکڈپو چنیوٹ بازار فیصل آباد ـ
۶۰ـ تعلیقات معجم الصحابة ـ جماعة من العلماء والمحققین، مکتبه نزار مصطفی الباز، مکة المکرمة ـ الریاض
۶۱ ـ تغلیق التعلیق، حافظ احمد بن علی المعروف بابن حجر رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۸۵۲ھ، المکتب الاسلامی، ودار عمار ـ
۶۲ـ تفسیر الطبری (جامع البیان عن تاویل آی القرآن)، امام ابو جعفر محمد بن جریر الطبری، رحمه الله تعالیٰ، متوفی ۳۱۰ھ، مرکز البحوث و الدراسات العربیة و الاسلامیة بدار هجر ـ القاهرة ۱۴۲۲ھ ـ ۲۰۰۱م ـ
۶۳ـ تفسیر القرآن العظیم، حافظ ابو الفداء عماد الدین اسماعیل بن عمر بن کثیر الدمشقی، رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۷۷۴ھ، دار احیاء الکتب العربیة ـ
۶۴ ـ تفسیر القرطبی (الجامع لاحکام القرآن)، امام ابو عبد الله محمد بن احمد الانصاری القرطبی، رحمه الله تعالیٰ متوفی ۶۷۱ھ، دار الفکر، بیروت ـ
۶۵ـ التفسیر الکبیر، (تفسیر الرازی او مفاتیح الغیب)، الامام ابو عبدالله فخر الدین محمد بن عمر الرازی، رحمه الله تعالیٰ، متوفی ۶۰۶ھ، مکتب الاعلام الاسلامی، ایران ـ
۶۶ـ التفسیر المظهری ـ قاضی محمد ثناء الله الفانی فتی، رحمه الله تعالیٰ، ۱۲۲۵ھ، حافظ کتب خانه کوئٹه ـ
۶۷ـ تقریب التهذیب، حافظ احمد بن علی المعروف بابن حجر العسقلانی، رحمه الله تعالیٰ، متوفیٰ ۸۵۲ھ، دار الرشید حلب ۱۴۰۶ھ ـ

۶۸۔ التقريب و التيسير لمعرفة سنن البشير النذير (مع تدريب الراوى) امام ابو زكريا محى الدين يحيى بن شرف النووى، رحمه الله تعالىٰ، متوفى ۶۷۶ ھ۔ المكتبة العلمية، المدينة المنورة۔
۶۹۔ تقرير بخارى شريف ۔ حضرت شيخ الحديث مولانا محمد زكريا كاندهلوى، رحمه الله تعالىٰ، متوفى ۱۴۰۲ ھ، مكتبة الشيخ كراچى۔
۷۰۔ التقييد والايضاح لما اطلق و اغلق من كتاب ابن الصلاح، حافظ ابو الفضل زين الدين عبد الرحيم بن الحسين العراقى، رحمه الله تعالىٰ، متوفى ۸۰۶ ھ مكتبه سلفيه مدينه منوره ۔ طبع اول ۱۳۸۹ ھ۔
التقييد والايضاح لما اطلق و اغلق من كتاب ابن الصلاح، حافظ عراقى، رحمه الله تعالىٰ، تحقيق : دكتور اسامه بن عبد الله خياط، دار البشائر الاسلامية، طبع اول ۱۴۲۵ ھ۔ ۲۰۰۴ م ۔
۷۱۔ تكملة فتح الملهم، حضرت مولانا محمد تقى عثمانى صاحب مدظلهم ، مكتبه دار العلوم كراچى ۔
تكملة فتح الملهم، حضرت مولانا محمد تقى عثمانى صاحب مدظلهم ، دار احياء التراث العربى، بيروت، طبع اول ۱۴۲۶ ھ۔ ۲۰۰۶ م ۔
۷۲۔ التلخيص الحبير فى تخريج احاديث الرافعى الكبير، حافظ ابن حجر عسقلانى رحمه الله، متوفىٰ ۸۵۲ ھ، دار نشر الكتب الاسلامية لاهور، و دار الكتب العلمية، بيروت ۱۴۱۹ ھ۔
۷۳۔ تلخيص المستدرک (المطبوع بذيل المستدرک)، حافظ شمس الدين محمد بن احمد عثمان الذهبى رحمه الله تعالىٰ، متوفىٰ ۷۴۸ ھ، دار الفكر بيروت ۔
۷۴۔ التمهيد لما فى الموطا من المعانى و الاسانيد، حافظ ابو عمر يوسف بن عبد الله بن محمد ابن عبد البر المالكى، رحمه الله تعالىٰ، متوفى ۴۶۳ ھ، المكتبة التجارية، مكة المكرمة۔
۷۵۔ تنوير الحلک فى امكان رؤية النبى و الملک (ضمن : الحاوى للفتاوى للسيوطى) حافظ جلال الدين عبد الرحمن السيوطى رحمه الله تعالى، متوفى ۹۱۱ ھ مكتبه نوريه رضويه فيصل آباد۔
تنوير الحوالک شرح مؤطا امام مالک، حافظ جلال الدين عبد الرحمن السيوطى رحمه الله تعالى، متوفى ۹۱۱ ھ دار الكتب العلمية بيروت۔
۷۶۔ توضيح الافكار لمعانى تنقيح الانظار، امام محمد بن اسماعيل المعروف بالامير الصنعانى رحمه الله تعالى، متوفى ۱۱۸۲ ھ، دار الكتب العلمية، طبع اول ۱۴۱۷ ھ ۱۹۹۷ م ۔
۷۷۔ تهذيب الاسماء و اللغات، امام محى الدين ابو زكريا يحيى بن شرف النووى، رحمه الله تعالىٰ، متوفىٰ ۶۷۶ ھ، ادارة الطباعة المنيرية۔
۷۸۔ تهذيب التهذيب، حافظ احمد بن على المعروف بابن حجر العسقلانى، رحمه الله تعالىٰ، متوفىٰ ۸۵۲ ھ، دائرة المعارف النظامية، حيدر آباد الدكن ۱۳۲۵ ھ۔
۷۹۔ تهذيب سنن ابى داود، حافظ شمس الدين ابو عبد الله محمد بن ابى بكر المعروف بابن القيم، رحمه الله، المتوفى ۷۵۱ ھ، مطبعة انصار السنة المحمدية، ۱۳۶۷ھ ۔ ۱۹۴۸ م ۔
۸۰۔ تهذيب الكمال، حافظ جمال الدين ابو الحجاج يوسف بن عبد الرحمن المزى، رحمه الله تعالىٰ، متوفىٰ ۷۴۲ ھ، مؤسسة الرسالة، طبع اول، ۱۴۱۳ ھ۔
۸۱۔ تيسير القارى ۔ مولانا نور الحق بن شيخ عبد الحق محدث دهلوى رحمه الله تعالى، متوفى ۱۰۷۳ ھ، مطبع علوى، لكهنؤ۔

٨٢۔ الثقات (كتاب الثقات)، حافظ ابو حاتم محمد بن حبان بستى، رحمه الله، متوفى ٣٥٤ھ، دائرة المعارف العثمانية، حيدر آباد، ١٣٩٣ھ۔
٨٣۔ جامع الاصول من حديث الرسول، علامه مجد الدين ابو السعادات المبارك بن محمد بن الاثير الجزرى، رحمه الله تعالىٰ متوفى ٦٠٦ھ، دار الفكر، بيروت۔
جامع البيان عن تاويل آى القرآن (ديكهئے تفسير الطبرى)
٨٤۔ جامع بيان العلم و فضله، حافظ ابو عمر يوسف بن عبد الله بن محمد بن عبد البر المالكى، رحمه الله تعالىٰ، متوفى ٤٦٣ھ۔ دار ابن الجوزى، طبع رابع ١٤١٩ھ۔ ١٩٩٨ء۔
٨٥۔ جامع الترمذى، (سنن الترمذى)، امام ابو عيسىٰ محمد بن عيسىٰ بن سورة الترمذى، رحمه الله تعالىٰ، متوفى ٢٧٩ھ، ايچ ايم سعيد كمپنى / دار احياء التراث العربى / دار السلام۔
الجامع لاحكام القرآن (ديكهئے تفسير القرطبى)
٨٦۔ الجامع لاخلاق الراوى و آداب السامع۔ حافظ ابو بكر احمد بن على بن ثابت الخطيب البغدادى، رحمه الله تعالىٰ، المتوفى ٤٦٣ھ دار الكتب العلمية، بيروت، طبع اول ١٤١٧ھ۔ ١٩٩٦ء۔
٨٧۔ الجرح والتعديل، امام ابو محمد عبد الرحمن بن ابى حاتم محمد ادريس الرازى، رحمه الله تعالىٰ، المتوفى ٣٢٧ھ، دار الكتب العلمية، بيروت، طبع اول، ١٤٢٢ھ۔٢٠٠٢ء۔
٨٨۔ جمع الوسائل فى شرح الشمائل، امام نور الدين على بن سلطان القارى، رحمه الله تعالىٰ، المتوفى ١٠١٤ھ، اداره تاليفات اشرفيه ملتان۔
٨٩۔ الجوهر النقى (بذيل السنن الكبرى للبيهقى)۔ علامه علاء الدين على بن عثمان الماردينى، الشهير بابن التركمانى، رحمه الله تعالىٰ، المتوفى ٧٤٥ھ۔ نشر السنة ملتان۔
٩٠۔ حاشية سبط ابن العجمى على الكاشف۔ امام برهان الدين ابو الوفاء ابراهيم بن محمد سبط ابن العجمى الحلبى، رحمه الله تعالىٰ، المتوفى ٨٤١ھ۔ شركة دار القبلة، مؤسسة علوم القرآن، طبع اول ١٤١٣ھ۔ ١٩٩٢ء۔
٩١۔ حاشية السندى على البخارى، امام ابو الحسن نور الدين محمد بن عبد الهادى السندى، رحمه الله تعالىٰ، متوفى ١١٣٨ھ، قديمى كتب خانه۔
٩٢۔ الحاوى الكبير، امام ابو الحسن على بن محمد حبيب الماوردى، رحمه الله تعالىٰ، متوفى ٤٥٠ھ دار الفكر، ١٤١٤ھ۔ ١٩٩٤ء۔
٩٣۔ الحاوى للفتاوى۔ حافظ جلال الدين عبد الرحمن بن ابى بكر السيوطى، رحمه الله تعالىٰ، متوفى ٩١١ھ مكتبه نوريه رضويه فيصل آباد۔
٩٤۔ حلية الاولياء۔ حافظ ابو نعيم احمد بن عبد الله بن احمد الاصبهانى، رحمه الله تعالىٰ، متوفى ٤٣٠ھ دار الفكر بيروت۔
٩٥۔ خلاصة تذهيب تهذيب الكمال (خلاصة الخزرجى) علامه صفى الدين الخزرجى، رحمه الله تعالىٰ، متوفى ٩٢٣ھ کے بعد، مكتب المطبوعات الاسلامية، بحلب۔
٩٦۔ الدراية فى تخريج احاديث الهداية، حافظ احمد بن على المعروف بابن حجر العسقلانى، رحمه الله تعالىٰ، متوفى ٨٥٢ھ، دار نشر الكتب الاسلامية لاهور۔

